د لوی الله جل جلاله په نامه

# د لیکوال سریزه




## د بشریت تراژیدی :

بشریت نن د دوزخ د ژوری کندی پر خنډه ولاړ دی ، د دی لامل دا نه دی چې یو سترنړی وال خطر د بشریت د آرامی او سوکالی په سر چورلکونه وهی ، ځکه چې تر اوسه پوری دا خطر یو ظاهری علامه ده د راتلونکې وخت لپاره ، اصلی مرض نه دی .

ددی اصلی لامل دا دی چې نن د بشریت لمن د ژوندانه د ستونزو د اوارولو لپاره له ارزښتناکې پانګی نه تشه ده هغه ارزښتناکه معنوی پانګه چې ناروغه بشریت ته پری نه یوازی جسمانی روغتیا او سلامتیا ور په برخه کیدله بلکه حقیقی پرمختګ یې هم په برخه کیده .

په خپله د لویدیځ د پوهانو او عامو خلکو هم خپل روحانی فقر او افلاس ته پام دی ، ځکه چې د لویدیځ د تهذیب په لمن کې هم اوس د بشریت د بی شمیره ستونزو او کړکیچونو د آوارولو لپاره ، داسی څه نشته چې هغوی ته یې د سوغات په توګه وړاندی کړی ، لویدیځ په خپله اوس د یوه ناروغ حیثیت لری نو ځکه د بل ناروغ درمل نشی کولای .

د غرب د معنوی او روحانی کمزوری دغه حال دی چې لږ تر لږه د خپل ځان د پایښت لپاره هم داسی څه نشی کولای چې که نور څه نه وی نو خپل اجتماعی ضمیر خو پری ډاډه کړی .

د لویدیځ جمهوریت اوس د فکری او معنوی پانګی د نه درلودلو له امله دومره نیستمن شویدی چې خوراکې اوس د ختیځ د افکارو په سمسوره کرونده کې ورو ورو ټولولو ته اړ شویدی ، د ختیځ بلاک د سوسیالیزم وته ائیز ( اقتصادی ) نظریات چې غرب یې اوس په خپلولو لګیا دی زمونږ د ادعا څرګند ثبوت دی .

له بلی خوا نه خپله د ختیځ بلاک په حال هم ژړا پکار ده ، د ختیځ بلاک په ټولنیزو نظریاتو کې مارکسیزم ځان مخکې، مخکې کوی ، دغی نظریې

د خپل پيدايښت په پيل کې د ختيځ نړۍ څه چې د لويديځ يو شمير زيات خلک هم په خپل ځان رامات کړل او د دې عارضي برۍ علت هم دا وُ چې دا يوازې يو سياسي نظام نه بلکه د عقيدې تبۍ يې هم ورته کړې وُ .

خو اوس مارکسيزم له فکري پلوه له ماتې سره مخامخ دی ، که څوک دا ووايې چې د مارکسيزم نظريه اوس د يو داسې حکومت په چوپړ کې ده چې له اصلي مارکسيزم نه ډير واټن لري نو څه بې ځايه خبره به نه وي ، په عمومي ډول دغه نظريه له انساني فطرت سره په مقابل لورې کې پرته ده او د انساني فطرت له غوښتنو سره په جګړه بوخته ده .

دغه نظرنه اوس لکه ميکروب يوازې په يوه خيرن ، خچن او لړلي ماحول کې وده کولای شي او يا په يوه داسې ماحول کې وده او پرمختګ کولای شي چې د هغه ماحول خلک مريې صفته وي او له کلونو کلونو راهيسې له دکتا توري سره آموخته شوي وي .

خو د دغې نظريې بدمرغي دا ده چې اوس په دغسې يو ماحول کې هم د هغې اقتصادي تجربې له ناکامۍ سره مخامخ شويدې ، داسې نتيجه يې ورنکړه لکه څومره چې يې پلويان ورته په تمه وو ، اقتصادي اړخ ، د دغې نظريې د ملا د تير حيثيت لري چې ټوله ودانۍ يې پر همدې اړخ درولې ده او وياړ پرې کوي ، روس د سوسيالستي حکومتونو د ملک او مخکښ حيثيت لري .

خو د هغوی زيات خوراکي څيزونه اوس هم له نورو هيوادونو نه راځي په داسې حال کې چې د تزار په وخت کې هم روسانو له خپلې اړتيا نه زيات غنم لرل خو اوس يې له بهرنيو هيوادونو نه اخلي ، دا ځکه چې د هغوی د کروندې نظام ناکام شويدی ، بلکه بايد داسې ووايو چې هغه نظام چې د فطرت مخالف وي له خپله لاسه يې ناکامي په برخه کيږي .

## نوی ليډر شپ ته اړتيا

که مونږ پورتنې ليکنه په غور ولولو نو دا خبره به هم بې له شکه ومنو چې ، بشريت اوس يوه نوې قيادت او مشرتابه ته اړتيا لري ، تر اوسه پورې د بشريت لارښوونه او قيادت د غربيانو په لاس کې وُ خو د هغوی دغه رهبري

او قیادت اوس ړنګیدونکې دی ، لکه څنګه مو چې مخکې وویل د غربي قیادت د زوال او کمزورتیا علت دا نه دی چې د مادی تهذیب او یا له اقتصادی او نظامي پلوه کمزوری شوی وې بلکه د لویدیځ د رهبری او قیادت د کمزورتیا او زوال اصلی لامل دا دی چې غربی انسان اوس د هغو ژوند ښبونکو معنوی ارزښتونو نه بی برخی دی چې د هغی په واسطه دی د قیادت او رهبری ور کنټرول کیدای شو .

همدا لامل دی چې د تاریخ په ستیج یې اوس رول پای ته رسیدلی دی ، اوس په دغه کړکیچن حالت کې یوی داسی رهبری ته ډیره سخته اړتیا ده چې له یوی خوا نه د اروپا د تخلیقی ذهن د محصول ( مادی پرمختګ ) ساتنه وکړی او نور هم پسی د بشریت د ښیګړو لپاره وده ورکړی او له بل پلوه بشریت ته د ټولنیز ژوند داسی بشپړی او غوره نمونی وړاندی کړی چې په تاریخ کې یې ساری نـه وی او بشری علم تر اوسه له هغی سره نا اشنا وی .

له دی سره سره بشریت ته د ژوند داسی یوه کړنلاره هم ور وښیی چې له انساني فطـرت سره اړخ ولګوی، مثبته او تعمیری وی، حقیقت خوښوونکې وی .

دغه ډول ژوند ښبونکې ارزښتونه او د ژوند ، ځانګړی نظام یوازی په اسلام کې موندل کیدای شي ، له اسلام نه پرته په کوم بل ماخذ او قاموس کې د هغی لټول هسی بوس دلول دی ، د علمی پرمختګ نهضت هم اوس خپل ارزښت له لاسه ورکړیدی ، دغه نهضت په شپاړسمه عیسوی پیړۍ کې د خلکو له علمی بیداری سره سم پیل شوی وُ .

اتلسمه او نولسمه پیړۍ د دغه نهضت د لوړتیا زمانه وه خو اوس د دغه نهضت په لمنی کې هم د ژوند پانګه خلاصه شویده .

هغه ټول وطنی او قومی الواکونه ( نظریې ) چې په دغه وخت کې را برسیره شویدی او هغه ټول نهضتونه چې د دغو نظریاتو پر بنسټ ولاړ وو له هغوی سره هم اوس د بشریت د اوسنیو او راتلونکو ستونزو د حل کومه

نسخه نشته لنډه دا چې ټولو انفرادي او ټولنيزو نظريو د عمل په ډګر کې د حال په ژبه د خپلې ناکامۍ اعلان کړيدی .

په دغــه ډول انتهايي او نازک پــړاو کې چې د بشريت نا آرامی ، ستونزی او کړکيچونه خپل وروستی پړاو ته رسيدلی دی اوس د اســلام او مسلمان امت وار دی چې د تاريخ پــه بستر ناروغه بشريت تــه د روغتيا زيری ورکړی .

اسلام له اوسنيو مادی اختراعاتو سره نه يوازی مخالف نه دی بلکه هغه د انسان د ژوند د پايښت لپاره مادی پرمختګ يو ضروری او لومړنی کار ګڼی ، کله چې ، اسلام د ځمکې پر مخ د الهی نيابت وياړلی منصب ترلاسه کړ نو له هماغه لومړی ورځی نه يې دا هم په ډاګه کړيده چې د مادی پرمختګ حاصلول د اسلام لومړنی اصل دی .

د همدی امله اسلام له دی نه هم لړ پر مخ ولاړ او د ځينی مخصوصو شرايطو پر اساس يې د مادی پرمختګ زيار او ستونزو ته د الهی قيادت درجه ورکړه او هغه يې د انسانی تخليق د غرض او غايې د پوره کولو لپاره يوه وسيله وګڼله الله جل جلاله فرمايي چې :

وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً [البقره : ۳۰]

( او ياد کړه هغه څه چې ستا رب ملائکو ته وويل ، چې : د ځمکې پر مخ خپل خليفه پيدا کوم ) .

وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِي [الذاريات : ۵۶]

( ما نه دی پيدا کړی پيريان او انسانان ، مګر د دی لپاره چې زما عبادت او بندګی وکړی) .

الله جل جلاله چې مسلمان امت د کوم مقصد لپاره راپورته کړی اوس هغه وخت راغلی دی چې مسلمان امت د خپل موجوديت مقصد پوره کړی .

په دغه برخه کې الله جل جلاله فرمايلی دی :

كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ [ال عمران : ۱۱۰ آيت ]

( تاسو په نړۍ کې د ډیرو ښو خلکو له ډلې نه یاست چې د بشریت د لارښوونی لپاره ، د عمل میدان ته راغلی یې ، تاسو خلکو په نیکې حکم کوی له بدی نه یې ایساروی او پر الله جل جلاله ایمان لری ) .

وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا [البقره : ۳۰ آیت ]

( او په دی توګه مونږ تاسو ته یو منځنی امت جوړ کړیدی چې تاسو د دنیا په خلکو شاهدان واوسی او رسول الله صلی الله علیه وسلم په تاسو شاهد و اوسی ) .

### اسلام خپله دنده ( وظیفه ) څنګه ترسره کولای شی ؟

اسلام تر هغه وخته پوری خپل مقاصد سر ته نشی رسولای ترڅو چې د یوی اسلامي ټولنی په توګه تبارز ونه کړی په بله وینا اسلام باید د خپل مقصد او هدف د ترسره کولو لپاره د یوه اسلامي امت او قوم بڼه غوره کړی ، د نړۍ په هیڅ وخت او زمان او په تیره بیا په اوسنی وخت کې هیڅکله هم د تش نظر د خاوندانو په چیغو سورو باندی چا غوږ نه دی ګرولی ، تر هغی یې چې په ټولنه کې د هغه نظر ژوندی نمونه نه ده لیدلی ، نو له دی امله مونږ ویلی شو چې د ریښتونی مسلمان امت ( وجود ) له څو پیړیو راهیسی ورک دی ، څکه چې مسلمان امت د کوّم هیواد نوم نه دی چې هلته اسلام خپور شوی وی ، او نه د کوم ( قوم ) نوم دی چې پلرونه نیکونه یې د تاریخ په کوم پړاو کې د اسلامي نظام تر سیوری لاندی اوسیدلی وی .

بلکه دا د یوی داسی انسانی ډلی نوم دی چې د ژوند کړه وړه افکار او نظریات قوانین او ضوابط ، اجتماعی معیارونه او ارزښتونه د منلو او نه منلو اصول ، ټول د اسلامي نظام له سپیڅلی منبع نه سرچینه اخلی ، په دغو اوصافو متصف مسلمان امت چې له کوم وخت راهیسی د عدم دی څرندی ( زیر زمینی ) د ښامار خوراک شوی دی ، له هماغی شیبی نه د ځمکې پر مخ د الهی شریعت تر سیوری لاندی حکومت او د ژوند کارو بار ټال شوی دی .

خو که چیرته اسلام بیرته خپل تیز برم او پرتم ته رسیدل غواړي او د دنیا د اوسنی کړکیچن حالت سمون چې اوسنی لالهانده بشر هم ورته په ډیره بې صبرۍ ، سترګې پر لار دی نو باید چې تر هر څه لومړی د مسلمان امت ، وجود په خپله اصلي او پخواني بڼه احیاء کړي .

هغه مسلمان امت چې څو پیړیو او نسلونو راهیسې یې د ضمیر په بنیبنه د وخت او مهال خړه دوړه پرته ده ، هغه چې د غلطو نظریاتو تر ډیریو لاندې پرته ده ، هغه چې د له ځانه جوړ شوو قوانینو او روایاتو تر تورو خاورو لاندې پټه ده او هغه چې د باطلو قوانینو او د سا تیرو په ډیریو کې ورکه ده .

هغه چې اوس یې له اسلام او د اسلام د ژواک او چال چلند سره د توپیر خلیج نور هم ژور شوی دی ، خو دی تولو سره سره ځینی خام خیاله او لنډ اندې په دې خوش باوري هم اخته دي چې د اسلام وجود اوس قایم او دایم دی او تش په نامه اسلامي نړۍ یې هستوګنځی دی .

زه له دې خبرې نه ناخبره نه یم چې د اسلام د بیا ژوندي کولو ( احیای مجدد ) زیار او هڅې او د مشرتابه او رهبرۍ د لاسته راوړلو ترمینځ ډیره لویه فاصله ده ، له یوې خوا نه د مسلمان امت دغه حال دی چې ، د خپل موجودیت اصل یې له ډیر پخوا راهیسې هیر کړی دی او د تاریخ د واکمنی له ستیج نه یې د رخصتیدو ډیره اوږده موده وتلې ده .

د اسلام د غیر حاضرۍ په دې اوږده موده کې د بشریت د رهبرۍ او قیادت په کرسۍ ، مختلفو نظریاتو او قوانینو او ځینې روایاتو تکیه کړې وه ، دا هغه دوره وه چې د اروپا له نبوغه سمسور ذهن په کې د ساینس کولتور ، قانون او نورو مادي وسایلو په تخلیق کې داسې ست[illegible]س ، وښودلې چې د هغې له امله بشریت نن د مادي ترقۍ او [illegible]ري کارنامې لوړتیا لوړو څوکو ته رسیدلی دی . [illegible]ختراعاتو له نظره د

چې په دې توګه څوک نشي کولای په [illegible]

د انتقاد ګوته په آسانۍ کیښږد[illegible] دغو اختراعاتو او یا یې مخترعینو چې د هغې سیمې لمن[illegible]ري شي ، په تیره هغه هم په داسې حال کې له دغسې سوغا[illegible] هم چې ( د اسلامي نړۍ ) په نامه یادیږي بشریت ته [illegible] نه تشه وي .

خو ددی ټولو خبرو سره سره بیا هم د اسلام را ژوندی کول او اقتدار ته رسول یو نهایت ضروری کار دی ، که د اسلام د بیا را ژوندی کولو په لومړیو هڅو او یا د امامت د لاسته راوړلو په مینځ کې هر څومره اوږد واټن وی او یا هر څومره ژور جهیلونه زمونږ د لاری خنډ وی ، نو د اسلام د بیا ژوندی کولو له نهضت نه په دی پلمه لاس نشو اخیستلای ، ځکه چې دغه عمل په دی لاره کې لومړی ګام دی او هرومرو به اسلام له دغه پړاو نه تیریږی .

**د نړۍ د مشرتابه او امامت لپاره د کومو صلاحیتونو درلودل ضرور دی ؟**

سره له دی چې مونږ ته د خپل کار او عمل ټاکلی بریدونه څرګند دی ، خو بیا هم مونږ په ځانګړی توګه دا خبره ځانته څرګنده کړو چې هغه کوم صلاحیتونه دی چې د هغی له مخی مسلمان امت د نړیوال امامت دنده ترسره کولای شی ؟

ددی مسئلی روښانول له دی امله ضروری دی چې مونږ د اسلام د بیا ژوندی کولو په کار کې له هماغه لومړی پړاو نه د دغو صلاحیتونو په پیژندنه کې له تیر وتنو سره مخامخ نشو .

مسلمان امت نن د دی جوګه نه دی او نه تری زمونږ دا طمعه ده چې هغه به د بشریت لپاره د مادی ایجاداتو په لړ کې داسی کوم خارق العاده او ناشونی علمی صلاحیت څرګند کړی چې ، د هغی له امله بشریت د هغوی ذهانت او علمی صلاحیت ته ګوته په غاښ شی او د تسلیم سر یې په مخکې کوږ کړی او د همدی مادی پرمختګ د برکت له امله یو ځل بیا د خپل نړیوال امامت سکه په خلکو ومنی ، د اروپا نابغه ذهن د دی میدان په څغاسته کې تر هر چا مخکې دي .

دومره مخکې چې لږ تر لږه څو نورو راتلونکو پیړیو پوری هم دا هیله نشی کیدلای چې د مادی پرمختګ په دی څغاسته کې یې را لاندی او یا تری مخکې شو ، نو له دی امله مونږ ته د یوه بل داسی صلاحیت د درلودلو ضرورت دی چې اوسنی تهذیب یې نه لري .

خو د[illegible] خبری مطلب دا نه دی چې مونږ دی د ژوند د مادی پرمختګ اړخ له نظره بیخی وغورځوو او بابیزه یې وګڼو ، بلکه په دی لاره کې باید

ستونزې وګالو ، خولې توی کړو ، لاسونه تناکې کړو چې لږ تر لږه له هغوی سره د سیالی کولو جوګه شو .

دا له دی امله نه چې زمونږ په نظر په اوسنی پړاو کې د نړۍ د امامت او زعامت د ترلاسه کولو لپاره یوازینی لار ده بلکه له دی امله چې زمونږ د وجود د پایښت او بقا لپاره یوازینی شرط دی ، او په خپله اسلام چې انسان یې د ځمکې پر مخ د خلافت وارث ګڼلی دی .

د ځینو مخصوصو شرایطو په نظر کې نیولو سره یې د خلافت کار ، د الله جل جلاله عبادت او انسانانو نور تخلیقی کارونه د ژوند غرض او غایه ګڼلې دی نو له دی امله یې مادی پرمختګ او ترقی پر مونږ لازم کړیده .

د بشریت د رهبری او قیادت د لاسته راوړلو لپاره ، له مادی پرمختګ نه پرته یوه بل صلاحیت ته هم ضرورت دی او دا صلاحیت یوازی د ژوند هغه نظام او ګروهه کیدلی شی چې له یوی خوا انسانیت ته دا موقع په لاس ورکوی چې د خپلو مادی پرمختګونو ساتنه وکړی او له بلی خوا نه د بشر د ژوند فطری اړتیاوی او غوښتنی د یوه داسی نوی او روښانه نظر تر سیوری لاندی پوره کړی چې د بل هر نظر نه د بشر له فطرت سره زیات اړخ لګوی او بیا دغه ګروهه او د ژوند نظام عملاء د یوی انسانی ټولنی بڼه غوره کړی ، یا په بله وینا د یوی اسلامي نظریې ښکارندویه ټولنه وی .

## د اوسنی وخت جاهلیت

که مونږ د بشر د موجوده ژوند اصولو او بنسټونو ته ځیر شو او هغو منابعو ته سرسری شان وګورو چې د اوسنی وخت د نظامونو ورشو پری خړوبیږی نو په اسانی سره به راته څرګنده شی چې ټوله نړۍ نن د جاهلیت په سمندر کې لاهو شوی ده .

او د دغه جاهلیت روزل شوو جاهلانو هم د بشریت په تاریخ کې داسی ګلان کرلی دي چې د اوسنی پیړی حیرانوونکو اختراعاتو ، د ژوند سوکالی او اسانتیاوو هم د هغوی په رسوایې او سپکاوی پرده ونه غوړولای شوه .

د دغه جاهلیت ، مانې چې پر کوم بنسټ ولاړه ده هغه د ځمکې پر مخ د الله په ستر اقتدار کې لاسوهنه او حاکمیت دی ، د ځمکې پر مخ د اقتدار سنبالول د الوهیت مخصوص صفت دی او د اوسنی پیړی جاهلیت له ، دغه اصل نه بغاوت کړی دی .

ځکه چې د دغـــه عصر جاهلیت ، د حاکمیت او اقتـــدار واګی انسان تـــه سپارلی دی او ځینو انسانانو ته یې د ځینو نـــورو انسانانو یـــه [illegible] پرته د ( ارباب من دون الله ) مقام ورکړیدی ، د اوسنی عصر ، جاهلیت ، هغه ساده او ابتدای بڼه نه لری چې د پخوانی زمانی ( جاهلیت ) ورسره اشنا ؤ .

بلکه د اوسنی ( جاهلیت ) دا دعوه ده چې انسان دا حق لری چې په خپله د خپل ژوند د سمون لپاره د افکارو او نظریاتو تخلیق وکړی ، قوانین وټاکې او همدا رنګه د ژوندانه د هر اړخ لپاره په خپل فکر نظم ودسپلین جوړ کړی .

په دی لړ کې [illegible] دوی بالکل دیته ځان اړ نه وینی چې الله تعالی د انسانانو د ژوند د [illegible] سنبالولو لپاره څه ډول قوانین رالیږلی دی ؟ څه لارښوونی یې نازل کړی دی ، او په کوم ډول ؟ د بشریت د دغی باغی اقتدار او بی کیزی حکومت نتیجه دا ده چې د الله تعالی مخلوق نن د ظلم او تیری له لاسه تر پوزی پوری رسیدلی دی ، د کمونیستی نظامونو تر سیوری لاندی چې، نن د بشریت کوم سپکاوی کیږی او یا د پانګوالی نظامونه بادارانه چې د غلامی کوم زغ د بیوزلو او کمزورو قومونو او خلکو په څټ ایښی دی هغه په حقیقت کې د دغه بغاوت یوه څرګنده نښه ده چې د ځمکې پر مخ یې د الله جل جلاله د اقتدار په مقابله کې ښودلی ده الله تعالی چې انسان ته د کرامت او شرافت کومه جامه ور اغوستی هغه یې له خپلی ناپوهی او خود خواهی نه غورځولی ده نو ځکه له دومره کړاوونو سره مخامخ دی .

## د اسلام او جاهلیت د اختلاف اصل

په دغه برخه کې، د اسلام د ټولنیز ژوندانه نظر د نورو نظریو ترمینځ یو ځانګړی او جلا حیثیت لری ، د اسلامي قانون د ژوندانه له نظام نه پرته

چې سړی هر نظام وګوري نو په ډاګه به پکې په یو ډول نه په یوه ډول یو انسان د نورو انسانانو د بندګی او اسارت تر زغ لاندې نسکور ووینې .

یوازې د اسلام آزادي ښښونکې نظام دی چې د هغې تر سیوري لاندې هر انسان نور انسانان هم د ځان په څیر د نورو له بندګی او اسارت نه آزادلیدلای شي ، چې یوازې او یوازې به یې د الله جل جلاله د بندګی افتخار په برخه وي او بس یوازې به یې د الله جل جلاله د فیض او برکت نه درګاه نه د لارښوونې او هدایت ځلانده لمر په وړانګو سترګی روښانه کیږي او یوازې یې د هغه په مخ کې د بندګی ملا کږیږي .

دا هغه برید دی چې د اسلام او غیر اسلامي ټولنیز نظام پولې سره په کې جلا شوې دي ، دا دی د ژوند په هکله د اسلام هغه روڼ ، نوی او ممتاز تصور چې مونږ یې نن د نړیوالو د بې شمیره ټولنیزو ستونزو د اوارولو لپاره هغوی ته وړاندې کوو .

دا تصور انسانی ژوند په ټولو اړخونو کې ژور بدلون راوستلای شي ، دا هغه بې ساری او ناپایه خزانه ده چې نن تری بشریت بې برخې دی ، د مغربي تهذیب په لمن کې د بشریت لپاره داسې سوغات نشته او نه دا کار اروپا د اریانونکو تخلیقي صلاحیتونو له وسې پوره دی .

ددې خزانې د رابرسیره کولو په لار کې د لویدیځی او ختیځی اروپا دواړو لاسونه او پښې شلی شویدي ، دا خبره مونږ په پوره ډاډ او اطمینان سره کولای شو چې مونږ د داسې یوه نظام د راوستلو ادعا لرو چې نن یې ساری په نړۍ کې نه لیدل کیږي او بې نهایت بشپړ او غوره نظام دی .

نن د ټول بشریت په خزانه کې داسې ژوند ښښونکې او امید ښښونکې پانګه نشته ، غرب نشي کولای چې د نورو مادي وسایلو په توګه هغه هم پیدا کړي ، دومره نبوغ او ذکاوت پکې نشته ، خو څرنګه چې مونږ مخکې وویل ددې نظام ښه والي تر هغه پوري ښه نشي څرګندیدلای تر هغې چې هغه ته د عمل واک ورنکړای شي ، نو له دې امله دا خبره ضروري ده چې د دغې ژوند ښښونکې نظرېي پلویان او منونکې دې په خپل ژوند او کړو وړو کې خلکو ته د هغې عملي نمونې وښیي .

ددې مقصد د تر سره کولو لپاره پرته له دې نه بله هيڅ چاره نشته چې په کوم اسلامي هيواد کې د دغه ستر او ارزښتناک کار د پيل ډبره کې نه ښودل شي ، د اسلام د بيا راژوندي کولو لپاره دغه يوازينی لاره ده چې په پای کې به په لنډه او يا اوږده موده کې د انسانی امت د رهبری او امامت چاري د دغی انقلابی ګروهی د پلويانو لاسته ورشی .

**د اسلام د بيا ژوندي کولو لار کومه ده ؟**

اوس دا پوښتنه پيدا کيږی چې د اسلام د احيای مجدد پيل څرنګه وی ؟ د دی پوښتنی لنډ ځواب دا دی چې لومړی دی يو صالح ټولګی مينځ ته راشي چې د دې ستر او انسانی کار د سر ته رسولو لوړ وکړی او بيا په پرله پسی او نه ستړی کيدونکو هلو ځلو د منزل په لور وړاندی لاړ شی او د جاهليت په دی بی سرو سمندر کې د يوه ځيرک او ماهر مانو په څير دغه د انسانيت د ارمانونو بيړی ساحل ته روغه ورسوی .

په دغه لوی سفر کې بايد دی دغه نړيوال او هر اړخيز جاهليت سره د اړيکو درلودلو په ترڅ کې په يوه ډول ځانګړی او جلا دريځ ولری او په بل ډول ، يو څه اړيکې هم ورسره ولری ، دغه صالح ټولګی چې د کوم منزل په لور وړاندی تګ کوی دوی ته بايد د خپلی لاری نښی او د لاری د واټن ( فاصله ) اندازه په پوره توګه څرګند وی چې د هغی په ليدلو د خپل ستر کار په ښه او بد ، طبيعت او د خپلی وظيفی په حقيقت او اهميت او د دغه اوږد سفر د پيل او ختم په خصوصياتو پوه وي .

نه يوازی دا څيزونه بايد وپيژنی بلکه هغه بايد په دی هم پوه وی چې د دغه جهان شموله جاهليت په مقابل کې د هغه دريځ څه دی ؟ په کومو څيزونو کې هغه له نورو انسانانو سره شريک دی او په کومو کې جلا دی ؟ دی په خپله د کومو ښيګڼو او صفاتو لرونکې دي ؟

او د شا وخوا جاهليت په کومو خصوصياتو سمبال دی ؟ او همدا رنګه د دی جاهلانو سره د اسلام په ژبه څنګه وغږيږی او پر کومو مسايلو ورسره خبری وکړی ؟ او په پای کې دی هغه ته دا هم معلومه وی چې په دی ټولو کارونو کې له کوم ځای نه او څه ډول لارښوونه لاسته راوړي ؟

د دغه اوږده منزل د لارې د نښو او واټن په پيژندلو کې د اسلامي ګروهي لومړى ماخذ سونږ سره مرسته کولاى شي ، له لومړي ماخذ نـه زمونږ مراد ( قرآنکريم ) دى ، د دغه اسماني کتاب بنيادي زده کړه مونږ تـه د دغې لارې نښې راښيي يا به د هغو بنيادي تعليماتو تصور مونږ تـه لارښوونه وکړي چې قرآن حکيم ددغه او څار او نيک تولي په زړه کې انځور کړي دي .

چې د هغې په واسطه الله جل جلاله په نړۍ کې د خپل حکمت او قدرت اريانوونکې پيښې وښودلې او يو ځل ، دغه تولي د انساني تاريخ تګ لاره بدله کړه او د هغه تګ لورى يې هغه خواته وګرځاوه چې د الله جل جلاله مشيت سره سم او برابر وُ .

## منتظر حقيقت

دا کتاب ما ، د هغه مخکښ او صالح تولي لپاره چې زه يې منتظر حقيقت ګنم ليکلى دى ، د دغه کتاب څلور بابونه زما له تفسير ( فى ظلال القرآن ) نه اخيستل شويدى ، چې ما پکې د موضوع د ارتباط او ضرورت له مخې ځينې شيان زيات او ترميم کړيدى .

له دى سريزى نه پرته نور ، اته بابونه ما په مختلفو وختونو کې ليکلى دى ، د قرآنکريم د ربانى نظر ، د ژوندانه د سمون په برخه کې به چې ما غور او فکر کاوه او په دغه وخت کې به د دغه ربانى کلام ځينى حقايق ماته راڅرګنديدل ، هغه مى د کاغذ پر مخ کښلى دى .

زما دا افکار په ظاهره خواره واره معلوميږى خو يوه خبره په دى تولو کې شريکه ده او هغه دا چې دغه نظريات د لارې نښې ( معالم فى الطريق ) دى ، ښکاره خبره ده چې د هرى نظريې د نښو همدا حال وى ، په عمومي ډول دغه ليکنه د معالم فى الطريق لومړى توک دى .

هیله ده څرنګه چې الله تعالی ماته د دی کتاب د لیکلو توفیق راکړ په دغه برخه کې به د نورو مجموعو توفیق او ځواک هم را په برخه کړی[1].

[1]- د نومیالی سید دغه هیله ترسره نشوه ځکه معالم فی الطریق د هغه وروستی تصنیف دی [ ژباړن ]

## لومړی فصل

## په قرآني اصولو روزل شوی او ښار نسل

د اسلام په نامه سربښندونکې باید د تل لپاره د اسلامي تاریخ یوه ځانګړې او مشخص اړخ ته په خاصه توګه پاملرنه وکړي ، ځکه چې د تاریخ دغه اړخ د اسلامي دعوت پر څرنګوالی او نوعیت باندې یو خاص اثر لري ، نو له دې کبله پکار ده چې د اسلامي بلنې ( دعوت ) تـوغ اوچتوونکې که په هر هیواد ، وخت او زمان پورې اړه لري ، د تاریخ په دغه اړخ ژور فکر وکړي .

د تاریخ دغه اړخ د دې ستر حقیقت څرګندوونکې دی چې اسلامي دعوت د الهي کتاب ( قرآنکریم ) د تعلیماتو په رڼا کې یو وخت داسې او ښار او غوره نسل روزلی ؤ چې ساری یې په اسلامي تاریخ کې څه چې په ټول انساني تاریخ کې هم نه موندل کیږي .

له دغه اوښار نسل نه زمونږ مراد د رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه کرام دي ، له دغه نسل نه وروسته په تاریخي دورو کې د اسلامي دعوت مدعیانو داسې نسل ونه روزلی شو ، سره له دې چې د تاریخ په هر پړاو کې دغه ډول غوره اشخاص موجود وو .

خو داسې هیڅکله هم نه دي شوي چې په دغه ډول افکارو او اخلاقو متصف خلک دې په یو زیاتِ شمیر په یوه سیمه کې را پیدا شوي او یا راټول شوي وي ، لکه څنګه چې د اسلام په لومړنیو وختونو کې را ټول شـوي وو ، دا یو داسې بدیهي حقیقت دی چې ثبوت یې پـه خپله د تاریخ پاڼې دي .

په دې کې یو خاص رمز پټ پروت دی مونږ باید تر هغې د تاریخ دغه بدیهي حقیقت په پوره غوره ولولو چې د دغه راز پـه اسـرارو پوه شو .

**له صحابه یې کرامو نه وروسته دغه ډول بې ساري تولي ، ولې مینځ ته رانغي ؟**

د اسلام د بلنې او لارښوونې اصول چې په کوم کتاب کې موجود دي ، هغه اوس هم له مونږ سره شته ، د دغه کتاب د وړاندې کوونکې هستې ،

رسول الله صلی الله علیه وسلم تعلیماتو احادیثو او پاک سیرت نمونی او اصول اوس هم داسی ، زمونږ په مخکې دی لکه څنګه چې د هغه وخت د لومړی اسلامي ټولنی په مخکې وو ، هغه چې بیا یې تر اوسه پوری د تاریخ په ستیج د رهبری او امامت څواک ونه مونده .

که مونږ دی مسئلی ته لږ ځیر شو نو دا توپیر به ډیر ژر راته څرګند شی چې ، دا ولی ؟ یوازی په همدومره توپیر چې په هغه وخت کې خپله رسول الله صلی الله علیه وسلم شخصاء د دوی امامت او رهبری کوله او اوس زمونږ په برخه دغه ویاړ نشته ، خو ایا یوازی همدغه توپیر د اسلام د بی ساری تنظیم د بیا نه راتګ علت دی ؟

که داسی وایې چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارک وجود د اسلامي دعوت د قیام او پرمختګ لپاره په هر حال او هر وخت و زمان کې بالکل ضروری او حتمی سوال وای نو الله جل جلاله به هیڅکله هم اسلام یو نړیوال دین او د ټول بشریت لپاره په هر وخت او زمان کې د نجات یوازینی لاره نه وای ګرځولی ، نه به یې اسلام ته د بشریت لپاره د الهی وروستنی پیغام خیثیت ورکاوه .

نه به یې د ځمکې پر مخ د ټولـــو انسانانو د ټولنیزو ، سیاسي او وټه ایزو ( اقتصادی ) ستونزو د حل ذمه واری تر قیامت پوری ورسپارله ، الله تعالی د قرآن حکیم د ساتلو ذمه په خپله کړیده دا ځکه چې هغه علیم او خبیر ذات په دی پوهیده چې اسلام له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه وروسته بیا هم را ژوندی کیدونکې دی ، او بشریت به په خپلو ښیګړو نیکمرغه کړی .

نو له همدی امله کله چې دغه دعوت درویشت کلنی ته ورسیده او د ځوانی په جوش وخروش کې و نو الله جل جلاله خپل محبوب پیغمبر صلی الله علیه وسلم د خپل ابدی رحمت ارامګاه ته وغوښته ، له هغه مبارک نه وروسته یې دغه دین ټولی نړی لپاره تر وروستی شیبی پوری جاری کړ .

زمونږ له سترګو نه د رسول مقبول صلی الله علیه وسلم ، د مبارک وجود نشتوالی د هغه معیاری او نمونه اسلامي ټولی د فقدان او نشته والی یوازینی علت نشی کیدلی .

## لومړۍ لامل ( علت )

نو بیا خو مونږ ته پکار دی چې د کوم بل لامل او سبب په لټه کې شو ، په دی لړ کې مونږ باید هغی منبع او ماخذ ته نظر واچوو چې په رڼایې د لومړیې اسلامي اوځار نسل د فهم او شعور سترګی رونی شوی وی ، ښایې په هغی کې به تغیر راغلی وی .

د هغه اسلوب او میتود څیړته هم باید پوره غور وکړو چې د صحابه یی کرامو په روزنه کې ترینه کار اخیستل شوی و ، ښایې په هغه میتود کې به څه بدلون راغلی وی ؟ له هغی چینی نه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو فهم او شعور حاصل کړی ؤ ، هغه یوازی او یوازی ، قرآن ؤ ، د رسول کریم صلی الله علیه وسلم احادیث او تعلیمات د دغی فیضه ډکې چینی شا وخوا ته راټوکیدلی ګلان دی .

کله چې له ام المؤمنین حضرت عایشه رضی الله عنها نه پوښتنه وشوله چې د حضور صلی الله علیه وسلم اخلاق څنګه وو ؟

نو هغی درنی میرمنی وفرمایل : کان خلقه القرآن ( د هغه مبارک اخلاق د قرآني تعلیماتو ژوندی نمونی وی ) ، لنډه دا چې قرآنکریم یوازینی چینه وه چې صحابه کرام تری خړوبیدل ، همدا د ژوند هغه بلنه او بی خطره لار وه چې هغوی د ژوند تر پایه پری مزل کاوه او خپلی پاکې موخی ( هدف ) ته پری ډیر ژر ورسیدل ، د هغوی د ژوند ټول کارونه د همدی کتاب قرآن په رڼا کې ترسره کیدل .

یوازی له ( قرآن ) نه د ژوند په چارو کې ګټی اخیستلو دا معنی نه لرله چې هغه وخت په دنیا کې د کوم بل تهذیب او ثقافت آثار موجود نه وو ، علمی څیړنی او ساینسي اختراعات موجود نه وو ، حقیقت دا دی چې د اوسنی تهذیب ټول مظاهر هغه وخت هم په مختلفو بڼو موجود وو .

د ساری په توګه د رومیانو تهذیب موجود وو ، د رومیانو د علم او حکمت او قانون او حکومتی سیستم نغاری هره خوا ډنګیدلی ، چې اوس هم د اروپا تهذیب او تمدن پر هماغه بنسټ ولاړ دی او یا لږ تر لږه د هماغه پخوانی تهذیب پرمختللی بڼه ده .

د یونانی تهذیب میراث هم د منطق ، فلسفی ، ادب او فن په بڼه کې موجود و چې تر اوسه پوری د لویدیځو افکارو یوازینی ماخذ دی ، د عجمو د تهذیب او تمدن ، ارټ ، شاعری ، پخوانی ادب ، ګروهی او حکومتی نظامونه انګازی هم هره نوا خوری وي .

نور هم ډیر تهذیبونه د جزیره العرب شا وخواته موجود وو ، مثلا د هندی او چینی تهذیب او رومی او عجمی تهذیب دواړو ورمی د جزیره العرب له ریګستانونو سره سره د شمال او جنوب لور ته هم الوتلی ، له دی نه پرته د یهودیانو او مسیحیانو ابادی په خپله د جزیره العرب په مینځ کې وي .

نو له دی امله مونږ په پوره باور دا خبره کولی شو چې د صحابه یې کرام ، لومړنی مخکښ اسلامي نسل ، د استفادی کولو یوازینی ماخذ له دی امله ( قرآن ) نه و چې هغوی له فکری جمود سره مخامخ وو او یا له نورو تهذیبونو سره بالکل ناشنا وو .

بلکه له ( قرآن ) نه د دینی اصولو په فهم او درک کې د یوازینی ماخذ په توګه استفاده کول د یوی ارادی او غوڅی پریکړی پر اساس و ، زمونږ د دی خبری ثبوت په خپله د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم هغه وینا ده چې حضرت عمر رضی الله عنه ته یې کړی وه .

یوه ورځ رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د حضرت عمر رضی الله عنه په لاس کې د تورات یو څو پاڼی ولیدی ، هغه پدی کار متاثر شو او وی فرمایل : والله لو کان موسی حیا بین اظهرکم ما حل لله الا ان یتبعنی [1]

( په الله جل جلاله سوګند چې که په خپله موسی علیه السلام هم نن ستاسی په ډله کې وای ، نو هغه به هم ماته غاړه ایښی وای ) .

له دی پیښی نه په ډاګه څرګندیږی چې نبی صلی الله علیه وسلم ارادتا غوښتل چې د اسلام د دغه لومړی او څار نسل ذهن او فکر یوازی د قرآن کریم د علم او برکت له چینی نه خړوب شی ، د هغه صلی الله علیه وسلم

---

۱ - دغه روایت د حضرت جابر رضی الله عنه دی او حافظ ابو یعلی د حماد او شعبی په استناد رانقل کړی دی [ لیکوال ]

منظور له دي کار نه دا و چې د دغه بې مثله نسل زړونه چې اوس د روزنې په مرحله کې دي او د راتلونکې ستر بوج به يې پر اوږو وي يوازې د قرآنې هداياتو او لارښوونو له مينې نه ډک شي او په قرآن کې د ښوول شوي نظام له مخې د خپل ژوند چارې سمبال کړي .

نو له دې امله رسول اکرم صلى الله عليه وسلم د حضرت عمر رضى الله عنه په ليدلو چې د قرآن په ځاى يې بل ماخذ لوسته ، په غصه شو ، په حقيقت کې رسول الله صلى الله عليه وسلم غوښتل داسې يو بې مثله نسل وروزي چې وروسته له ده نه د بشر د زعامت او امامت دروند رسالت سر ته ورسولى شي .

داسې نسل چې زړه او دماغ يې بالکل پاک او سوچه وي ، د احساس او شعور ښيښه يې تکه سپينه او شفافه وي ، دومره پاکه او شفافه چې د قرآن د ښوونې او روزنې له اصولو نه پرته د نورو افکارو په دوړو بالکل خړه شوې نه وي .

دغه نسل يا ټولى ، په تاريخ کې يو بې مثاله او ځانګړى تنظيم ګڼل شويدى او علت يې هم دا دى چې د هغوى ښوونه او روزنه او د دينې علومو حصول يوازې له يوه ماخذ نه شويدى ، خو وروسته بيا داسې وخت راغى چې د دغې يوازينې الهى چينې په رڼو اوبو کې ځينو ، د نورو چينو ، خړې اوبه هم ورګډې کړې ، وروستنيو نسلونو چې له کومې چينې نه د علم زده کړې ته ملا وتړله نو د هغې چينې دا حال و چې د يونانې فلسفې ، منطق ، عجمى کيسې ، اسرائيليات ، مسيحى الهيات او د نورو تمدنو او مذهبونو د چينې څاڅکې هم ورلويدلى وو ، چې هغه پخوانى خوند او رنګ يې ورپاتې نشو .

له همدې امله د قرآنکريم پر تعبير او تفسير باندې هم ددغو افکارو او نظريانو سيورې ولويده ، د کلام علم ترې متاثر شو ، فقه او د فقې اصول هم ترې بې تاثيره پاتې نشول ، تر لومړې غوره نسل وروسته چې څومره نسلونه راپورته شول د هغوى علمى تنده د همدې مخلوطې چينې له اوبو خړوب شوه .

چې په نتیجه کې د صحابه کرام په څیر خالص او مخلص اسلامي ټولې بیا منځ ته رانغی ، مونږ دا خبره بی له شکه او شبهې نه کولای شو چې د اسلام د لومړنی ممتاز او غوره نسل او د وروستنیو نسلونو د ښوونی او روزنی ترمینځ د توپیر بنیادی وجه په وروستیو وختونو کې د اسلام د هدایاتو او لارښوونو په یوازینی منبع کې د نورو ډول ډول ماخذونو اختلاط او ګډون دی چې ځینی یې مونږ پورته یاد کړه .

**دویم لامل**

د دی توپیر د پیدا کولو یو بل اساسی عامل هم موجود دی ، هغه دا چې په کوم ډول چې صحابه کرام د قرآن له فیض وبرکت نه مستفید کیدل ، په وروستیو وختونو کې په هغی کې هم بدلون راغی ، اصحابو به د قرآن کریم تلاوت د دی لپاره نه کاوه چې خپل معلومات زیات کړی ، خپل ادبی ذوق تسکین کړی او یا ذهنی تفریح وکړی ، له هغو حضراتو نه یوه هم هیڅکله په دی غرض قرآن نه زده کاوه چې خپل عمومی معلومات اضافه کړی یا د علمی او قانونی چارو او مسایلو په زده کړه خپل پخوانی علم ته وده ورکړی یا د خپل علمی شخصیت د کوم اړخ کمی پوره کړی .

هغوی قرآن یوازې او یوازې د دی لپاره زده کاوه چې د شخصی ژوند په هکله د ځمکې او اسمانونو خاوند څه ډول لارښوونه کړیده ؟ په هغه ټولنه کې چې دوی ژوند کوی د ټولنیز ژوند لپاره څه ډول احکام موجود دی ؟ د ژوند د هغه مخصوص او ځانګړی دود لپاره چې دی او د ده ملګری یې مخکښ دی .

د الله تعالی له خوا څه ډول تفصیلات ورکړل شویدی ؟ د دغه غوره او مخکښ ټولی هر وګړی د یوه منظم او باد سپلینه سپایی په توګه د قرآن احکام بی له کوم ځنډه منل او خپل ژوند دود به یې له هغی سره سماوه ، هغوی به په یو ځل مطالعه کې د قرآن ډیر آیتونه ، نه لوستل ، ځکه هغوی په دی پوهیدل چې په دی توګه به پر، یو دم د هغوی په اوږو د ډیرو فرایضو او احکامو بوج راپریوزی .

هغوی به په یو ځل ایله د لسو آیتونو تلاوت کاوه ، هغه به یې په یادو زده کول او په خپل ژوند کې به یې عملي کول ، په دی توګه به په پای کې هغه د قرآني هدایاتو یو ژوندی مثال ګرځیدلي و ، د هغه وخت د دغه تعلیمي میتود تفصیل مونږ ته د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه له یوه روایت نه را رسیدلی دی .[1]

د الله جل جلاله د احکامو په منله کې به د هغو حضراتو نه یوازې روحاني تنده ماتیدله بلکه د الله جل جلاله د کتاب د علم او عرفان بی شمیره لارې به یې هم پر مخ خلاصیدلې ، که چیرې هغوی یوازې د مجرد علم او خبرتیا لپاره قرآن لوستلی وای نو هیڅکله به هم هغوی ته دغه روحاني نشاط او خوښي نه وای ور په برخه شوې ، نه به یې د علم او عرفان په ناپایه سمندر کې د ساحل په لور لامبو وهلای .

د الله جل جلاله د احکامو په وړاندې د سملاسي اطاعت احساس د هغوی لپاره د قرآن په لارښوونو باندې عمل ډیـر اسانه کړی وُ ، د الله جل جلاله احکام د دې پر ځای چې د هغوی پر اوږو بوج شي بې کچه ورته اسانه شوي وو ، په اسانۍ سره یې د خپل ورځني ژوند جز ګرځولي شول .

د قرآن احکام دومره د هغوی له روح سره اخښل شوي وو چې ټول ژوند یې د قرآن د لارښوونو مظهر وو ، هغوی د یوه ثقافت ژوندي نمونې وې چې پــه ذهني تمایل او د کتاب په پاڼو پــورې محدود نه و ، بلکه د یــوه داسې عملي نهضت بنه یې غوره کړې وه چې د ټول بشریت د ژونـد لاره یې وارِه وله .

قرآن د خپل فیض او برکت دروازې د هغو خلکو پر مخ خلاصوي چې د هغه درشل ته په داسې احساس او جذبه حاضر شي چې په قرآن پوه شم نو عمل به پرې کوم ، قرآن د دې لپاره نه دی نازل شوی چې هغه دې د ذهني خوند او ذوق د تسکین کتاب وي او یا دې یوازې د فني او ادبي شاهکار

---

۱ - د حضرت عبدالله بن مسعود دغه روایت حافظ ابن کثیر د خپل تفسیر په سریزه کې رانقل کړیدی [ مؤلف ]

په توګه نړیوالو ته اسمانی سوغات وی او یا دی د پخوانیو کیسو او تاریخ یو دفتر وی .

سره له دی چې په ضمنی توګه د قرآن د دغو ټولو ښیګړو لرونکې دی ، خو د نزول مقصد یې دا دی چې له هر څه نه مخکې( قرآن ) د ژوند کتاب دی ، هغه د انسان لارښود دی ، د دی لپاره راغلی دی چې د ځمکو او اسمانونو خالق خپلو بندګانو ته د ژوندانه څه ډول دود غوره ګڼلی دی .

د ژوند د دغه مقصد او هدف په نظر کې نیولو سره قرآن ورو ، ورو ، د خپلی روزنی په مخصوص انداز صحابه یې کرام وروزل او په وار وار یې ورو ورو هغوی ته خپل احکام او هدایات نازل کړل ، الله جل جلاله د ښوونی او روزنی دغه تدریجی او تعمیری اصولو ته د اشاری په ترڅ کې فرمایې :

وَقُرْآنًا فَرَقْنَاهُ لِتَقْرَأَهُ عَلَى النَّاسِ عَلَى مُكْثٍ وَنَزَّلْنَاهُ تَنزِيلًا [بنی اسرائیل : ۱۰۶ آیت]

( او دا قرآن مونږ لږ لږ نازل کړیدی چې تاسو یې په وقفو وقفو خلکو ته واوروی او هغه مونږ په درنګ او مکث په تدریج سره نازل کړیدی )

قرآنکریم ، یو ځلی ندی نازل شوی ، کله به چې په ټولنه کې نوی نوی اړتیاوی مینځ ته راغلی ، د خلکو فهم او شعور به پرمختګ کاوه ، عام انسانی ژوند د پرمختیا پړاوونه وهل ، اسلامي ټولنی ته به چې د ژوند په عملی ډګر کې نوی ستونزی او مسئلی وړپیښی شوی نو ورسره به د هغی د حل او پریکړی لپاره قرآن هم نازلیده یو آیت یا څو آیتونه به د یوی مخصوصی پیښی او حالاتو په مناسبت نازلیدل او هغه ستونزی به یې حلولی ،د عمل لایحه او ضوابط به یې ورته جوړول .

د هغوی د شعور او احساس او معاملاتو تیروتنی به یې سمولی ، په هره معامله کې به یې له الله جل جلاله سره ده هغوی د ژوندانه د چارو اړیکې پیدا کولی ، هغوی به یې له خپل پروردګار سره د هغو صفاتو په رڼا کې اشنا کول چې د کائناتو په هر اړخ کې یې تاثیرات لیدل کیږی .

له همدی امله هغوی هم دغه حقیقت په څرګنده احساس کړی و چې د ژوند په هره شیبه کې د الله تعالی تر لارښوونی او کتنی لاندی ژوند ترسره

کوي او د الله جل جلاله د رحمت تر سیوری لاندی په ډاډه زړه دژوند مزل کوي ، د همدغه احساس له امله د هغوی عملی ژوند د هغه مقدس اسمانی ژوند دوی ( قانون حیات ) په اصولو برابر روان و چې د الله جل جلاله له خوا به ورته ښوونه کیدله .

نو له دی امله معلومه شوه چې دغه قانون ( زده کړه د عمل لپاره ) له اصحابو نه دغه ډول غوره او ممتاز ټولګی جوړ کړی و او وروستنی نسلونه چې د کوم اصل په رڼا کې وروزل شول هغه ( زده کړه د ښیړنی او تفریح نه عبارت وه ) بی له شکه دا توپیر هغه دویم اساسی عامل دی چې وروستنی نسلونه یې له لومړنی بی مثاله نسل سره لری .

**دریم لامل**

دریم لامل هم په دغه تاریخی حقیقت کې بی تاثیره نه دی ، د دی لامل ښیړنه هم په دی برخه کې مناسبه ښکاری ، د رسالت په وخت کې به چې کوم سړی د اسلام اصولو ته غاړه ایښوده نو هغه به د خپل جاهلیت پر خوی ، یو دم د بطلان کرښه راښکله ، کله به چې هغه د اسلام دایره کې قدم ایښوده نو داسی احساس به ورسره و چې هغه د خپل ژوند د کتاب یو نوی باب پیل کوی .

او یوه نوی پړاو ته چې له پخوانی جاهلی ژوند سره رڼ توپیر لری ورننوځی هغه به وروسته له دی د جاهلی ژوند ټولو اعمالو ته په سپکاوی او شک وشبه کتل ، پر هغه به دغه احساس غالب و چې هغه ټول تیر کارونه او ماحول ناولی او غیر انسانی ؤ ، د اسلام او هغو ترمینځ هیڅ ډول مناسبت او جوړښت نشته ، نو لدی احساس او قلبی ویری سره به هغه د اسلام په لور هغه کوله چې هلته یې د لارښوونی په نور د زړه تیاره ګوټونه روښانه شی .

او که کله به نفس اماره پر هغه زور ور شو او پری ایښو عادتونو خواته به یې تمایل پیدا شو او یا به یې د اسلام د احکامو په عملی کولو کې د لټی او تنبلی احساس وکړ ، نو سمدستی به د ګناه له احساس او د الله جل جلاله له ویری ناکراره شو او توبه به یې وکړه ، په دی لټه کې به شو چې د

خپل روح د پاکوالي او تطهیر لپاره بیرته د قرآن کریم لارښوونو ته مخه وکړي او د خپل ژوند په هره برخه کې د هغې د عملي کولو هڅه وکړي .

کوم سړی به چې د اسلام لمنی ته پناه ور وړه نو وروسته له هغې به د هغه د جاهلي ژوند او نوی اسلامي ژوند د اړیکو ترمینځ بالکل یوه ستره فاصله موجوده وه ، هغه به دغه کار شعورا په خپله خوښه او د قرآن د لارښوونو سره د مینی او درناوی له امله کاوه ، نو له دی امله به د هغه اړیکې د شا وخوا جاهلي ټولنی له نورو خلکو سره بالکل شلیدلی او په مکمله توګه به یې اسلام ته غاړه اینښوده .

سره له دی چې د سوداګری او ورځنی ژوند په چارو کې به د هغوی اړیکې له مشرکینو سره موجودی وی ، خو دغه کار به د هغه پر مسلمانی هیڅ اثر نه غورزاوه ځکه چې د احساس او شعور اړیکې او یوازی د ژوند د کارو بار اړیکې دوه جلا جلا ځیزونه دی .

له جاهلي ماحول ، جاهلي دود او رواج ، جاهلي افکارو او نظریاتو او جاهلي خوی او عادتونو نه له یوی مخی لاس اخیستل او د توحید لمنی ته پناه ور وړل په حقیقت کې یوه ستره پریکړه وه ، چې د اسلام د غوره لارښوونو تاثیر یې په ښه توګه ځرګنداوه .

هغه به د نړۍ په هکله د جاهلیت تصور یو مخیزه پریښوده او د اسلام تصور به یې خپلاوه د یوه نوی قیادت تر سیوری لاندی به له اسلامي تنظیم سره یو ځای کیده ، خپل ځان به یې په پوره وفاداری اطاعت او سرښندنه دغی نوی مشرتابه او قیادت ته وقف کړ ، دا هغه ستره پریکړه وه چې د هغه د ژوند تګ لاره به یې له نور لارونه چوره بیله کړه ، له دغی پریکړی نه وروسته به هغه د ژوند نوی سفر پیل کاوه ( آزاد سفر ) د جاهلي روایاتو دودونو او رواجونو له بوج نه بالکل آزاد سفر .

په دغه سفر کې به که کوم مسلمان له ستونزو سره مخامخ کیده ، هغه د ازمیښت هغه ستونزی وی چې د جاهلیت لاسونو به هغه ته رسولی ، خو هغه به د ازمیښت دغه سخته دوره په صبر ، زغم او خندا تیروله ، ځکه

هغه به د حق په لاره د تلو هوډ مخکې کړی و ، نو ځکه به د جاهلیت تصوراتو او جاهلی تولنی ظلم او ستم د هغه د ارادی مانې نشوای نړولای .

**زمونږ لپاره د کار کولو سمه لار کومه ده ؟**

نن هم مونږ له جاهلیت سره لاس په ګریوان یو ، دا جاهلیت هم د هغه جاهلیت په څیر دی چې اسلام په لومړنیو وختونو کې ورسره مخامخ و ، بلکه تر هغی لا زیات ناوړه ځکه دی چې زمونږ ټول ماحول د جاهلیت په منګلو کې ایسار دی ، زمونږ په افکارو عقایدو ، عادتونو ، ثقافت او د هغی ماخذونه ، ادب ، هنر ، موجوده حکومت او قوانینو کې هم د جاهلیت روح ورننوتی دی .

ان تردی هغه شیان چې مونږ له ناپوهی نه ورته د اسلامي ثقافت ماخذ ، اسلامي فکر او اسلامي فلسفه وایو هغه ټول د جاهلیت پیدا وار دی ، همدا وجه ده چې اسلامي قوانین مو په زړونو کې کور نشی جوړولی ، زمونږ اذهان او زړونه د اسلام په پاکو وړانګو نشی روښانه کیدلای ، او په ټولنه کې مو اوس هغه ډول غوره او مثالی تنظیم او انسانان نشی را پیدا کیدلی لکه څنګه چې د اسلام په لومړنیو وختونو کې مینځ ته راغلی وو .

نو له دی امله مونږ ته پکار ده او د اسلامي نهضت غوښتنه هم همدا ده چې د نهضت د روزنی او مبارزی په موده کې له هغو ټولو جاهلی صفاتو او کړو وړو نه ځانونه خلاص کړو چې پکې اوسیږو ، او ان تردی چې لا استفاده هم تری کوو .

پر مونږ لازمه ده چې له پیل نه د الهی فیض او برکت له هغی چینی نه ځان خړوب کړو چې لومړنی غوره اسلامي ټولی تری ځان خړوب کړی و ، او هغه چې الله جل جلاله یې له نورو خړو اوبو نـــه د اختلاط او ګډون ضمانت کړیدی .

قرآنکریم چې تل به پاک وی ، مونږ له پکار ده چې د کایناتو او انسانانو د ژوند دود په حقیقت او د دی دواړو پـــه خپل مینځی اړیکو او بیا د الله تعالی له وجود سره د دی ټولو اړیکو او مناسباتو تصور یوازی د الهی تلپاتی ( جاویدان ) چینی نه واخلو .

په دې لړ کې دا هم ځانته څرګنده کړو چې د ژوند په هکله سم تصور څنګه دی ؟ زمونږ دود او اخلاق څه ډول دی ؟ د حکومت نظام مو باید څه ډول وی ؟ سیاست او اقتصاد به مو پر کومو بنسټونو ولاړ وی ؟ لنډه دا چې د ژوند په هره برخه کې باید له ، همدې کتاب نه لارښـوونې ترلاســه کړو ، دا مو باید په یاد وی کله چې د الهی ګټوری چینی ( قـرآن ) نه خپله علمی او دینی تنده ماتوو او ځان پــه پورتنیو مسایلو خبروو نو له مونږ ســره باید دا جذبه ( علم د عمل لپاره ) موجــوده وی او د همــدغه احساس تر تاثیر لاندی یې ولولو ، نه د تفریح او ادبی تندی د ماتولـو او یا د بحث او خیړنی د شوق لپاره .

مونږ باید قـــرآن ته داسی رجوع وکړو چې راتــه معلومــه شي چې هغه ( قرآن ) له مونږ نه د څه ډول انسان جوړیدلو غوښتنه کوی ، چې مونږ هماغه ډول انسانان له ځانه جوړ کړو ، دا بیله خبره ده چې د حقیقی مقصد ( دینی اصول ) د حاصلولو په دوران کې به مونږ ته د قرآنی فنی او ادبی حسن او کمال هم راڅرګند شی .

زړه وړونکې او هښوونکې کیسی به یې زمونږ په زړه کې کور جوړ کړی ، د قیامت د مناظر ویرروونکې بڼه او لمبو تاو به هم احساس کړو .

او د وجدانی منطق په بڼ کې به یې هم ګلونه بوی کړو ، لنډه دا چې هغه ټول خوندونه چې د علم وږی تږی ورپسی لا لهانده او د ذوق خاوندان ورپسی ستومانه دی ، بې له شکه به زمونږ په برخه شی ، خو زمونږ د خیړنی او تحقیق اصلی مطلب او مقصد دا نه دی ، زمونږ مقصد دا دی چې قرآن رانه څه ډول عملی ژوند غواړی ؟

د ژوند او کایناتو په هکله هغه اجمالی تصور څه ډول دی چې قرآن مونږ په هغی معتقد کوی ؟ د الله جل جلاله په باره کې راته څه ډول شعور او احساس تلقین کوی ؟ څه ډول اخلاق یې خوښ دی ؟ د ژوند د سمون لپاره پر بشریت کوم ډول حکومت او قانون خوښوي ؟

## ه جاهلیت سره د اړیکو شلول

دا هم زمونږ وظیفه ده چې په خپل شخصي ژوند کې د جاهلي ټولنې له کړاو ، ربړونې او جاهلي تصوراتو له نفوذ او تاثیر او همدا رنګه د جاهلي روایاتو ، دودونو او لیډر شپ له تسلطه نه ځان چور آزاد کړو .

زمونږ کړنلاره د جاهلي ټولنې او نظام سـره سوله او مصالحت ، Compromise) نه ده او نه مونږ له هغه سره وفاداري کولای شو ، جاهلي ټولنه د خپلو جاهلي اوصافو او ځانګړتیاوو له امله ، د دې وړ نه ده چې مونږ دې ورسره د سولې او ښو اړیکو درلودلو هیله ولرو .

نو له دې امله تر هر څه د مخه مونږ باید لومړی ځان بدل کړو چې بیا ټولنه بدله کړای شو ، زمونږ لومړنی هدف د ټولنې په عملي ژوند کې انقلاب راوستل او دٙ جاهلي نظام جرړې له بیخه ایستل دي ، ځکه چې په بنیادي توګه د اسلام له اصولو سره ضد واقع شویدي .

او همدا رنګه د هغه چا پر ضد قیام چې د جبر او تشدد له وسایلو نه زمونږ پر ضد کار اخلي او د دغه ډول نظام تر سیورې لاندې مو له ژوند نه بې برخې کوي چې الله تعالی یې له مونږ نه غوښتنه کوي .

د ژوند په دغه نوې سفر کې باید تر هر څه د مخه زمونږ لومړی قدم دا وي چې مونږ د جاهلي ټولنې د ټولو اصولو او نظریو دورکولو او پر هغې د برې میندلو هڅه وکړو ، له جاهلي ټولنې سره د سازش او سودا بازۍ لپاره مونږ په خپل اسلامي ژوند دود او نظریاتو کې د وینبته هومره تغیر او بدلون هم رانه ولو .

داسې خبرې باید زمونږ په خیال کې هم ونه ګرځي ، ځکه انحرافات په لومړي سر کې له ډیرو کوچنیو اصولو نه بیلیږي ، د جاهلیت لاره بیله ده او زمونږ بیله ، که مونږ یو قدم هم له جاهلیت سره واخیسته نو بې له شکه به مو د خپل ژوندانه د نظام د رسۍ سر هم له لاسه خوشې شي او د حق لاره به هم ورکه کړو .

مونږ باید په دغه سخته او اغزنه لار کې جبر وتشدد ستونزې او کړاوونه په سره سینه وزغمو ، تردې لا هم باید سترې قرباني ورکړو ، که مونږ په

ريښتيني توګه د هغی لاری مسافران يو چې له مونږ نه مخکې پری د اسلام نوميالي زامن تللی وو .

او که چيرته مونږ په رښتيا د هغو پاکو انسانانو په قدم قدم کيښودل غواړو چې الله جل جلاله د هغوی په واسطه خپل پاک او تر ټولو لوړ نظام د نړۍ پر مخ خپور کړ او هغوی ته يې د جاهليت په وړاندی بری او نصرت ور په برخه کړ .

نو بيا خو مونږ بايد دا ټولی ستونزی او کړاوونه په ورين تندی وزغمو ، مونږ د الله جل جلاله د رضا په وړاندی د خپلی خوښی خاوندان نه يو ، نو له دی امله غوره خبره دا ده چې هر وخت په دی مسئله خبر واوسو چې زمونږ د کار د ميتود فطرت او مزاج څنګه دی ؟

زمونږ د مسلک دريځ او روحيه څه ډول ده ؟ او د هغی لاری لوړی او ژوری کومی دی چې د هغی په پوهيدلو مونږ د جاهليت له تورتم نه په داسی بری راوتلی شو لکه څنګه چې د صحابه و کرامو غوره او ممتاز ټولی له دغه ستر ازميښت نه په بری راوتلی ؤ .

## دويم فصل

# د قرآن د انقلاب لار

## د مکې دورې بنيادي مسئله

د قرآنکريم ، د مکې سورتونو برخه د ديارلس کلونو په موده کې پر رسول الله صلی الله عليه وسلم باندې نازل شوه ، په دغه ټوله موده کې قرآن کريم ، يوازې همدا يوه مسئله تر بحث او څېړنې لاندې نيولې وه ، په نوعيت کې يې هيڅ ډول بدلون رانغی .

خو د بحث او ميتود اندازه به يې په پرله پسې توګه بدليده ، قرآن هر ځل د دې مسئلې په وړاندې کولو کې له نوي اسلوب او طرز نه کار اخيستی دی ، هر ځل به داسې احساسيده چې ګنې دا مسئله د لومړي ځل لپاره تر څېړنې لاندې نيول شويده .

د قرآنکريم ټوله مکي دوره ، د همدې مسئلې د ستونزو د حل لپاره وقف شويده ، د قرآن په نظر دغه مسئله ، د دې نوي آسماني دين لپاره تر ټولو ستر او لومړۍ درجه ارزښت لري ، ډيره ستره مسئله وه ، اساسي او اصولي مسئله وه .

د ګروهې ( عقيدې ) مسئله وه ، دغه مسئله له دوه سترو نظريو نه جوړه شوې وه ، يو د الله جل جلاله الوهيت او د انسان بندګي او دويم د دواړو ترمينځ په خپلو کې سره د اړيکو او روابطو نوعيت ، قرآنکريم په دغه بنيادي مسئله کې انسان ته د انسان په حيث خطاب کاوه ، ځکه چې دا داسې مسئله وه چې له ټولو انسانانو سره يې يو شان اړيکې درلودې .

که هغه انسان به په عربو کې اوسيده او که په عجمو کې، د قرآن د نزول د زمانې انسانان وو او که د را وروسته زمانې ، دا يوه داسې انساني مسئله وه چې د ترميم او تغير پکې هډو سوال نه پيدا کيده ، دا په کائناتو کې د انسان د وجود د پايښت مسئله ده ، د انسان د عاقبت مسئله ده ، د

همدې مسئلې له مخې دا څرګندیږي چې د انسان دریځ او مقام په نړۍ کې څه دی ؟

او په کائناتو کې له نورو مخلوقاتو سره د ده تعلق څه دی ؟ او په خپله د کائناتو او موجوداتو له خالق سره د ده څه اړیکې دي ؟ دا د مسئلې هغه اړخ دی چې د هغې له امله په همدې مسئله کې هیڅ بدلون نه شي راتلی ، دا ځکه چې دا مسئله د کائناتو او د کائناتو د یو ډیر کوچني جز " انسان " سره نیغ په نیغه اړیکې لري .

د مکي دورې په ژوند کې، قرآن انسانانو ته دا ښودله چې د ده د وجود او شا وخوا خواره واره جهان د پیدایښت اصلي حقیقت څه دی ؟ هغه انسان ته دا وایي چې دی څوک دی ؟ له کومه راغلی دی ؟ او د څه لپاره راغلی دی ؟ او په پای کې به چیرته ځي ؟ دی خو معدوم و ، کومې هستۍ د وجود د خلعت په ښښلو ونازاوه ؟ کومه هستۍ به د ده ژوند پای ته ورسوي .

او د ژوند له پای نه وروسته به له څه ډول انجام سره مخامخ کیږي ، قرآن انسان ته دا هم وایي چې د دغه ( وجود ) حقیقت چې دی یې ویني او احساسوي یې څه دی ؟ او هغه کومه هستي ده چې دی یې په غیاب کې د قدرت مظاهر ویني خو په سترګو یې نشي لیدلای ؟ دغه طلسماني کاینات چا مینځته راوړه ؟ څوک یې مدبـر او اداره کوونکې دی ؟ څوک یې په حرکت راولي ؟ څوک هـر ځل ورتـه نـوی نـوی کمیس وراغونـدی ، د دغو تغیراتو د رسۍ سـر د چا په لاس کې دی ، چې هر بینا سـړی یې لیدلای شي ؟

قرآن ده ته دا هم ور زده کوي چې د کایناتو له خالق سره به د ده رابطه څه ډول وي ؟ او په خپله کایناتو په هکله دی څه روش ولري ؟ او له دې سره دا هم ورښیي چې د انسانانو خپل مینځي اړیکې دي څه ډول وي ؟

دا وه هغه اصلي او اساسي مسئله چې د انسان پایښت او وجود او د ژوند راشه درشه یې پر چورلیځ چورلي ، ترڅو چې دنیا ودانه وي په دې ستری مسئلې پورې به د انسان پایښت او وجود تړلی وي ، د دې مسئلې په څیړنه او سپړنه کې د قرآن د مکې دورې پوره ۱۳ کاله تیر شول ، د دې لپاره چې

د انساني ژوند بنيادي مسئله همدا ده ، له دې وروسته چې څومره مسايل موجود دي هغه د همدې مسئلې د تقاضا له مخې پيدا کيږي ، د نورو مسايلو حيثيت د دې مسئلې په مقابل کې له جزئياتو نه زيات ارزښت نه لري ، قرآن د خپل مکي دور په دعوت کې همدغه مسئله اساسي او محوري مسئله ګڼلې ده .

هيڅکله هم په هغه وخت کې د ژوند د نظام په نورو برخو ضمني او فرعي بحثونه ندي شوي ، تر هغې پورې يې له دغو مسايلو سره تماس نه دی نيولی ترڅو چې الهي حکم نه و راغلی چې اوس د دې مسئلې د تشريح او توضيح حق ادا شويدی .

په دغه وخت کې د توحيد دغې مسئلې د الله جل جلاله د هغه غوره ټولې په زړونو کې په پوره توګه ځای نيولی ؤ ، چې الهي قدرت هغوی د دين د رامنځته کولو او قيام وسيله ګرځولي وو او د هغوی په لاسونو يې په عملي ډول د خپل دين د خپرولو پريکړه کړې وه .

هغه څوک چې د حق دين د بلنې او خپرونې په نيت راپورته کيږي او په دنيا کې د يوه داسې نظام جوړول غواړي چې په عملي توګه د دين نمايندګي وکړای شي ، هغوی بايد په دې ستر حقيقت د ( توحيد عقيده ) بيا غور وکړي ، همدا هغه حقيقت دی چې قرآن د هغې د پوخوالي او کلکوالي لپاره د مکي ژوند پوره ديارلس کاله تير کړل ، په دغه اوږده موده کې يې لږ تر لږه يو ځل هم د لږې مودې لپاره له دې مسئلې نه پام بل خوا ونه ګرځاوه ، او د ژوند د قانون په هکله يې نور مسائل ونه څيړل ، نه يې د هغو قوانينو او احکامو د بيانولو ضرورت احساس کړ چې په راتلونکې کې په اسلامي ټولنه کې نافذ کيدل .

## د رسالت د کار پيل له همدې مسئلې نه شوی و

دا د الله جل جلاله حکمت ؤ ، چې د رسالت د کار پيل له همدې مهمې مسئلې نه چې د ( عقيدې او ايمان ) مسئله وه وشوه او د اسلامي دعوت د ملا تير حيثيت يې غوره کړ يعنې رسول الله صلی الله عليه وسلم د حق په لاره کې لومړی قدم له همدې مسئلې نه اوچت کړ او ويې فرمايل :

( ای خلکو ! شاهدي ورکړی چې له الله جل جلاله نه پرته بل الله نشته ) .
بیا يې په همدې بلنه خپل ټول وخت تیر کړ چې ، انسانان له خپل حقیقي پروردگار نه خبر کړي او یوازې يې د هغه د بندگۍ په لاره بوځي .

که په یوه سرسري نظر او د انساني محدود عقل په رڼا کي سړی د عربو ژوند ته وگوري نو څرگنده به شي چې عربو په اساني سره دغې مفکورې ته غاړه نه ایښوده ، عرب د خپلې پوهې په برکت د ( اله ) او ( لا اله الا الله ) په مفهوم تر هر چا ښه پوهیدل ، هغوی ته ښه څرگنده وه چې له الوهیت نه مطلب ، ( اعلی حاکمیت ) دی ، هغوی پدې هم ښه خبر وو چې یوازې الله تعالی ته د الوهیت مخصوصول په ښکاره توگه همدا معنی لري چې اقتدار او حاکمیت به په مکمله توگه د کاهنانو ، پنډتانو ، د قبایلو د سردارانو او نورو امیرانو او حاکمانو له لاسه ووزي او د الله جل جلاله حکم او حکومت ته به راجع کړای شي .

د انسان په زړه او ضمیر ، مذهبي شعایرو او مناسکو او همدا رنگه د ژوندانه په معاملاتو ، پانگې او شتمنۍ ، عدل او قضا ، په ارواحو او اجسامو لنډه دا چې پر هر څه باندې به یوازې او یوازې د الله جل جلاله قدرت حاکم وي او بس .

هغوی ښه پوهیدل ، چې د ( لا اله الا الله ) اعلان په حقیقت کې د دنیاوي اقتدار پر خلاف یو چلینج دی چې د الوهیت تر ټولو ستر صفت ( حاکمیت ) باندې يې په ناروا توگه خیټه اچولې ده ، دا په حقیقت کې د هغو ټولو قوانینو او نظامونو پر خلاف د بغاوت اعلان و چې د حاکمیت د حق د قبضې له مخې مینځ ته راغلي وو ، د هغوی ټولو قوتونو پر ضد د جنگ اعـلان دی چې د خپلو جوړو کړو شـریعتونو او قوانینو په زور په دنیا کې د ( لمن الملک ) نغارې ډنگوي .

عرب د خپلې ژبې په باریکیو او مفاهیمو ښه پوهیدل او د لا اله الا الله حقیقي مفهوم يې ښه تر ادرک کړی وُ ، له هغوی نه دا خبره هم پټه نه وه چې د هغوی له خپل خانه جوړ کړی نظام ، رهبري او قیادت سره دغه دعوت څه ډول رویه کوي ، له همدې امله هغوی دغه دعوت یا په بله وینا د انقلاب

پیغام ته له داسې سختې غصې او میرڅې نه ډک هرکلی ووایه او داسې صف آرایۍ یې د اسلام په مقابل کې وکړه چې هر څوک ترې خبر دي .

اوس به دا پوښتنه را پیدا شي چې دغه دعوت ولې په دغه ډول پیل شو ؟ الهي حکمت ولې دا پریکړه وکړه چې د دغه دعوت پیل به له مصیبتونو او ازمیښتونو سره وي ؟

رسول الله صلی الله علیه وسلم ولې د قومیت له مفکورې نه خپل کار پیل نه کړ ؟

کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د حق دین د خپرولو لپاره مبعوث شو نو هغه وخت د عربو حالت داسې و چې ټولې سمسورې او حاصل خیزه سیمې یې د نورو قومونو په لاس کې وې ، په شمالي برخه کې د شام سیمه د رومیانو تر تسلط لاندې وه چې عربي حکمرانانو به د رومیانو تر لاس لاندې په کې حکومت کاوه .

جنوبي سیمه ، ټوله د فارسیانو په لاس کې وه چې هغوی هم د دغو سیمو واکمنې تر خپل لاس لاندې عربو شیخانو ته ورسپارلې وه ، د عربو په لاس کې یوازې د حجاز ، تهامه او نجد سیمې وې چې وچ ډاګونه وو او ځای پر ځای به پکې د خرما باغونه موجود وو .

دا خبره هم بې دلیله څرګنده ده چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په خپل قوم کې د امین او صادق په نامه مشهور وو ، د رسالت له پیل نه پنځه لس کاله مخکې د قریشو اشرافو هغه د حجر اسود په شخړه کې د حکم په توګه منلی و او په دغه برخه کې یې د هغه پریکړه په خوښۍ سره منلې وه .

د نسب له پلوه هم د بني هاشم د کورنۍ د سترګو تور و چې د قریشو له ډیرو درونو کورنیو نه ګڼل کیده ، د پورتنیو خبرو له مخې ، دا په یقین سره ویلی شو چې په رسول الله صلی الله علیه وسلم کې ددې خبرې توان موجود و چې د خپلو وطنوالو تر منځ د عربي قومیت په مره جذبه کې نوې ساه وپوکي او د هغوی د قومیت احساس راوپاروي ، پـه دې توګه هغه عربي قومونه پر ځان راټول کړي چې تل به په خپلو کې سـره په جګړو اخته وو ، او پاتکي پاتګي شـوي وو ، تل د مـرګ ژوبلې او کسات اخیستلو پـه اور کې سوځیدل .

که خاتم الانبیاء محمد صلی الله علیه وسلم غوښتلی وای نو په اسانی سره یې کولای شول چې دغه خواره واره عرب د قومیت تر یوه توغ لاندی راټول کړی او هغوی ته د قومیت درس ورکړی ، د ذلت او عزت په توپیر یې پوه کړی او په دی توګه د عربو شمالی سیمی له رومی او جنوبی یې د فارس د ښکیلاک ګرو له منګولو نه وژغوری او په دی توګه د عربی قومیت او عربیت توغ د جزیره العرب شا وخوا او اکنافو کې ورپوی او د یوه متحده عرب شهنشاهی د بنسټ تیږه کیږدی .

دا خبره هم له حقیقت نه لری نه ده چې که چیری رسول الله صلی الله علیه وسلم د قومیت توغ راپورته کړی وای ، نو د جزیره العرب بچې بچې به یې تر سیوری لاندی دریدلی وای او د هغه د هری غوښتنی په مقابل کې به یې د لبیک په چیغو کومی وچ شوی وای .

په دی توګه به رسول صلی الله علیه وسلم د دیارلس کاله اوږدی مودی هغه کړاوونه نه سهل لکه څنګه یی چې د خپل دعوت په لای کې وسهل ، ځکه چې د هغه دعوت د عربو د ټولو واکمنانو د شخصی ګټو او اقتدار غوښتنو مخالف و .

سربیره پردی دا هم یو حقیقت دی چې په هغه کې دا اهلیت او صلاحیت موجود وو ، چې کله عربو د هغه مبارک د قومیت پالنی دعوت په پوره صداقت او مینه منلی وای او د رهبری منصب یې هغه صلی الله علیه وسلم ته سپارلی وای او د اقتدار ټولی کلی ګانی د هغه لاس ته ورغلی وای ، او د عربی شهنشاهی د لویې او عظمت تاج یې د هغه پر سر ایښی وای .

نو بیا به یې له خپل دغه بی مثله قدرت نه د توحید د سکې په وهلو کې کار اخیستی وای ، وروسته له دی یې چې خلک خپل انسانی اقتدار ته لاس په نامه کړی وای نو بیا به یې د الله جل جلاله د اقتدار په وړاندی په سجده کړی وای ، خو علیم او حکیم الله ذات ، خپل پیغمبر صلی الله علیه وسلم په دغه لاره روان نه کړ ، بلکه هغه ته یې دا حکم وکړ چې په ډاګه دا اعلان وکړی چې [ لا اله الا الله ] له الله جل جلاله نه پرته بل معبود نشته ) او له دی سره سره یې په دی خبره هم تنبیه کړ چې له دغه اعلان نه وروسته

به ته او هغه د ګوتو په شمیر کسان چې دغه اعلان په سر سترګو ومنی په دغه لار کې د هیڅ ډول سربښندنې او کړاوونو له زغم نه ځان په ډډه نه کړي .

## د قومیت پالنی د لاری نه غوره کولو لامل

آخر ولی الله جل جلاله د حق د دعوت لپاره دغه اغزنه لاره غوره کړه ؟ ښکاره خبره ده چې الله جل جلاله د خپل رسول الله صلی الله علیه وسلم او د هغه د ایمانداره او وفاداره ملګرو لپاره دا نه غوښتل چې د حق په لار کې دی دومره کړاوونه پرې راشي .

خو الله جل جلاله په دی پوهیده چې له دغی لار نه پرته بله کومه لار نشته چې د دغه دعوت له مزاج سره دی برابره وی ، او نه دا کومه سمه او غوره لار وه چې د الله جل جلاله مخلوق دی د ایرانی او رومی طاغوت له منګلو خلاص شی او د عربی طاغوت د غلامی مندری یې په غوړونو کې واچولی شی ، طاغوت چې هر چیرته وی طاغوت دی .

دا نړۍ د الله جل جلاله تخلیق ده او په دی کې به یوازی د الله جل جلاله حکومت چلیږي ، د الله جل جلاله د اقتدار سکه هغه وخت چلیدلی شی چې د نړۍ په ناپایه فضا کې د [ لا اله الا الله ] توغ ورپیږي ، دا خبره نه سمه وه او نه چا منلی شوه چې د الله جل جلاله په ویړه ځمکه کې دی اوسیدونکې مخلوق ، د رومی او ایرانی طاغوت د ظلم ځنځیرونه شلولی وای او د عربی طاغوت د ظلم او تیری زولنی یې پښو ته غورځیدلی وای ، طاغوت چې په هره جامه کې وی طاغوت دی .

انسان یوازی د یوه الله جل جلاله بنده او غلام دی او هغه هم یوازی په هغه صورت کې د الله جل جلاله د حکم غلام او بنده دی ، چې د ده په ژوند کې یوازی او یوازی د الله جل جلاله جنډه ورپیږي ، یو عرب چې په لغوی لحاظ له [ لا اله الا الله ] نه کومه معنی اخیستله هغه دا وه چې له الله جل جلاله نه پرته به د هیچا حاکمیت نه وي ، له الله جل جلاله نه پرته به بل هیڅوک او هیڅ مقام د شریعت او قانون منبع او ماخذ نه وی او پر انسان باندی د انسان غلبه او اقتدار پاتی نشی ، ځکه اقتدار له خپلو ټولو مفاهیمو سره د الله تعالی لپاره خاص کړای شویدی .

اسلام چې د انسانانو لپاره د کوم قومیت علمبردار دی هغه د دغې عقیدې پر اساس جوړ شویدی : ټول قومونه چې په هر رنګ او نژاد پورې اړه لري ، عرب وي که رومي که ایراني... د دغې ګروهې له نظره تر الهي وياړلې توغ لاندې د ژوند په چارو کې برابر حقوق ولري " .

د قرآن په نظر د اسلامي دعوت لپاره دغه لار سمه او فطري ښکاري .

**حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ولې د اقتصادي انقلاب لار غوره نکړه ؟**

د رسول الله صلی الله علیه وسلم د بعثت په وخت کې، په عربي ټولنه کې د پانګې او شتمنيو د منصفانه ویش ، عدل او انصاف سم اصول موجود نه و ، د پانګوالې او سوداګرې پـه ټولو چارو د لږ کسانو تسلط موجود و ، د ( سود ) په ذریعه به یې د خپلې پانګې او سوداګرۍ د زیاتوالي هڅه کوله ، د ټولنې زیات اکثریت له لوږې او نیستې سره مخامخ وو .

شتمن خلک د مال او شتو په څیر د عزت او شرافت اجاره داران هم وو ، خواران او نیستمن لکه څنګه چې له مال او شتو نه بې برخې وو ، همدغه راز له عزت او شرافت نه هم بې برخې ګڼل شوي وو .

د دغې موضوع په نظر کې نیولو سره ، سړی ویلی شي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ولې د کوم ټولنیز نهضت د رامینځ ته کولو هڅه ونکړه چې د مال او شتو د منصفانه ویش اصول یې وضع کړي وای او د امیرانو او اشرافو پر ضد یې پاټکیزه ( طبقاتي ) جګړه پیل کړې وای او له پانګوالو نه ئې د خوارانو او بزګرانو حقوق اخیستي وای ، دا هم له امکانه لرې نه وه چې ، که چیرې رسول الله صلی الله علیه وسلم کوم ټولنیز دعوت پیل کړای وای نو عربي ټولنه به حتما په دوه برخو ویشل شوې وای .

خو په یقین سره ویلای شو چې غالب اکثریت به د رسول صلی الله علیه وسلم ملاتړ کړی وای ، په دې توګه به یې د پانګوالو او اشرافیت له ظلم او زیاتي نه د هغه وخت مظلوم او مستضعف انسانان ژغورلي وای ، ډیر کم اقلیت به د هغه په مقابل کې دریدلی وای ، هغه به هم هغه څوک و چې د خپلو شتو او پانګې بریښنائې د ضمیر ښیښنه خړه کړې وه .

که چیری نبی صلی الله علیه وسلم دغه لار غــوره کړې وای نو زیاته بــه اغیزمنه او ګټوره وای او داسی حــال بــه نــه پیښیده چې ګرده ټولنه دې د [ لا اله الا الله ] د اعلان په مقابل کې صف ارایي وکړې او یوازې یو څو د ګوتو په شمیر خلک دې د حق دغه دعوت ته لبیک ووایې .

سړی دا هم ویلای شی چې په رسول الله صلی الله علیه وسلم کې بې له شکه دا صلاحیت موجود و چې ، اکثریت د ده فرمان منلی وای او د رهبری واک او اختیار هغه ته ورکړ شوی وای ، چې په پانګو او شتمنو لړ خلکو یې بری موندلی وای ، نو بیا به یې له دغه منصب او اقتدار نه هغه د حکومت الهی او توحید د پلوشو د خپرولو لپاره کار اخیستی وای چې دی ورته مبعوث شوی ؤ .

لومړی یې چې خلک د خپل انسانی اقتدار په مخکې اطاعت او فرمان ورنی ته چمتو کړی وای نو بیا به یې هغوی ته د خپل پروردګار په مخکې د سجدی کولو حکم ورکړی وای او د هغه بندګی ته به یې رابللی وای .

د دغی لاری د نه غوره کولو لامل

خو علیم او حکیم الله ذات خپل پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته په دې لاره هم د تلو اجازه ورنکړه ، الله جل جلاله ته دا معلومه وه چې ، د اسلامي نړیوال دعوت لپاره په دغه خامه او کنډو کپر لاره تګ مناسب نه دی ، هغه پوهیده چې په ټولنه کې د حقیقی عدالت او انصاف غوټۍ هغه وخت غوړیدلای شی چې اوبه خوړ یې د الهی پاکې او رڼی چینی له اوبو نه وی او د ټولو معاملاتو د رسی سرد الله جل جلاله د قدرت په لاس کې وی .

ټولـنه هـره هغـه پـریکړه پـه خوښـه او رضـا ومـنی چـې د پـانګی او شـتو منصفانه ویش پـه هکلـه له الهی دربـار نـه صـادر شوی وی ، د ټولـنی د هر وګړی پـه زړه کې دا خبره نقش وی چې ، کوم نظام چې دلته نافذ کیدونکې دی ، د هغـه نظـام شـارع د الله جـل جلاله ذات دی او د دغه نظام له مننی او اطاعت نه هغه ته نه یوازی د دې دنیا خیر او برکت ور په برخه کیږی بلکه د هغی دنیا خیر او ثواب یې هم په برخه کیږی .

د تولنې باید داسې حالت نه وي چې د ځینې خلکو سترګې حرص او تمې ړندې کړې وي او د ځینو نورو زړونه دې د کینې او رخې په اور کې سوځي او تول کارونه په کې د زور او کوتک په مرسته سر ته رسیږي ، د ویرې او ډار اچولو په واسطه پکې د حکومت پریکړې وچلول شي ، د انسانانو زړونه او روح مړاوې شي ، لکه څنګه چې په اوسنیو هغو نظامونو کې دغه ډول اعمال جاري دي چې د غیر الله د الوهیت پر اصولو ولاړ دي .

حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم ولې خپله بلنه د خلکو د اخلاقو له سمون نه پیل نکړه ؟

د رسول الله صلی الله علیه وسلم د بعثت په وخت کې د جزیره العرب د اوسیدونکو اخلاق له هر پلوه مخ په ځوړ وو .

بد اخلاقي خپل وروستي پړاو ته رسیدلې وه ، یوازې بدوي فضایل د خامو اخلاقو په ډول موجود وو ، د ظلم او ستم تور پیچاول ګرده ، تولنه په لمن کې رانغښتې وه ، دغه حالت د جاهلي دورې یوه نومیالي شاعر زهیر ابن ابی سلمی په خپل شعر کې په ډیر حکیمانه انداز بیان کړیدی .

ومـــن لم یزد عن حوضه بســلاحه
یهـدم ومـــن لا یظلم الناس یــظلم

( څوک چې ځان په وسله نه ساتي ، له منځه ځي او هغه څوک چې په خپله په نورو خلکو ظلم او تیرې ونکړي په ده به خپله ظلم او تیرې وشي ) .

د جاهلي دورې دغې حیا سوز او خراب حالت ته د هغه وخت په دغه مقوله کې هم اشاره شوې ده ، انصرا خاک ظالما او مظلوما ( د خپل ورور ملاتړ کوه که هغه پر چا تیرې کاوه او که تیرې پرې کیده [1] ) .

شراب څښل او جوارې کول د ورځینې ژوند ساده مشغولا ګڼل کیده ، سربیره پردې چې دغه عمل ته چا په سپکه سترګه نه کتل ځینو به ویاړ هم

---

[1]- د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په یوه حدیث کې هم دا جمله راغلې ده خو هغه مبارک دا څرګنده کړیده چې د ظلم سره د مرستې ملاتړ معنی دا ده چې هغه له ظلم نه ایسار کړای شي .

پرې کاوه ، د جاهلي دورې ټولي شاعرې د جوار ګرو د جوارې او شرابو د خم په چوړليغ چور لکونه وهل طرفه ابن العبد وايي :

فلو لا ثلاث هن من عيشه" الفـــــتی
وجدک لم احفل متی قام عـــــودی
فمنهن سبقی العـــاذلات بشر بـــه
کميت متی ما تعل بـــالماء تزبـــد
وما زال نـــــشرابی الخـمور والـــذتی
وبـــذلی وانفاقـــی طـريفی وتالـــدی
الـــــی ان تحـــامتی العشيره کلها
وافـــــردت افـــراد البـــعير المعـبد

۱ - که درې ځيزونه چې د يوه ځوان د ژوند سره تړلي دي نه واى ، نو له ما سره به د هيڅ شي پروا نه واى ، په دې شرط چې د ژوندې پائيدلو په اندازه راته خوراک رسيدلاى .

۲ - له هغو نه يو هم په شراب ځښلو کې له حريفانو نه برى وړل دي ، او شراب هم هغه دوه آتشه چې که اوبه پرې ورګډې شي ، نوره نشه هم راولي .

۳ - شراب ځښل ، عيش بزل او اسراف خو له پخوا نه هم زما په ختهٔ کې موجود و او اوس هم دي .

۴ - اخر هغه ورځ راغله چې زه خپل ټول ، کول ، له ځانه ليرى کړم لکه ځنګه چې د اوښانو له رمې نه پوم وهلي اوښ شړل کيږي .

زنا په ډول ، ډول شکلونو موجوده وه او د جاهلي ټولنې له وياړونو څخه شميرل کيده ، دا يو داسې حمام دى چې په دې کې د هر وخت جاهلي ټولنې د پخوانی زمانی وى او که د اوسنى زمانى " تش په نامه مهذبې ټولنې " لوځى لپړې ښکارى .

حضرت عايشه رضى الله عنها د جاهليت د وخت د ټولنې حالت داسې بيان کړيدى ، د جاهليت د وخت په عربانو کې څلور ډوله نکاح موجوده وه :

**لومړى ډول** : يو خو د نکاح دود شوى عام شکل و لکه اوس چې دود دى ، په داسې ډول چې يوه سړى به بل سړي ته د هغه د لور ، خور او يا هغې

ښځې لپاره چې د هغه په تولیت کې به اوسیده ، د نکاح کولو پیغام ورلیږه او د مهر له ادا کولو نه وروسته به یې په نکاح کوله .

**دویم ډول** : د نکاح دویم ډول داسې و چې ښځه به له حیضه پاکه شوه ، میړه به ورته وویل چې فلانې سړي را وغواړه او له هغه سره یو ځای شه ، دی به په دغه موده کې له خپلې ښځې نه جلا اوسیده او تر هغه وخته پورې به له خپلې ښځې سره نه یو ځای کیده ترڅو به چې له هغه بل سړي نه له ښځې سره د حمل اثار نه و ښکاره شوي ، د حمل د اثارو له څرګندیدو نه وروسته ، د ښځې خاوند کولای شول چې بیرته له خپلې ښځې سره یو ځای ، هغه دا کار د دې لپاره کاوه ، چې لوړ نسبه زوی یې په برخه شي ، د نکاح دغه شکل ته به یې استبضاع ویل .

**دریم ډول** : د نکاح دغه ډول داسې و چې یوه ډله خلک چې شمیر به یې له لسو کم و سره یو ځای به شول ، په ګډه به یوې ښځې سره یو ځای کیدل ښځه به چې حامله شوه ، نو د ماشوم له پیدا کیدو نه به یو څو ورځې وروسته ښځې هغه ټول نارینه راوغوښتل ، هغوی له ورتلو نـه انکار نشوای کولای .

چې ټول به ورغلل نو ښځې به هغوی ته ویل چې تاسو ته خو د خپل عمل نتیجه څرګنده ده ، ما یو ماشوم زیږولی دی ، بیا به نو هغې ښځې له هغو خلکو نه یوه کس ته اشاره وکړه چې دا ماشوم " زوی یا لور " ستا ده نو هماغه سړی به د هغه ماشوم پلار شو او هغه به هم له دغه نسبت نه انکار نشو کولای .

**څلورم ډول** : د نکاح څلورم ډول داسې و چې ډیر خلک به راټول شول ، په ګډه به یوې داسې ښځې ته ورغلل چې ، هغې ته به هر څوک ورتلای شول ، په اصل کې به دغه ښځې بد لفامه ( فاحشه ) وې ، د نښې په توګه به یې په خپلو دروازو جنډې درولې وې ، هر سړی به چې خپله غریزه سړوله نو هلته به ورته .

که داسې ښځه به حامله شوه نو د ماشوم له زیږیدو نه وروسته به هغه ټول خلک ورته راټول شول او یو قیافه پیژندونکې به یې راوغوښته ، هغه به

چې دغه ماشوم هر يوه ته منسوب کړ ، نو هغه به د هماغه سړي زوی شو او د هغه له منلو نه يې انکار نشوای کولای [ بخاری کتاب النکاح ] .

اوس سړی دا پوښتنه کولای شي چې که رسول الله صلی الله علیه وسلم یو اصلاحي او اخلاقي تنظيم اعلان کړی وای او په هغی سره يې د ټولنې د اخلاقو د اصلاح او نفس د پاکوالی کار پيل کړی وای ، نو لکه څنګه چې د هر اخلاقي او مصلح انسان په چاپيريال کې د ښو اخلاقو او غوره صفاتو ، پاک نفسه انسانان موندل کيږي ، په همدی ډول به د هغه مبارک ملګرتيا ته هم ډير شريف او پاک خويه انسانان راټول شوی وای ، چې د خپلو هم جنسو په اخلاقي انحطاط به د زړه له کومې خواشيني وو .

دغې ډلې به د خپل پاک فطرت او غوره اخلاقو په لرلو سره حتما د هغه مبارک صلی الله علیه وسلم د اصلاح او تطهير دعوت ته ، په ورين تندی لبيک ويلای وای .

دا هم په يقين سره ويلای شو چې که پيغمبر صلی الله علیه وسلم دغه کار پيل کړی وای ، نو بی له شکه به د يو شمير غوره انسانانو په تنظيم او راټولولو بريالی وای ، چې بيا به دغو خلکو د خپل اخلاقي پاکوالی او روحاني پاکيزه ګی له امله حتما د توحيد ګروهه منلی وای ، او د ستونزو او کړاوونو سيلاب ته به يې په پوره ميړانه اوږه ورکړی وای .

په دغه ډول به د روسول اکرم صلی الله علیه وسلم دغه دعوت چې الوهيت يوازې د الله جل جلاله لپاره مخصوص دی له دومره زيات مخالفت سره نه وای مخامخ شوی .

## ددغه ميتود خامی په څه کې وه ؟

خو الله جل جلاله په دی پوهيده چې دغه لار هم منزل ته نه رسيږي ، هغه ته معلومه وه چې د اخلاقو مانی يوازې د ګروهی پر بنسټ ودانيدلای شي ، داسی ګروهه چې له يوې خوا د اخلاقي معيارونو د منلو او نه منلو بريدونه وټاکې او له بلې خوا هغه قوت هم وټاکې چې دغه معيارونه ورڅنی اخيستل شوی دی او د يوه سند حيثيت ولری .

په دې کې د هغې جزا او سزا بريدونه هم ټاکل شوي وي چې د دغو معيارونو منونکو او يا نه منونکو ته د هغه ( قوت ) له خوا ورکول کيږي ، که چيرې سړې کلکه ګروهه او له خدايي ( قوت ) نه ويره ونه لري ، نو اخلاقي معيارونه که په هر څومره لوړه سويه هم جوړ شوي وي د پرله پسې تغير او بدلون له څپو نه به خلاصې نشي ، او که پردې بنسټ د هر ډول حکومت ودانې ودانه کړای شي .

هغه به د تذبذب او سرګردانې په حال کې وي ، هيڅ ډول قانون به ورسره نه وي کوم بل ليدونکې او محتسب قوت به نه وي ، ځکه چې زړونه به د مکافاتو او مجازاتو له مفهوم نه خالي وي .

## هر اړخيز انقلاب

د زياتو هڅو او هلو ځلو په نتيجه کې چې د الوهيت د ګروهې ډيوه د خلکو په زړونو کې بله شوه او هغه د قوت تصورهم د خلکو په زړونو کې ثبت شو ، چې دغې ګروهې ته يې د ربښتونولې سندور کاوه ، يا په بله وينا انسانانو خپل ( الله جل جلاله ) وپيژانده او يوازې د هغه بندګۍ ته يې غاړه کيښوده ، کله چې انسانانو د نفسي غوښتنو د مريې توب نه ځان وژغوره او د ځان په څير بادارانو د غلامې زغ يې هم له اوږو ښکته کړ او د ( لا اله الا الله ) نقش يې په پوره توګه پر زړونو کيناسته .

نو الله تعالى د دې ګروهې د منونکو په واسطه هغه څه تيار کړل ، چې د مخه يې تجويز کړې وو ، د الله ځمکه او بندګان د رومي او ايراني خدايګو ټوله فساد او بندګۍ نه خلاص شول ، خو ددې مطلب دا نه و چې اوس به نو د نړۍ پر مخ د عربي قدرت سکه چليږي ، بلکه مطلب دا و چې د الله تعالى د حکم تعميل به کيږي .

له همدې امله د الله جل جلاله ځمکه له رومي ايراني او عربي باغيانو څخه پاکه شوه ، نوې اسلامي ټولنه له ظلم او تاړاک نه بالکل پاکه وه ، دغه ټولنه اسلامي وه او په پوره توګه په کې د الهي د عدل ډيوه روښانه وه ، دلته هر نيک او بد د الهي د عدالت په تله تلل کيدل ، د دغه ټولنيز عدالت بنسټ د ( تو[illegible] ګروهه ) وه او اصطلاحي نوم يې اسلام و .

له دې مبارک نوم سره هيڅکله هم د بل نوم او يا اصطلاح يو ځای کول ښه نه ايسي ، په دغه مهر ، باندې يوازې همدغه د [ لا اله الا الله ] عبارت خوند کوي او ښه ښکاري

سروری زیبا فقط اس ذات بے همتا کو ہے

قيادت او رهبري يوازې له هماغه بې ساري ذات سره ښايي

د خلکو نفسونه او اخلاق د جاهليت له زنګو پاک شول ، زړونه او ارواګانې يې په الهي نور منورې شوې ، دغه اصلاح او سمون په داسې بې ساري ډول مينځ ته راغی چې له يو څو استثنايي مثالونو نه پرته ، د نورو هغو جزا ګانو د اجرا کولو هيڅ نوبت هم رانغی چې الله جل جلاله تيرې کوونکو ته ټاکلې وې .

دا ځکه چې د خلکو په زړونو اوس د هغوی د ويښ ضمير پيره د فعالو څارنو ( پوليسو ) په توګه موجوده وه ، د هغوی لپاره د پوليس او قاضي وظيفه ، د الله جل جلاله د خوښي او رضا حاصلول ، د اجر خواهش د الله جل جلاله له عذاب نه ويرې او خوف اجرا کوله .

مخکيني ذکر شوې اصول هغه مخفي څارن ( پوليس ) وو چې د هر مسلمان په زړه کې موجود وو ، لنډه دا چې انساني نظام ، انساني اخلاق او انساني ژوند ، د خپل پوخوالي او لوړتيا هغو پوړيو ته رسيدلی و چې نه د مخه دغه پړاو ته رسيدلی و او نه د اسلام له لومړيو وختونو نه بيا تر اوسه رسيدلی دی .

## دغه ستر انقلاب څه ډول پيل شو ؟

دغه ستر انقلاب او د انسانيت د کمال حکومت ، يوازې په دې توګه لاسته راغی چې : هغو خلکو چې الهي دين د يو حکومت ، يو نظام او يو جامع او هر اړخيز شريعت په توګه مينځ ته راوستی و ، هغوی په خپله تر هر څه د مخه د دغه دين حکومت په خپل زړه د خپل ضمير اخلاقو او د ژوند په ټولو چارو کې منلی و .

د يوې ګروهې او فکر په توګه ورته لاس په نامه وو ، خپل اخلاق يې په ټاکلو معيارونو برابر کړي وو ، په خپلو عباداتو کې يې د اسماني سند به

توګه منلې و او په خپلو چارو کې يې د همدې حکومت سکه چلوله ، د دغه دين قيام او حکومت ته د رسيدو په صورت کې له دوی سره يوازې او يوازې وه ژمنه ( وعده ) شوې وه .

په دې ژمنه کې له هغوی سره د برې او اقتدار يو کوچنی جز هم شامل نه و ، حتی دغه جز هم نه و شامل چې دغه دين بــه د دوی په لاسونو د برې پړاو ته رسيږي ، هغوی تــه چې په دې برخه کې څه ويل شوي وو هغه يــوازې همدومره و چې د برې پــه صورت کې به هغوی ته د جنت ژوند ور پــه برخــه شي .

هغه سخت جهاد چې خلکو وکړ او هغه زهره چاودې ازميښتونه چې خلکو وسهل ، هغه استقامت او ثبات چې د حق په دغه دعوت کې خلکو وښوده او بالاخره په کوم زغم او حوصله چې د جاهليت په مقابل کې خلکو د دغه ستر حقيقت ملاتړ وکړ چې د ( لا اله الا الله ) په الفاظو کې پټ دی ، چې د هر وخت او زمان د طاغوتي حکمرانانو د نارامۍ او تشويش سبب دی .

د دې ټولو نه هيريدونکو خدمتونو ، مندو ترړو او هلو ځلو په مقابل کې له دوی سره بيا هم وايو چې يوازې يوه ژمنه شوې وه چې مخکې مو وويل : ( يوازې د سبا وعده ) .

کله چې الله جل جلاله هغوی د ازميښت په سره بټۍ کې واچول او هغوی بيا هم خپل ثبات وښوده او له هر نفساني خواهش او لذت نه بيزاره شول ، او کله چې الله تعالی په دې پوه شو چې دوی اوس په دې دنيا کې د هيڅ ډول انعام او بخشش تمه نلري او نه دې ته سترګې په لار دي چې د دغه دعوت د برې جنډه دې د دوی په لاسو ورپول شي .

او دغه دين له دې نه ډير لوړ دی چې د دوی د هلو ځلو او سرښندنو په نتيجه کې دې برې ته ورسي ، د دوی په زړونو کې د پلرونو او نيکونو په اصل و نسب د وياړنو د جذبې سکروټې ايرې شوې دي ، نه پکې د قومي وياړ نوغی پاتې شويدی او نه ورسره د هيواد د لوړتيا جذبه پاتې شوې ده او نه پکې د قبايلي عصبيتونو خوی بوی پاتې شويدی .

نو له دې امله کله چې الله جل جلاله دوی په دغه ټولو نیکو صفاتو ګڼلي ( آراسته ) ولیدل نو بیا الله جل جلاله د دوی په هکله خپله ستره پریکړه وکړه چې : دا خلک اوس د هغه ستر امانت یعنې د ځمکې پر مخ د خلافت بار په اوږو اوچتولی شي .

دا مسئله په هغه ګروهه کې په څرګنده توګه څیړل شویده ، د هغې ( ګروهې ) د اصولو غوښتنه همدا ده چې د ځمکې پر مخ هر ډول حاکمیت یوازې د الله جل جلاله لپاره مخصوص دی ، په زړه او ضمیر ، اخلاقو او عباداتو ، مال او ځان او ټولو حالاتو باندې یوازې د همدې ذات حاکمیت دی ، الله جل جلاله ته دا معلومه وه چې دا ډله به د هغه سیاسي اقتدار ، ریښتوني ساتونکې وي چې د دې لپاره دوی ته ورکړل شویدې چې : د ځمکې پر مخ د الهي شریعت اصول نافذ کړي او د الهي عدل مانۍ ودانه کړي .

خو په دې اقتدار کې به شخصاء د دوی او د دوی د خپلو خپلوانو او ټبر لپاره هیڅ برخه نه وي ، بلکه ټول اقتدار به د الله جل جلاله لپاره وي او د الله جل جلاله د دین او شریعت په خدمت کې به وي ، ځکه هغوی پوهیدل چې د دې اقتدار منبع د الله جل جلاله ذات دی او هغه دوی ته په امانت ورسپارلی دی .

## د حق نظام د برې یوازینې لار

که د اسلامي دعوت کاروان په همدغه توګه خپل سفر نه وای پیل کړی ، نوری ټولې جنډې یې نوی رانسکورې کړې او یوازې د توحید جنډه یې نه وای رپولې ، په همدغه اغزنه لار نه وای تللې چې په ظاهره پرې تګ ډیر سخت او نه زغمونکې و ، خو په حقیقت کې ډیر اسانه او له برکتـه ډکه لار وه ، نو هیڅکله به هم د دغه پاک او مبارک نظام یو جز هم په دومره لوړ معیار د عمل ډګر ته نه وای راغلی .

په همدې توګه که چیرې دغه دعوت د خپل کار په پیل کې د قومیت بیرغ راپورته کړی وای او د اقتصادي اصلاح په جامه کې راغلی وای او د اخلاقي سمون په قالب کې ننوتی وای او یا یې د حق له دغه شعار ( لا اله الا الله ) سره ځینې نور شعارونه هم یو ځای کړي وای ، نو دغه پاکیزه او

مبارک نظام به چې د دغې عقیدې په نتیجه کې مینځ ته راغلی وای ، هیڅکله هم د یوه خالص رباني نظام په توګه خپل اثر نه وی ښندلای ، د قرآن حکیم مکې دور د دغې ګروهې د برم لرونکې دی .

همدغې دورې د خلکو پر زړونو او اذهانو د الله جل جلاله د الوهیت نقش ثبت کړ ، د انقلاب د فطري لارې لارښوونه یې خلکو ته کوله که څه هم په ظاهره له ډیرو کړاوونو ډکه وه ، له نورو لارو نه یې خلک ایسارول ، که څه هم په ظاهره پرې تګ اسانه ښکاریده ، اسلام په هر حال کې خپلو پلویانو ته یوازې د انقلاب د فطري لارې د تلو سلا ورکوله .

د دعوت په پیل کې جزوي مسایل ولې ونه څیړل شول ؟

په همدې ډول د قرآنکریم ، دغه اړخ هم د حق د داعیانو لپاره د غور او څیړنې وړ دی ، چې د قرآن په مکې دوره کې ټول بحثونه یوازې د ګروهې په چورلیځ چورلی او د ژوندانه د نظام هغه اړخونه یې نه دي څیړلي چې د دې ګروهې اصول یې غوښتنه کوی .

نه یې د هغو احکامو او قوانینو اصول څیړلي دي ، چې د.دې ګروهې په رڼا کې د ژوندانه د نظام او راکړې ورکړې مسایل تنظیموی .

په حقیقت کې د دې دین د مزاج غوښتنه دا وه چې قرآن د مکې دورې په ژوند کې خپل دعوت یوازې په عقیدې پورې محدود کړی ، څرګنده ده چې ټول دین د الله جل جلاله د وحدت په نظریې ولاړ دی او د دې دین د قانون او ټولنې نظام به ټول د همدې نظریې په بنیاد ولاړ وی .

د دین مثال د هغې څانګورې او ګورې ونې دی چې ګڼ سیورې لرې ، او تر لیرې ځایونو پورې رسیږي ، ښاخونه یې سره جوخت لګیدلي او له اسمان سره خبرې کوی . د دغه ډول ونې جرړې په فطري ډول د خپل غټ والي او څانګور توب له مخې په ځمکه کې ډیرې ژورې تللې وی او شا وخواته یې هم تر ډیرې اندازې پورې خپرې کړې وی ، د دې دین مثال هم کټ مټ د همدغې ونې په څیر دی ، چې اصولو یې د ژوند په هر اړخ خپل سیورې غورځولي دي .

د انسانیت په هره وړه او لویه خبره بحث او څیړنه کوي ، د انسانانو د ژوند تنظیم یوازې په دنیا کې نه بلکه په عقبا کې هم کوي ، یوازې د عالم شهود مسایل نه بلکه د عالم غیب مسئلې هم حلوي او یوازې په ظاهري او مادي معاملاتو کې لاسوهنه نه بلکه د انساني ضمیر په بې پایه عمق ( ژورتیا ) او د زړونو د پټو ارادو او نیتونو په غیر مرئي تموج او څپو هم تعرض کوي او هغه سموي .

دغه دین یوه قوي او پراخه اسمانڅک ( اسما نخراش ) ته ورته ودانۍ ده چې د بنسټ پراخوالي او ژور والي یې هم د لوړتیا پوخوالي او پراختیا هومره دی .

د دین د حقیقت او مزاج دغه اړخ په خپله د دین د ودانۍ او پراخولو د تعمیر او توسیع د کار د څانگړې لار څرگندونه کوي ، له همدې ځایه څرگندیږي چې په زړونو کې لومړۍ د گروهې د زړې اینبودل او بیا د هغې داسې پالل چې یوه داسې ونه ترینه جوړه شي چې تل په خپل ځای کې تانده وي او جرړې یې د بدن رگ رگ او گوټ گوټ ته ور ورسیږي او په ټول بدن یې د گروهې سیورې خپور شي .

دغه ډول ونه سمې روزنې ته زیاته اړتیا لري ، په دې ډول به د دین د سترې سمسورې ونې د هغو برخو چې په فضا کې د لوړو ښاخونو په شکل دي او د هغې برخې چې په ځمکه کې د جرړو په شان دي یوه هم اهنگي او برابر والي پیدا کیږي ، بلکه لا تردې هم زیاته دا چې هغه ریښې او جرړې به نورې هم دومره ټینگوي څومره چې د ظاهري برخې د بوج اوچتولو لپاره ضروري وي .

کله چې د ( لا اله الا الله ) عقیده د زړه په ژورو برخو کې ځانته کور جوړ کړي ، نو له دې سره سره د ژوند هغه ټول نظام هم هلته په کډه ورځي چې د دغې گروهې عملي تفسیر دی ، له دې نه پـه خپله څرگندیږي چې دا یوازینی او ځانگړی نظـام دی چې په هغه باندې د دغې گروهې ، گروهمن ( معتقد ) نفسونه راضي کیدای شي ، مخکې له دینه چې د دې نظام تفصیلات د هغوی مخې ته ور وړاندې کړي او د هغه له احکامو او قوانینو

څخه يې خبر کړي ، هغه لا د مخه د دې نظـام حکومت ته لاس په نامه شوي وي .

د ايمان غوښتنه هم دا ده چې په لومړي قدم کې به بې له اړيتوپړيتو ( چون وچرا ) د اطاعت او تسليم په جذبه ولاړ وي ، له همدې امله کله چې له مکې دورې نه وروسته د مدينې دوره راغله نو هغو پاک نفسو صحابه کرامو د همداسې اطاعت او تسليم د جذبې تر اثر لاندې د هغو ټولو قوانينو او اصلاحاتو مننه په ورين تندي وکړه چې قرآن د هغوی د ښيګړو لپاره وخت په وخت راليږلي وو .

کوم حکم به چې نوی جاري شو نو سرونه به يې بې له ځنډه د هغه د منني او تعميل لپاره ټيټ شول ، د هيچا په خوله به هم دا اعتراض کلمه نه راتلله ، له يوې خوا نه به فرمان لا غوږونو ته نه و رسيدلی چې له بلې خوا به يې د عمل لپاره هر څه برابر وو ، هيڅکله هم په کې چا اړې پيدا نکړې ، شراب حرام شول ، د سود د حرمت ايت نازل شو ، له جوارې نه خلک ايسار شول .... لنډه دا چې دجاهلي دوری ټول دودونه تر پښو لاندې شول خو ، په څه ډول ؟

يوازې د قرآن د څو ايتونو په نزول ؟ !

که د رسول الله صلی الله عليه وسلم د خولې په څو مجردو خبرو ؟ !

د دې په مقابل کې دنياوي حکومتونه وګورې ، هغوی د هر څيز د ختمولو لپاره له قانون نه مرسته غواړي ، قوانين جوړ وي . انتظامي اداري جوړ وي ، پوځ او پوليس ( ځارن ) په کار ، ګوماري ، زيات اختيارات لاسته راوړي ، په راډيو تلويژن او ورځپاڼو کې له تبليغ او پروپاګند نه کار اخلي ، خو له دې ټولو سره سره بيا هم هغوی له ښکاره مخالفتونو سره مخامخ وي او د ټولنې لمن له ډول ډول فسادونو نه ډکه وي .[1]

---

۱ - په اسلام کې شراب څنګه حرام شول ؟ په دغه موضوع باندې د ( فی ظلال القرآن ) په پنځم ټوک کې له ۷۸ - ۸۵ مخ پورې مفصله څيړنه شويده ، د شرابو په تحريم کې چې د امريکا حکومت له کومو ستونزو او ناکاميو

## عملي او حقيقت خوښوونکې دين

د دين د مزاج يو بل اړخ هم چې ځلايې د هغه په پاکيزه نظام کې له ورايه ځرګنده ده د غور وړ ده ، هغه دا ده چې دغه دين د يوه پاخه عملي تحريک د کړنلارې لايحه ده ، د دې لپاره دې چې په انساني ژوند عملاء حکمراني وکړي ، له همدې امله د ژوند له عملي حالاتو سره په جګړه بوخت دې چې د هغوی په هکله د خپل چلند بريدونه وټاکي ، چې هغه يا سم او اصلاح کړي او يا يې چور بدل کړي .

او يا يې په خپل حالت پرېږدي له همدې کبله د دغه دين قانون جوړول يوازې په هغو حالاتو پوري تړلې دي چې بالفعل موجود وي او په هغه ټولنه کې به تر اجرا لاندې نيول کيږي چې په اصولي توګه يې د الله جل جلاله وحدانيت منلي وي .

په حقيقت کې دغه دين د کومې ، فلسفي نظرې ، نوم ندی چې د محض مفروضاتو پر بنسټ يې خپله وداني جوړه کړې وي ، بلکه دا يـو عملي نظام دی چې ذ عمل او حرکت له دنيا سره اړيکې لري ، له همدې امله لومړی بايد يوه مسلمانه ټولنه چې د الوهيت په ګروهه ګروهمنه وي مينځ ته راشي او دا لوړه يې کړې وي چې ستر حاکميت له الله جل جلاله نه پرته بل چاته نه ښايي .

له الله جل جلاله نه پرته د بل چا حاکميت نفي کړي او د هر هغه قانون جواز ، بند کړي چې بنسټ يې د الوهيت په ګروهه نه وي ولاړ ، دغه ټولنه چې مينځ ته راشي او بالفعل له مختلفو عملي مسائلو سره مخامخ شي ، د قانون او نظام لپاره ورته ضرورت پيښ شي ، نو هماغه وخت دغه دين د احکامو ، قوانينو ، نظام او ضوابطو په جوړونه پيل کوي او هغه خلک په

---

سره مخامخ شويدي ، د هغې تفصيل د مولانا ابو الحسن ندوی په ( ما ذا خسر العالم الاسلامی با انحطاط المسلمين ) نومی کتاب کی وګوری چی هغه د مولانا مودودی د ( تنقيحات ) نومی کتاب په حواله چی په اسلامک پبلکيشنز لميټيډ کی چاپ شوی رانقل کريدی [ ليکوال ] .

پام کې نیسي چې په اصولي توګه یې د دغه دین هر قانون او ضابطه منلې ده او نور ټول اصول او قوانین یې اصولا له خپل ژوند نه ایستلي وي .

## د قوانینو د انفاذ لپاره قوت ته ضرورت دی

د دغې ګروهي منونکې باید ازاد وي او په ټولنه کې یې اقتدار او مشري په برخه وي ، چې په دغه اقتدار او مشري سره هغوی وکولای شي ، پـه ټولنه کې دغه نظام او د هغه ټول احکام جاري کړي ، پدی توګه بـه دغه نظـام په پوره برم او پرتم خپل جوهر وځلوي او احکام به یې هم په سمه توګه د اجر وړ وګرځي .

سربیره پردی کله چې دغه دین د ټولنې له عملي مسائلو سره مخامخ کیږي ، نو بیا هم د احکامو او قوانینو ضرورت پیښیږي او د دې ترڅنګ د دغو غوښتنو د پوره کولو لپاره د سیاسي قدرت موجودیت حتمي دی ، د قرآن په مکې ژوند کې مسلمانان آزاد نه وو ، په خپله ټولنه کې یې هم سیاسي نفوذ او اقتدار نه درلوده ، د دوی عملي ژوند هم یو مستقل او جلا شکل نه و غوره کړی ، چې دوی هغه د الهي د شریعت له مخې تنظیم کړي وای ، نو له همدی امله د الله تعالی له خوا نه هم په دغه وخت کې د دوی لپاره کوم انتظامي قوانین نازل نه شول ، په دغـه دوره کې چې د الله جل جلاله له دربار نه هغوی ته څه نازل شوي وو .

هغه یوازې او یوازې د توحید د ګروهې په هکله و او یا د دغې ګروهې له پیدا کیدو نه وروسته د هغې د نیکو نتایجو په نتیجه کې د عالي اخلاقو پیدایښت و ، خو کله چې د مدینې په ژوند کې الله تعالی هغوی ته د یوه ازاد او خپلواکه ټولنې واکمني ور په برخه کړه ، نو د الله جل جلاله له خوا نه هم هغوی ته د ژوند عام ضوابط او اصول نازل شول .

د دوی لپاره داسې یو نظام مینځ ته راغی ، چې د مسلمانې ټولنې د عملي ژوند اړتیاوې یې په ښه توګه ترسره کولای شوې ، د مدینې د سیاسي قدرت څواک د دغه نظام ملاتړ او د رسمي تائید (Sanction) قوت و .

د الله جل جلاله حکیم او خبیر ذات دا غوره نه وه ګڼلې چې ټول قوانین او ضوابط د مکې په سیمه کې نازل کړي ، چې مسلمانانو په تیار حالت کې

هغه ذخیره کړې وای او کله چې په مدینه کې د اسلامي حکومت د قیام بنسټ ایښودل شوی وای ، نو هغه یې سمدستي جاري کړې وای ، دغه ډول روش د اسلام او دین منافي دی ، اسلام لدغه ډول احتیاطي تدابیرو نه ډیر زیات دور اندیشه او عملي دین دی د اسلام دا لار نه ده چې د فرضي مسائلو لپاره فرضي لارې چارې وسنجوي او خپل وخت پرې ضایع کړي .

بلکه اسلام د هغې ستونزې د حل لار لټوي چې پیښه شوې وي ، که چیرته اسلام وګوري چې واقعا هم داسې یوه ژوندۍ او قوي اسلامي ټولنه مینځ ته راغلې ده چې د خپلې بنې او له حالاتو او مسائلو سره د مخامخیدو له مخې یې د الهي شریعت په مقابل کې د تسلیم لاسونه په سینه ایښي دي او له غیر الهي شرایعو نه بیزاره ده ، نو په هغه صورت کې به اسلام ، بې له کوم مکث او ځنډه ، د حالاتو ، شرایطو او اړتیا وو ، په نظر کې نیولو سره قوانین وضع او د نفاذ غوښتنه به یې وکړي .

### تر اسلامي حکومت د مخه د اسلامي قانون جوړول بې ګټې کار دی

هغه خلک چې نن له اسلام نه دا غوښتنه کوي چې لومړی دې خپل نظریات مدون او مرتب کړي ، د خپل نظام بڼه دې مونږ ته څرګنده کړي او د ژوندانه د مسائلو د قانون مجموعه دې ترتیب کړي ، حال دا دی چې دوی بڼه ویني چې د ځمکې پر مخ داسې ټولنه نشته چې نور ټول انساني قوانین مسترد کړي او بالفعل د خپلو چارو واګې د الهي شریعت په لاس کې ورکړي او هغوی دا اختیار هم ولري چې د هغې په زور دغه قوانین نافذ کړي ، نو په ښکاره توګه څرګندیږي چې هغه کسان چې له اسلام نه دغه ډول غوښتنه کوي هغوی د اسلام له مزاج سره نا اشنا دي او د ژوند په ناپایه سمندر کې د دین له عملي کړنلارې نه نا خبره دي ، هغوی پدې هم نه پوهیږي چې د دین له عملي انفاذ نه د الله جل جلاله منشاء څه ده .

په حقیقت کې له دین نه دغه ډول مطالبه کوونکې حضرات غواړي چې دین له خپلې اصلي او فطري تګ لارې واړوي او خپل اصلي او اصولي تګ لورې پریږدي ، خپل تاریخ بدل کړي او د عامو انساني نظریاتو او انساني شریعتونو په څیر سطحي بڼه غوره کړي .

د هغوی دا هڅه ده چې دین خپله فطري لاره او فطري مراحل پرېږدي او کومه لنډه او اسانه لار غوره کړي ، چې فوري او عارضي غوښتنې او خواهشات یې پوره شي ، ارمانونه او غوښتنې یې هم هغه دي چې د هغې د پیدایښت سبب ، هغه شکست او ماتې ده ، چې د نیمګړو انساني قوانینو په مقابل کې ده ته ورپېښ شویدي ، له دې سره سره دوی غواړي چې دغه دین هم د مجردو نظریاتو او مفروضاتو یوه مجموعه شي او د بحث موضوع یې هم داسې حالات او پېښې وي چې د هغې عملي وجود عنقاوي .

خو د الله جل جلاله اراده دا ده چې دا دین په هغه ډول نافذ شي څرنګه چې د مخه شوی و ، لومړی دې دغه دین د عقیدې په ډول ومنل شي چې د انسانانو په زړونو ، افکارو او ضمیر باندې خپله پاچهي ټینګه کړي ، نو بیا به د همدغې عقیدې غوښتنې پوره کړای شي .

د دغه دین لومړۍ غوښتنه دا ده چې انسان دې پرته له خدایه د هیچا په وړاندې سر نه ټیټوي ، له الله نه پرته دې له هیڅ منبع او ماخذ نه د ژوند قوانین نه اخلي ، کله چې په دغه ګروهه منور ټولګی تیار شي او په ټولنه کې هم د هغوی عملي واکمني تثبیت شي ، نو بیا به د همدې ګروهې په رڼا کې داسې قوانین جوړ شي چې د دغې ټولنې عملي اړتیاوې ترسره کړي او د عملي ژوند تنظیم یې وکړي .

دغه د دین د قیام سمه او اصلي لاره ده چې د الله جل جلاله خوښه ده ، د الله جل جلاله له غوره کړې لارې نه پرته هیڅکله هم بله لار نشي مثل کیدای که خلک هر څومره خواهشونه او غوښتنې هم وکړي .

## د دین د قیام سمه لار

پر دې اساس د اسلامي دعوت مخکښنه ډله باید په دې پوه شي ، کله چې هغوی خلکو ته د دین د احیا او تجدید بلنه ورکوي ، نو لومړۍ غوښتنه دې ترې همدا کوي چې هغوی د اسلام په بنیادي عقیده اقرار وکړي ، که څه هم هغه خلک ځانته مسلمانان وایي او د مسلمانانو نومونه یې هم پر ځان ایښې وي او د پیدایښت تصدیق یې (Certificate) هم د دوی د مسلمانۍ شهادت ورکړي .

په هر صورت د اسلامي دعوت علمبرداران باید لومړی همدغه مسلمانان په دې پوه کړي چې : اسلام د یوه داسې حقیقت نوم دی چې تر هر څه د مخه باید سړی ( لا اله الا الله ) له حقیقي مفهوم سره د زړه له کومې ومني ، د دې حقیقي مفهوم دا دی چې دی به د ژوند په هره چاره کې د حاکمیت واک یوازې الله جل جلاله ته ورکوي او هغه خلک چې د الله جل جلاله له حکم نه سر غړوي او دغه حاکمیت د خپل ځان لپاره ور ګڼي ، نو د هغه د دغې ادعا تردید به کوي .

د اسلامي عقیدې منل په دغه ډول او مفهوم باندې په انسان دا لازموي چې د ژوند په ټولو چارو کې به د همدغې ګروهې تر سیورې لاندې یون کوي ، په همدغه ډول به عبادت کوي او د ژوند په هر اړخ به یې د همدغې ډیوې رڼا خوره وي .

کله چې د خلکو په مینځ کې د دین تحریک راپورته کیږي باید هغوی ته د دین د دغه اړخ اساسي اهمیت ور په ګوته شي ، ځکه چې په نړۍ کې لومړی اسلامي تحریک هم د اسلام همدغه اړخ د خپل دعوت اساس او بنسټ ګرځولی وُ .

د قرآنکریم د مکې ژوند دیارلس کاله د همدې ګروهې د رینبتونوالی او پوخوالي په برخه کې تیر شول ، همدا وجه ده چې که کوم ټولی یا جمعیت د دین د دغه ډول مفهوم او عقیدې په لرلو سره په اسلامي تحریک کې ګډون کوي ، نو دغه ټولی ته سړی په حقیقي معنی اسلامي ټولی یا اسلامي ټولنه ویلای شي ، یعنې هغه ټولنه چې دا صلاحیت او اهلیت لري چې د دوی په ټولنیز ژوند کې د اسلام قوانین جاري شي ، ځکه چې دغه ټولی په خپله خوښه دا خبره منلې ده چې د دوی د ژوند ټول نظام به د اسلام پر بنسټ ولاړ وي ، د ژوند په هیڅ ډول معامله کې به د الله جل جلاله له حاکمیت نه پرته د بل هیچا حاکمیت نه مني .

کله چې یوه ټولنه بالفعل مینځ ته راشي او د اسلامي نظام اساسي تعلیمات یې مخې ته کیښودل شي او ټولنه په خپله د اسلامي نظام د عمومي ضوابطو په درشل کې دننه داسې احکام او قوانین وضع کړي ، چې

د دوی د ژوندانه عملي اړتیاوې یې غوښتنه کوي ، زمونږ په نظر د اسلام د عملي ، حقیقت خوښوونکي او د ژوند د حکیمانه نظام د عملي کولو د مختلفو لارو او مراحلو نه همدغه لار سمه او ګټوره ده .

د ځینو تلوار ګندو مسلمانانو چې د دین د اصل او حقیقت د درک پوهه یې کمه ده او د دین د سمې او خدایي لارې د عمل په هکله یې غور نه دی کړی ، ( چې د علیم او حکیم ذات د بې پایانه حکمتونو پر بنسټ ولاړه ده ، او د ژوند د اړتیاوو په هکله د هغه د بشپړ علم برکت دی ) .

هغوی ډیر ځله داسې فکر کړیدی چې یوازې د اسلامي نظام د بنیادونو او یا یوازې د اسلامي قوانینو او احکامو نه به د خلکو خبرول د اسلامي دعوت لار اسانه کړي او د خلکو په زړونو کې به په خپله د اسلام په هکله همدردي جذبه را پیدا شي ، دا نظریه یوازې د هغو حضراتو په لنډ اندې ( لنډ فکرې ) او خام خیالي دلالت کوي چې د هغوی د عجلت خوښوونکو اذهانو محصول دی .

دا د هغې قبیل تخیل دی چې مخکې مو یاد کړیدی ، چې په څه ډول په خپله د رسول الله صلی الله علیه وسلم حضور ته هم دغه ډول تجویزونه وړاندې کیدای شي او ویل کیدای شي چې که هغه خپل دعـــوت د قوم پالنې او نشنلیزم په کوم شعار او یا اقتصادي اصلاح په دعـــوت او یا د اخلاقي سمون له تحریک نه پیل کړی وای نو د هغه د منزل لار بـــه لنډه او اسانه شوې وای او هغه به د ستونزو په اغـــزنه لار کې پښیبلو پښو تګ نه اړ کیده .

د اسلامي دعوت په پیل کې په اصولي توګه تر هر څه د مخه دا ضرور ده چې د انسان زړه یوازې او یوازې د واحد الله د مینې کور شي ، د هغه د عبودیت او بندګۍ اعلان وکړي او د هغه شریعت ته تسلیم شي او بل هر شریعت لرې وغورځوي .

مخکې له دینه باید هغه ته د شریعت ښیګړې په تفصیل سره وښودل شي چې د هغه د رغبت او تمائل احساس نور هم غښتلی شي ، له شریعت سره رغبت او تمایل خو باید اصلا د الله جل جلاله د بندګۍ له چینې نه

راوخوټیږي ، د دوی په زړونو کې باید له الله جل جلاله نه پرته د نورو له غلامی نه د خلاصون جذبه ډیره پیاوړی وی .

دا سمه خبره نه ده چې په زړونو کې له الهی قانون سره هغه وخت مینه را پیدا شی چې له نورو قوانینو سره د اسلام د قوانینو پرتلیزه ( مقایسوی ) مطالعه وشی ، له هغی نه وروسته د ځینو خلکو د اسلامي قوانینو هغه اړخونه چې له انسانی قوانینو نه بهتر دی خوښ شی .

بی له شکه خدایي نظام سر تر پایه د خیر او برکت چینه ده او د دی خبری د ثبوت لپاره همدومره کافی ده چې دغه قوانین او نظام الله تعالی د خپلو مخلوقاتو لپاره غوره کړلی دی ، د غلامانو شریعت په هیڅ ډول هم د الله جل جلاله له شریعت سره برابری نشی کولی خو زمونږ د خبرو مطلب دا دی چې د اسلامي دعوت روح او بنیاد دا نه دي .

د اسلامي دعوت بنیاد یوازی ( اسلام ) دی او اسلام د هغه حقیقت نوم دی چې د الله جل جلاله شریعت ته په هر حـال کې بی له ځنډ او کومـی ناغیږی نه منی او له نورو ټولو شریعتونو نه ، بـه چې پـه هره بڼه وی انکار وکړی .

له دی پرته د اسلام هیڅ مفهوم نشی کیدلای ، د هغه ځا چې له دغه ابتدایي اسلام سره مینه او پیوستون پیدا شی نو وروستی پریکړه به هم ځرګنده ده چې د شریعت په ګټه وی ، خو د دی له منلو نه وروسته به هغوی دیته اړ نه وی چې د اسلامي نظام د ښیګړو ، حسن ، ښکلا او د هغه د افضیلت او برتری په هکله تفصیلات ورکړو او د هغوی مینه او تمایل ورسره پیدا کړو ، دا و د ایمان په هکله د بدیهی حقایقو له جملی نه یو با ارزښته او بنیادی حقیقت !

## اسلام له جاهلیت سره څه ډول مقابله کوله ؟

له پورتنیو تفصیلاتو نه وروسته مونږ د دی خبری کول ضروری ګڼو چې قرآنکریم په څه ډول د مکې په دیارلس کلنی ژوند کې د ګروهی مسئله اواره کړله ، قرآن اسلامي ګروهه د یوی مجردی نظریی (Theory) او یا د الهیاتو په توګه نه ده وړاندی کړی او نه یې د ګروهی د بیانولو په برخه کې

هغه اندازه غوره کړې دی ، چې زمونږ علم الکلام د کلامی بحثونو په برخه کې غوره کړې دی .

بلکه د هغی سرچپه ( برعکس ) اسلام تل د انسان فطرت ته اشاره کړېده او له هغو څیزونو نه خپل دلایل را اخلی چې د انسان په شا وخوا کې موجود دی ، اسلام انسان د اوهامو او خرافاتو له انبار نه راباسی او د هغه فطری صلاحیت ته ځلا او رڼا وربښی ، چې له مودو راهیسی د خرافاتو زنګ وهلی او له کاره لویدلی دی ، په دی توګه قرآن د انسانی فطرت له مخه پلو پورته کوی او هغه د دی وړ ګرځوی چې د هغه موثر او لطیف اړخونه وپیژنی او قبول یې کړی .

دا خو د قرآنی تعلیماتو یو عمومی اړخ و ، خو د اسلام انقلابی او تعلیمی اړخ دا و چې د توحید د ګروهی له مخی یې په ټولنه کې د جاهلی نظریاتو او روایاتو پر ضد جګړه پیل کړی وه ، چې انسانیت یې تر انبار لاندی دفن شوی وی او د څو خدایانو د غلامی ځنځیرونه یې ور په غاړه کړی وو ، نو پردی اساس په دغه ډول حالاتو کې د اسلام لپاره د مبارزی دغه شکل وړ نه و چې د یوی ( نظریې ) په توګه یې وړاندی کړی وای .

مناسب او غوره شکل همدا و چې د عملی مقابلی عزم وکړی او د عمل میدان ته ور ودانګی او د انسان په زړه او دماغ چې د جهالت کومی پردی غوړېدلی وی هغه څیری کړی ، ټولی مر کونډی یی له لاری جارو کړی ، هغه ټول دیوالونه چې د حق د لاری خنډ دی وی نړوی .

په همدی توګه د عقلی مجادلی اسلوب هم چې په وروستیو پیړیو کې د علم الکلام په توګه مینځ ته راغی او ټول دارو مدار یې د لفظی منطق پر بنسټ ولاړ ؤ ، هم د اسلام د وړاندی کولو لپاره مناسب ډول نه و ، ځکه چې قرآن له ټول انسانی ماحول او د هغی له شا وخوا متحرکو اسبابو او عواملو سره په جګړه بوخت و ، د خبرو مخه یې ټول انسانیت ته متوجه وه ، چې د جاهلیت په ناپایه سمندر کې یې د ډوبیدو ویره موجوده وه ، د دی مقصد لپاره د ( الهیاتو ) د وینا طرز او ډول هم مناسب او ګټور نه و .

دا ځکه چې اسلامي عقیده سره له دې چې له وجدان سره تعلق لري ، خو د عملي ژوند لپاره هم د عمل لایحه لري ، د عمل په دنیا کې هم د هماغې لایحې انفاذ غواړي ، د الهیاتو د نظري بحثونو او ذهني خیال پر دازیو په څیر یې نه غوښتل چې د ژوند په محدوده او تنګه دایره کې پاتې شي .

قرآن له یوې خوا نه د اسلامي جماعت په زړونو کې د ګروهې مانۍ ودانوي او له بلې خوا نه له دغه جماعت سره د شا وخوا په جاهلي سنګرونو باندې هم په قوت او شدت حمله کوي ، په خپله د اسلامي جماعت د افکارو او اعمالو او اخلاقو سره هم چې د جاهلیت أثار پکې پاتې وي مخالفت او جګړه کوي ، چې په پای کې د همدغه ډول دوه اړخیزو جګړو او نا مساعدو حالاتو په بهیر کې د اسلامي ګروهې شانداره مانۍ ودانه شوه .

خو د محض ( نظریې ) او یا ( الهیاتو ) په بڼه نه وه او نه د کلامي ( جدلیاتو ) په جامه کې ، بلکه د یوه ژوندي متحرک او فعال تحریک په بڼه چې مظهرئې د قرآن روزل شوې غوره اسلامي ټولې ( جماعت ) و ، د دغه جماعت ټوله فکري ، عملي او اخلاقي پرمختیا د ښوونې او روزنې له پلوه د اسلامي نهضت د تصوراتو په رڼا کې شوې وه .

هغوی ته چې کوم ډول روزنه ورکړ شوې وه هغه پردې روحیه ولاړه وه چې دغه ټولې به د یوه منظم او جنګیالي لښکر په توګه له جاهلیت سره په جګړه بوخت وي ، ځکه چې د دې نهضت پرمختګ د ګروهې او فکر د پرمختګ او لوړتیا عملي تفسیر و ، دا وه د اسلام د تګ سمه او نیغه لار چې د اسلامي فطرت ښه ترجماني کولای شي .

## اسلام نظري نه بلکه عملي دین دی ؟

د اسلامي دعوت علمبرداران باید د دین مزاج او مبارزې د لارې هغه اصول چې په پورته ډول مو یاد کړل په غور وڅیړي او ورته ځیر شي ، له دغه غور او فکر نه وروسته به دوی ته څرګنده شي چې د ګروهې د ودانۍ د ودانولو هغه اوږده موده چې په مکه کې تیره شوه ، داسې نه وه چې یوازې یې د اسلام د نظریاتي زده کړې په مسئله بسنه ( اکتفا ) کړې وي .

په حقیقت کې د ګروهی د ماڼی د ودانۍ لو پړاو هغه مرحله چې عملاً پکې د اسلامي تحریک فعالیت مینځ ته راغی او د اسلام د مثالي، غوره ډلی د تشکیل د بنسټ ډبره عملاً کیښودل شوه ، دوه جلا او یو له بله بیلی مرحلی وی ، په حقیقت کې دا دواړه مرحلی یوه مرحله وه چې په یو وخت کې پکې د ګروهی نیالګی هم کیښودل شو او د اسلامي نهضت پاڅون هم د عمل ډګر ته راووت .

د اسلام د عملی وجود لپاره یی لاره هم اواره کړه له همدی امله که چیری څوک په ګانده ( اینده ) کې د اسلام د بیا ژوندی کولو هڅه کوی نو باید چې دغه ډول دود ( روش ) غوره کړي .

غوره دا ده چې د عقیدی د تعمیر مرحله اوږده وی او د تعمیر کار ورو ورو سر ته ورسیږی ، هر قدم باید د استحکام او ثبات ښکارندوی وی ، دغه مرحله باید د ګروهی په هکله له بی فایدی بحثونو نه ځار نه شی ، بلکه په دی مرحله کې باید عقیده د یوه ژوندی حقیقت په توګه سترګی پرانیزی ، لکه څنګه چې په فطری ډول د عقیدی غوښتنه ده او د یوه داسی غوره مثالی ډلی په بڼه کې ځان وښیی چې د ننی او بهرنی پرمختګ مظهر یی په خپله عقیدی د پرمختګ مظهر وي .

د یوه داسی عملی تنظیم په بڼه وی چې جاهلیت ته د جګړی بلنه ورکړی نه یوازې د فکر او نظر په سنګر کې بلکه د عمل او کردار په محاذ کې هم ورسره په جګړه بوخت شی ، چې په دی توګه عقیده په یوه محسوس پیکر بدله شي او د دغه الغا وتلغاو په مینځ کې وده او پرمختګ وکړي .

تر کومه ځایه پوری چې په اسلامي ګروهی پوری اړه لری دغه خبره د اسلام له پلوه بالکل غلطه نه بلکه زښته ډیره خطرناکه هم ده چې عقیده د ښکاره او څرګندو بحثونو په شکل پرمختګ وکړی او مازی ( محضی ) د نظری بحث او مجرد فکری تحقیق په میدان کې محدوده پاتی شی ، قرآنکریم په مکې دوره کې د عقیدی په تعمیر او استحکام کې پوره دیارلس کاله د دی امله نـــه و تیر کړی چې هغه یو ځلی نازله شـوی وه ،

که الله جل جلاله غوښتلی وای نو ټول قرآن کریم یې هم په یو ځلی نازلولای شو .

بیا به یې د قرآن منونکو ته دیارلس کالو پورې څه نه ویل تر هغې پورې چې هغوی په دغه موده کې د اسلامي نظریې پر علمی او نظری دوارو برخو ښه نه وای پوهیدلی ، خو الله تعالی دغه لار غوره کړه ځکه د هغه منظور نظر نور څه وو .

الله جل جلاله په نړۍ کې د یوه بې ساری نظام د حکومت ټینګول غوښتل ، هغه په یوه وخت کې د عقیدی تعمیر ، د دغه مخکښ تحریک تاسیس او هم د دوی د نماینده ټولنی د تنظیم مینځ ته راوستل غوښتل ، هغه غوښتل چې د عقیدې په قدرت ، تحریک او ټولنه دواړه په پښو ودریږی او د تحریک او جماعت د کارنامو له برکته عقیده رښا پیدا کړی .

الله جل جلاله غوښتل چې عقیده د جماعت متحرک او عملی ژوند وی او د جماعت تحریک او ګرمجوشی ، د عقیدی آئینه وی ، الله جل جلاله په دی پوهیده چې د انسانانو اصلاح او د ټولنی روغ تشکیل کوم داسی کار نه دی چې سمدلاسه دی په یو څو شپو ورځو کې وشي .

دا ځکه چې د عقیدی د تعمیر او ودی لپاره خو به ضرور دومره وخت پکار وی لکه څومره چې د یوه فرد اصلاح او د یوه مثالی ټولی د تشکیل او تنظیم لپاره پکاریږی ، چې له یوی خوا د عقیدی ودانی بشپړه شی او له بلی خوا یوه داسی غوره ډله مینځ ته راشی چې د دغی ګروهی حقیقی مظهر او عملی تفسیر وي .

د دین سپیڅلی مزاج همداسی دی د قرآنکریم ه مکې دور نه هم د هغه د دغه ډول مزاج د څرنګوالی کیفیت څرګندیدای شی ، مونږ باید د دین د مزاج طبیبان شو او د خپلو ناکراره غوښتنو او له عقله لری انسانی نظریاتو د ماتی خوړلو احساساتو له سیلاب سره په یوه مسیر کې لار نشو .

د دین د مزاج د تبدیلولو هڅه ونکړو ، دین د خپل دغه مخصوص مزاج کارنامه ډیره پخوا د ( مسلمان امت ) په نامه د یوی نومیالی غوره ډلی په روزلو کې ښودلی ده ، په اینده کې هم که څوک د یوه داسی امت د جوړولو

هغه وکړي او وغــواړي چې اسلام بیا په نړۍ کې پــه خپلو پښو ودرېږي ، نو د دین د دغــه ډول مزاج او د کار کولو د لارو چــارو پــه واسطه یې درولی شي .

مونږ باید په دې ښه پوه شو چې داسې هر ډول زیار او هڅه له یوې مخې غلطه هم ده او خطرناکه هم ، چې مقصد یې دا وي چې د اسلام په څیر ژوندي او عملي عقیده چې د یوې قوي متحرکې او ژوندۍ ټولنې په وجود کې خورېږي او د یوه منظم مثالي غوره تحریک بڼه اختیاروي ، هغه له خپل فطري پرمختګ او عمل نه بې برخې کړای شي او د یوې مجردې نظریې په توګه د درس او تدریس او عملي مباحثو میدان وګرځي ، چې وکولای شو د انساني خوارو او پمنو نظریاتو په وړاندې د اسلامي نظریې برتري او لوړتیا جوته کړو .

د اسلامي ګروهې غوښتنه خو دا ده چې ژوندي انسانان د هغې مثالي او غوره ډله واوسي او د یوه پاخه تنظیم د عمل پر نامه وي ، د یوه داسې نهضت بڼه غوره کړي چې د شا وخوا جاهلیت سره هم لاس په ګریوان وي او د خپل تنظیم په غړو کې هم د جاهلیت پاتې اثرات له مینځه یوسي ، دا ځکه چې مخکې له دینه چې انسان ، د دې عقیدې په نور منور شي په خپله هم د جاهلیت یو جز و .

د لږو ډیرو جاهلي اثراتو پاتې کیدل په ده کې کومه ناممکنه خبره نه ده ، اسلامي عقیده د خپل دغه ماهیت له مخې په دومره پراخه پیمانه د خلکو په اذهانو او زړونو کې ځای نیولی شي چې هغه د نظریاتي بحثونو له کوچنۍ او تنګې دایرې نه څو برابره ارته وي .

او له دې سره سره هغه یوازې د اذهانو او زړونو په ایلولو ( تسخیرولو ) نه بسیا کیږي ، بلکه د هغوی د اعمالو څارنه هم کوي ، الوهیت ، کاینات ، ژوند او انسان دا هغه مباحث دي چې د دوی په هکله د اسلام تصور نه یوازې دا چې ښت زیات جامع هر اړخیز او بشپړ دی ، بلکه حقیقت او لازمي هم دی ، اسلام د خپل مزاج او فطرت پر اساس دا نه غوښتل چې د وچو عقلي او علمي تصوراتو یوه مجرده نظریه شي .

دا هم د اسلام د فطرت نه مخالفه ده او هم د اسلام له هدف او غايت نه ، د اسلام چې کوم شي خوښيږي هغه دا ده چې د ژونديو انسانانو په جامه کې راڅرګند شي او يو ژوندی تنظيم يې نماينده وي ، يو عملي نهضت يې د غوښتنو عملي تفسير وي ، د اسلام د پرمختګ لاره هم ډيره عجيبه ده هغه کسان چې اسلامي دعوت منی د يوه منظم او فعال تنظيم په چوکاټ کې د کښت په توګه وده کوي .

تر هغې چې د پوخوالی هغه مرحلې ته ورسيږی چې د نظر او عمل له پلوه کوم توپير په کې نه وی پاتې شوی ، د خپلې ودې په وخت کې هغوی هيڅکله هم د يوی مجردی نظريې د خاوندانو په څير د ژوند له عملي مسايلو نه جلا نه اوسی بلکه په واقعي توګه د عمل او حرکت په بهير کې ټول پړاوونه سر ته رسوی .

پاتې شوه دا لار چې لومړی دی ( اسلامي تصور ) په نظری او تجريدی لحاظ پوخوالی تــه ورسيږی او بيا دی هغه د عمل او نهضت پــه ميدان کې وده وکړی ، نو د ودی او پرمختګ دغه لار د دغه دين له فطـرت ، نصب العين او مخصوص جوړښت سـره له هر پلوه نا مناسبه ، خطــرناکه او زيان منه ده .

الله جل جلاله فرمايې : وَقُرْآنًا فَرَقْنَاهُ لِتَقْرَأَهُ عَلَى النَّاسِ عَلَى مُكْثٍ وَنَزَّلْنَاهُ تَنْزِيلًا [بنی اسرائيل : ۱۰۶]

( او دغه قرآن مونږ لږ لږ نازل کړيدی چې تاسی يې په وقفو وقفو خلکو ته واوروی او هغه مونږ په تدريج سره نازل کړيدی ) .

د دغه ارشاد له مخې د اسلام دواړه اړخونه قصدا په يوه وخت کې په دغه ډول غوره ګڼل شويدی ، د قرآن لږ لږ نازليدل ، او بيا هغه په وقفو وقفو خلکو ته اورول ، دغه لار د دی لپاره غوره کړای شويده چې د ګروهی پر بنسټ ودانيدونکې نظام د محض يو نظر په شکل نه بلکه د يوه ژوندی او فعال تنظيم په وجود کې ځان ښکاره او تر پوخوالی ورسيږی .

## د دين د فکر او عمل لارې خدايي دي

د اسلام مدعيان او مخکښان بايد په واضحه توګه دا خبره هم په ياد وساتي ، لکه څنګه چې دغه دين يو رباني او خدايي نظام دي ، همدغه راز يې د دعوت او کار لارې چارې هم په الهي وحي پورې اړه لري ، د دين د فطرت او د کار په لارو چارو کې په کامله توګه هم اهنګي او همرنګي موجوده ده ، که څوک وغواړي چې له دغې لارې پرته په بله کومه لار د دين د عملي کولو ىخه وکړي هغه به يوه بې ګټې هڅه وي .

دغه دواړه لارې سره نښ ى جلا کيدلاي او پ دې خبره هم بايد پ ه شي ، لکه څنګه چې دغه دين د فکر ،و نظر له انقلاب نه د عمل او کردار د انقلاب راوستلو لپاره راغلى دى په همدې توګه غواړي چې د فکر تګ لورې هم بدل کړي ، چې د عقيدې د تعمير او په عملي ژوند کې د انقلاب د راوستلو لپاره ورنه کار اخيس تل کيږي ، دغه دين عقيده هم جوړه وي او د امت د تشکيل لپاره هم هڅه کوي او ترڅنګ يې خپل ځانګړي فکري نظام ته هم وده ورکوي .

د هغه ودونې ( رايج کولو ) لپا ه ه ماغومره زور او قوت پکار اچوي لکه څومره چې د عقيدې په تاسيس او د عمل په بدلون کې لګوي ، له همدې امله د دغه دين ځانګړي فکري نظام ، ځانګړي ايډيالوژي او غوره مثالي او ژوندي تحريک درې واړه بيل ، بيل شيزونه نه دي ، بلکه درې واړه په يوه وخت سر ته رسيږي ، څکه چې دا درې واړه د يوه ګل درې پاڼې دي .

له پورتني څيړنې نه مونږ ته څرګنده شوه چې د دين د احياء د کار طرز او دود يو مخصوص طرز دى ، اوس په دويم پړاو کې بايد مونږ تـه دا هم څرګنده شي چې د کار دغه لار يوه ځانګړې او يوازيني او ابـدي لار ده ، دغه مخصوصه طـريقه د اسلامي دعـ ت پـه کوم مخصوص پړاو پـورې اړه نه لري .

نه د حالاتو او شرايطو تابع ده او نه محيط او نه يوازې د هغو حالاتو لپاره تاکل شويده چې د لومړنې غوره او مثالي تنظيم د پاڅون په وخت کې وو ، د اسلامي دعوت د کار دغه ځانګړې لار د زمان او مکان له قيودو نه

آزاده ده ، هر کله که د حق د دين د عمل او پاڅون هلی ځلی بری ته رسيږی نو د دعوت د دغی ځانګړی لاری په نتيجه کې به رسيږی .

د اسلام مسئوليت يوازی همدومره نه دی چې د خلکو په اعمالو او عقايدو کې انقلاب راولی ، بلکه دا هم د اسلام د مسئوليت په دايره کې شامل دی چې د خلکو د فکر په طرز او نظر کې هم يو مثبت بدلون راولی او همدا رنګه هـم د حالاتو او تصوراتو پـه باره کې د هغوی پـه نـړی ليد ( جهان بينی ) کې بدلون راولی ، ځکه چې د اسلام د فکری نظام منبع او ماخذ هم د الهی هدايت چينه ده .

له همدی امله اسلامي طرز فکر د خپل جوړښت او فطرت له مخی هم له هغو ټولو اند دودونو ( طرز فکر ) سره بالکل مخالف دی چې لنډ اندو او فانی انسانانو تخليق کړيدی .

که مونږ د يوی مجردی نظريې په توګه د اسلام د پوهيدلو هڅه وکړو او وغواړو چې دغه نظر يوازی د بحث او لوست د ميدان يوازينی لوبغاړی وی ، نو په دی توګه به مونږ په حقيقت کې اسلام له ربانی طرز فکر او خدايی لاری نه جلا کړی وی او د انسان د فکری نظام تابع کړي به مو وي .

يعنی دا چې د الله جل جلاله له خوا د بشريت د خير او ښيګړی لپاره ټاکل شوی ( طرز فکر ) معاذ الله له انسانی اند دودونه بی ارزښته دی او مونږ د الله جل جلاله د نظريی او عملی نظام ته ترقی ورکوو او د انسانی نظامونو سره يې د سيالولو هڅه کوو ، دغه ډول نظر بی اندازی خطرناک او زيانمن دی ، دغه ډول فکری او ذهنی هزيمت د ملت لپاره سخت زيانمن او بربادوونکې وی .

د حق نظام هغو ټولو ته چې د اسلامي دعوت په ميدان کې په عمل بوخت دی د فکر او تدبر ځانګړی پيمانی او ميتودونه ورکوی چې د هغی پـه مرسته هغوی د هغو فکری ميتودونو او پيمانو د زيان او خرابی نـه ځان پـه ښه توګه وساتلی شی ، چې جاهليت په ټوله نـړۍ کې دود کړيدی ، هغو چې د عقلونو ښيښنی يې ګردجنی او د تعليم او ثقافت خواړه يې پـه زهرو لړلی دی .

که د دی ابجې بلا ( سترې بلا ) په مقابله کې مونږ په دین داسی وپوهیږو چې هغه د دین د فطرت مخالف او د غالب جاهلیت نتیجه وی ، نو مونږ به سخت دوه اړخیزه زیان کړی وی ، له یوی خوا به مو دین له خپلی هغی اصلی وظیفی او عمل نه ایسار کړی وی ، چې د هغی د سر ته رسولو لپاره بشریت ته را استول شویدی او له بل پلوه به مو د یوه انسان په توګه ځان له یوه داسی طلایی چانس نه بی برخی کړی وی چې په هغی سره مونږ د اوسنی پیړی د جاهلی نظام له منګولو نه خپله مری خلاصولی شو .

او له هغو ټولو زهرجنو اثراتو نه خپل ځانونه ژغورلی شو ، چې زمونږ ذهن او روزنه یې زهرجنه کړیده ، د مسئلی دغه اړخ هم ډیر دروند او خطرناک دی او دغه ډول خساره او زیان به هم ډیر تباه کوونکې ثابت شی .

د اسلامي انقلاب د مینځ ته راوړلو لپاره چې د فکری نظام او عمل د لایحی څومره ضرورت دی نو د هغی اهمیت او ضرورت د اسلامي نظام د عقیدی او د ژوند له قانون نه کم نه دی ، ځکه چې دا دواړه اړخه له یو بل نه جلا نه دی ، که مونږ ته دا هر څومره ښه او په زړه پوری ښکاری او مونږ د اسلامي نظام او ګروهی د ښه والی په برخه کې هر څومره د قلم نیلی وځغلوو مګر یو حقیقت باید بیا هم زمونږ له سترګو نه پټ پاتی نشی او هغه دا چې زمونږ دا خدمت به هیڅکله هم اسلام د یوه واقعی تحریک په توګه په پښو ونه دروي .

دا خبره هم باید له یاده ونه باسو چې که مونږ اسلام په دغه ډول خلکو ته وړاندی کړو ، نو له دی نه به بهرنی نه بلکه هغه خلک هم ګټه واخلی چې عملا د اسلامي تنظیم لپاره کار کوی ، او خپله دغه خلک هم شاید هغومره ګټه ورځنی واخلی چې د خپل تحریکي سفر پـه دوران کې ورتـه اړتیا لري .

نو له همدی امله په دی هکله زه بیا وایم چې اصلی او سمه لاره دا ده چې له یوی خوا اسلامي عقیده بی له کوم ځنډه په عملی تحریک بدله شی او له بلی خوا دغه تحریک له هماغی شیبی باید د عقیدی سم تصویر او حقیقی ترجمان واوسی .

زه بیا بیا دا خبره کوم چې د اسلام د بری همدغه فطری لار ده او دغه فطری لار نه یوازی لنډه او سمه سوتره ده ، بلکه ډیره موثره او پــه زړه پوری هم ده ، له هغو ټولو لارو نه د انسان فطــرت ته نژدی ده چې د نظــریاتو او افکارو د جر وبحث او مجردو علمی څیړنو په بڼه خلکو ته وړانــدی شویـدی .

حال دا دی چې هغه مرحله چې انسان د هغو نظریو پر بنسټ د کوم عملی تحریک ودانی پیل کړی او یا په خپله د هغو نظریاتو ژوندی نمونه وګرځی او د هغی په لاربنوونه قدم په قدم وړاندی لاړ شی ډیره لری ده او نه هیڅکله د هغو خلکو د مینځ نه راتلو امکان پیدا کیدی شی .

**د اسلامي نظام له انفاذ نه مخکې د اسلامي قانون د تدوین غوښتنه سمه نه ده :**

که پورتنی نظر د اسلام د نظریی او ګروهی په هکله سم وی نو هغه باید د اسلامي نظام د بنیادونو او د هغوی د قانونی تفصیلاتو په هکله په لومړی درجه کې درست وی ، د اوسنی جاهلیت کوم تور جال چې زمونږ شا وخوا ته نن غوړیدلی دی ، هغه د ځینی مخلصو اسلامي روڼ اندو ( روشن فکرانو ) او خادمانو په اوږو دومره دروند بار دی چې هغوی دیته اړ باسی چې له بی صبری نه کار واخلی او د اسلامي نظام ټول پړاوونه په چټکې یو پر بل پسی تیر کړی .

هغوی هلته له یوی بلی نازکې پوښتنی سره مخامخ کیږی ، خلک له هغوی نه بیا بیا دا پوښتنه کوی چې د هغه نظام تفصیلات کوم دی چې تاسو یې ادعا کوی ؟ د اسلام د نافذولو لپاره تاسو پر هغه باندی څومره ریسرچ ( څیړنه ) کړیدی ؟ څومره مضامین او مقالی دې پری لیکلی دی ؟ فقه دی تر کومی اندازی د نوو اصولو په رڼا کې ترتیب کړیده ؟

ته به وایې چې اوس د اسلامي شریعت د نفاذ لپاره له خلکو سره د بل څه کمی نشته ، یوازی د فقهی احکامو او فقهی څیړنو کمی دی ، د الله جل جلاله حاکمیت یې منلی دی او د الله جل جلاله د شریعت په حکومت یې هم خوښه ده ، بس یوازی همدا یوه نیمګړتیا موجوده ده او هغه دا چې د (

مجتهدينو ) له خوا په نوي دود باندې د فقهي اصول نه دي جوړ شوي ، په حقيقت کې دا پر اسلام باندې د مخالفانو بې سرو بوله ملنډې دي ، پر دې باندې بايد هر هغه سړی له غصې نه تور او شين شي چې په زړه کې يې د اسلام په هکله د ذرې هومره مينه او غيرت هم وي .

**د جاهليت له چل ول نه بايد ځان وساتو :**

د جاهليت له دغه ډول حيلې او نيرنګ نه يوازينی مطلب دا دی چې د الهي شريعت د پرمختګ او ردولو څه پلمه په لاس ورشي او پر انسان باندې د انسان د باداري د شهنشاهي جنډه د تل لپاره پورته کړي ، هغوی دا هم غواړي چې د الله جل جلاله د وحدانيت د ډيوې پتنګان د دين د پاڅون له هغې لارې نه بې لارې کړي چې الله جل جلاله ورته غوره ګڼلې ده او غواړي چې هغوی په هغو اصولو هم محکم او ثابت پاتې نشي چې د فکر او عقيدې پرمختګ دې د تحريک په بڼه څرګند شي .

هغوی غواړي چې د اسلامي دعوت هغه مزاج هم مسخ کړي چې د هغې له مخې د اسلامي نظرې تکميل د اسلامي نهضت په توپاني فضا کې سر ته رسيږي ، د اسلامي نظام خدو خال په عملي هڅو سره څرګنديږي .

قانون جوړونه به د اسلامي ژوند عملي مسايل او حقيقي ستونزې په نظر کې نيسي خو د حق لارې تلونکې بايد د جاهليت په دغو ناوړه هلو ځلو خپل تګ لوري پرې نږدي ، لکه هغوی بايد په پوره زړورتيا د بل هر طرز فکر د کار او فعاليت زمينه له مينځه يوسي چې د جاهليت له خوا د دوی د تحريک او دين د پرمختګ په لار کې مرکونډې شيندي .

د حق له مدعيانو نه بايد د مومو پوزې جوړې نشي چې د دين مخالف عناصر يې هره خوا تاو کړي هماغه خوا کږيږي شي ، دا د دوی وظيفه ده چې د جاهليت ټول اسرار او چلونه رابرسيره کړي او کرغيړنه څيره يې خلکو ته وښيي ، نو په خاصه توګه د هغوی دغه مسخره غوښتنه هم بايد په پوره شدت سره رد شي چې د اسلامي ( فقهي تجديد ) په پرده کې يې يوې داسې ټولنې ته غواړي چې نه د الله جل جلاله د قانون برترې لوړتيا مني او نه يې له غير الهي قوانينو نه د کرکې اعلان کړيدی .

دغه ډول خبرې په حقیقت کې د یوه پاخه او ګټور کار نه د مسلمانانو د اغفال په خاطر کیږي او د دې لپاره کیږي چې د اسلام مینه وال یوازې په هوا کې تخم وشیندي او بیا یې حاصل ته په تمه واوسي ، نو له دې امله دا د دوی ایماني وظیفه ده چې د دغه ډول چلونو او مکرونو توره پرده څیرې کړي او پرې یې نږدي چې برې ته ورسیږي ، دغه دین چې د پاڅون او نهضت د پرمختګ کومه نتیجه وړاندې کړیده باید کټ مټ په هماغه توګه د دین د حکومت د رامینځ ته کولو لپاره هلې ځلې وشي ، په دغه نسخه کې د دین د قوت او طاقت راز پټ پروت دی او همدغه نسخه یې د برم او شوکت منبع هم ده .

اسلام او د اسلام د احیاې مجدد ، د کار او اصولو طریقه دواړه مساوي اهمیت لري ، په دواړو کې دوه رنګي نشته ، د پرمختګ او برې بله هره لار چې هر څومره لنډه او په زړه پورې ښکاري د اسلام کاروان د مقصد منزل ته نشي رسولای .

د انساني فکر محصول نظامونه خو د بهرنیو جوړو شوو نسخو په واسطه په پښو دریدی شي ، خو هغوی زمونږ د نظام له مینځ ته راوړلو نه عاجز دي ، نو له دې امله د اسلامي نهضت لپاره د دین پاڅون او قیام په ځانګړې لار باندې تګ او پابندي دومره ضروري ده څومره چې د اسلام د بنیادي ګروهې او تولنیز قانون پابندي لازمه ده ، ځکه چې : ان هذا القرآن یهدی للتی هی اقوم ( دغه قرآن تاسو ته د هغې لارې په لور ښوونه کوي چې بالکل سمه او صافه ده ) .

## دریم فصل

# د اسلامي ټولنې د جوړولو سمه لار او ځانګړتیاوې

### د انبیاء و اصلي دعوت :

د اسلامي دعوت هغه دوره چې د بنسټ ډبره یې رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپلو مبارکو لاسونو کیښوده ، د هغې اوږدې سلسلې ( لړې ) وروستۍ کړۍ وه ، چې د الله جل جلاله د نبیانو په لارښوونه او مشرۍ د نړۍ له لومړي سر نه راپیل شوې وه ، د انساني تاریخ په اوږدو کې له پیله د حق لور ته دعوت یوه موخه ( هدف ) درلوده ، او هغه دا چې بشریت له خپل ( خالق ) سره اشنا کړي ، د هغه له یو والي برم او عظمت سره یې اشنا کړي ، هغوی د یوه الله تعالی بندګۍ او عبودیت ته راوبولي او په نړۍ کې د دروغي خدایانو د ځواک ( قدرت ) لمنه ورټوله کړي .

د تاریخ په مختلفو پړاوونو کې له یو څو د ګوتو په شمیر کسانو نه پرته چې کله کله به یې د یو الله جل جلاله له وجود نه انکار وکړ ، نورو انسانانو په ټولنیز ( مجموعي ) ډول هیڅکله هم د ( الوهیت ) له نظریې نه انکار او سر غړاوی نه دی کړی .

او نه یې کورټ د ( الله جل جلاله ) له وجود نه انکار کړیدی ، هغوی خو یا د خپل رب او پالونکې په هکله درست معرفت او بصیرت نه درلوده او په دغه لار کې د ځینې نني زماني رنځور ذهنه ، فیلسوف ډوله کسانو په خبرو تیروتي وو او یا یې له یو الله جل جلاله سره نور هم په الوهیت کې شریکول ، کله به یې سره له دې چې عبادت هم کاوه او ګروهه به یې هم درلوده ، بیا به یې هم له هغه واحد ذات سره بل معبود شریکاوه ،یا د عقیدې په توګه او یا به یې د غیر الله جل جلاله د حاکمیت په توګه د بل غلامي کوله .

دغه دواړه صورته بیا هم شرک دی او شرک په هر حال کې سره برابر دی ، په هر ډول چې وي ، ځکه چې انسان د الله جل جلاله له دین او حق لارې بې لارې کوي ، له هغې لارې نه د الله جل جلاله هر نبي له مودو راهیسې بشر ته د هغې په ښوونه بوخت وو .

خو د اوږدې مودې په تېرېدو به هغه لارښوونې دوې هېرې کړلې او بیرته به یې د هغه جاهلیت خواته مخه کړله چې الله جل جلاله به په خپل فضل وکرم له هغې نه خلاص کړي وو ، هغه به د شرک په کړلیچونو د ژوند مزل پیل کړ ، کله به د غیر الله د عبادت او عقیدې تر حده او کله به هم د نورو حاکمیت منل ، د بندګۍ تر حده او کله به هم په یوه وخت کې په دواړو ناروغیو اخ ، وو .

## په کایناتو کې د انسان اصلي دریځ

د انساني تاریخ په هر پړاو کې د الهي دعوت همدا یوه ځانګړتیا ( خصوصیت ) وه ، د دغه دعوت نصب العین ( اسلام ) دی ، چې معنی یې ده ، انسانان د خپل خالق او پروردګار تابع او فرمان منونکې کول ، د بندګانو له مریيتوب نه د هغوی خلاصول او د الله جل جلاله د بندګانو په لیکه کې یې درول ، د انسانانو له حاکمیت او باداری ، او د هغوی د رنځورو اذهانو د وضع کړو قوانینو له منګولو نه د هغوی خلاصول او د ژوند په هره برخه کې یې د یوه الله جل جلاله د احکامو او لارښوونو جاري کول ، د الهي حکومت د اقتدار جنډه پورته کول او د هغه له خوا درا استول شوو قوانینو منلو ته غاړه ایښودل .

د الله جل جلاله رالیږلو نبیانو د ځمکې پر مخ همدغه رسالت درلوده ، او د الله جل جلاله محبوب پېغمبر صلی الله علیه وسلم هم چې د کوم هدف لپاره مبعوث شوی و ، د بشریت د خیر او ښېګړو لپاره د هغه پیغام هم همدغه و چې مخکې مو یاد کړ ، هغه غواړي چې انسان په دې توګه د الله جل جلاله د حکومت او قدرت په مخکې د تسلیم لاسونه په سینه کېږدي او فرمان یې ومني ، لکه څنګه چې دا ټول کاینات له پیړیو ، پیړیو راهیسې د الله جل جلاله له فرمان نه د ذرې هومره هم سر غړاوی او نافرماني نشي کولای ، انسان د دې کایناتو یو ډېر کوچنی جز دی .

نو له دې امله هغه ( قدرت ) چې د انسان د طبعي ژوند مسیر او تګ لوری ټاکې هماغه ( قدرت ) باید د هغه د ورځینی ټولنیز ژوند په سمون کې هم حاکمیت ولري ، هغه نظام او قدرت چې دا ټول کاینات یې تر

تصرف او سلطې لاندې دي ، او همدا رنګه پخپله د انسان ځينې غير ارادي ارخونه هم د هغه په تصرف کې دي ، او انسان له هغې نه پرته کوم بل قانون د ځان لپاره نشي جوړولی او د هماغو قوانينو په اطاعت مجبور دی .
ځکه انسان د خپلې ودې ، روغتيا ، ناروغۍ ، مرګ او ژوند په برخه کې د پنځ ( طبيعت ) له قوانينو سره مخالفت نشي کولای ، جبرا يې پابند دی ، په پنځ کې دغه قوانين د الله جل جلاله په قدرت جاري شويدي ، انسان حتی په خپلو ارادي کړو کې هم د نتايجو په برخه کې د کايناتو د قانون په وړاندې بې وسې دی ، په دغو ټولو برخو کې هغه د الله جل جلاله د سنت په بدلولو قادر نه دی .

نه په دې خبره توانيدلای شي چې د پنځ پر حاکمو قوانينو او نواميسو کې په خپله خوښه څه بدلون راولي ، نو له دې امله انسان ته پکار دی چې د خپل ژوند په هکله هم د اسلامي قوانينو پيروي وکړي او د ژوند له وړو ، وړو مسئلو او پېښو نه واخله ان تر لويو پيښو پورې په ټولو کې ، الهي شريعت ، حاکم وګرځوي نو پدې توګه به د ده د ژوند په غير ارادي او ارادي برخو کې توازن او هم اهنګي پيدا شي ، له بلې خوا به د ژوند د دواړو اړخونو او پراخه کائناتو ترمينځ هم سمون او برابرتيا راشي .

## د جاهليت له هر اړخيز تسلط نه د خلاصون سمه لار

د جاهليت تومنه او مايه له داسې فاسدې مادې نه جوړه شوې ده چې بايد پر انسان باندې د انسان د حکومت سلطه ټينګه کړي ، چې په دې توګه انسان د فطرت له نظام نه جلا کړي او د انسان د ژوند غير ارادي او تکويني برخې د انسان له اختياري او تشريعي برخو سره په مخالفت او ضديت اخته کړي ، هماغه جاهليت چې په مقابله کې يې د الله جل جلاله رسولانو او نبيانو د اسلامي دعوت بيرغ راپورته کړ ، او حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د همدغې جاهليت د له مينځه وړلو او د حق د ډيوې د روښانولو لپاره دنيا ته تشريف راوړی ؤ ، دغه جاهليت د کومې مجردې نظريې پد توګه موجود نه ؤ .

په تيره په ځينی حالاتو کې خو يې له سره کومه ( نظريه ) هم نلرله ، تل د يوه متحرک او ژوندی تنظيم په بڼه راپورته شويدی ، او د يوی داسی ټولنی په شکل يې تبارز کړيدی چې خپل ځانګړی ليډر شپ ، ځانګړی تصورات ، اصول ، روايات ، عادات ، انګيرنی ، او ننګيرنی لري .

هغه يوه منظمه ټولنه وی د غړو ترمينځ يې خپل مينځی اړيکې له يوه بل سره د مرستی منظم توافق او وفاداری پر اصولو له دی امله ولاړی وی چې ټوله معاشره په شعوری او غير شعوری توګه د خپل ځان د ساتنی لپاره بی له کوم توپيره په تحرک او فعاليت کې ژوند تيروي .

د خپل شخصيت د ساتنی په لار کې هغوی له ټولو خطراتو سره مقابله کوی او په له مينځه وړلو کې يې بی دريغه هڅه کوی ، همدا رنګه که چيری څوک د دوی د مستقل نظام لپاره څه قسم خطر رامينځته کړی ، د هغه مخنيوی هم په پوره قوت او شدت سره کوي .

نو څرنګه چې جاهليت محض د يوی علمی نظريې په بڼه نه بلکه د يوی ژوندی او فعالی ټولنی په بڼه مينځ ته راځی ، نو د دغه جاهليت د مانۍ د نسکورولو او د دی لپاره چې تيروتلی انسانان بيرته د لوی الله جل جلاله دربار ته د بندګی د سجدی لپاره حاضر کړو ، هره هڅه او زيار چې څوک په دغه لار کې يوازی د دی لپاره ګالی چې اسلام مازی د يوی علمی نظريې په توګه نړۍ والو ته وړاندی کړی بی ګټی او زيانمن دی ، جاهليت عملا په نړۍ کې د حکومت پر مسند تکيه وهلی ده او تر شا يې هم ژوندی منظمه او متحرکه اداره موجوده ده ، په داسی حالت کې به د اسلام لپاره يوازی په علمی نظره هڅه او کوشش د جاهليت په مقابله او ماتولو کې نه يوازی دا چې بريالی ګام نه وی ، بلکه د جاهليت له قوت سره به انډول هم نه وی .

څرنګه چې د اسلام مقصد دا دی چې د يوه بالفعل موجود نظام مانۍ ونړوی او د هغی پر ځای د داسی يوه نظام مانۍ جوړه کړی چې د خپلو اصولو او قوانينو له مخی له جاهلی غالب نظام سره په هره لويه او وړه مسئله کې اختلاف لری .

نو په داسې صورت کې د عقل غوښتنه دا ده چې نوی نظام هم د يو ژوندی منظم فعال تحريک او قوي تولنې په توګه د عمل ميدان ته د مبارزې لپاره راوځي ، په داسې ټينګ هوډ او لوړه روحيه چې د هغې نظرياتي بنسټ ، امنيتي تدابير ، تولنيز نظام ، د غړو ترمينځ اړيکې او روابط نه جاهلي حاکم نظام نه په هر اړخ کې امتيازي او غوره صفات ولري .

## د اسلامي تولنې ايډيالوژيکې بنسټ

هغه ايډيالوژيکې بنسټ چې اسلام د تاريخ په هر پړاو کې د خپلې تولنې ودانې پرې ودانه کړېده . هغه دغه شهادت دی چې [لا اله الا الله] ، د دغه شهادت مقصد او مطلب دا دي چې معبود يوازې الله جل جلاله دي ، هماغه رب او پالونکې دي ، هغه د کائناتو د نظام منتظم دی ، هماغه ريښتوني حاکم دی ، زړه او ضمير بايد يوازې د هغه د وحدانيت په نور منور شي ، په خپلو عباداتو ، کړو وړو او شعائرو کې بايد د هغه د وحدانيت ثبوت وړاندې شي ، د عملي ژوند په قانون کې بايد د هغه د وحدانيت اصول حکم فرماوی .

له دغه هر اړخيز حاکميت نه پرته د [ لا اله الا الله ] عملي شهادت ناممکن دی ، په شرعي لحاظ هم دغه ډول شهادت د منلو وړ نه دی ، دغه کامل او هر اړخيز ژبني شهادت ته د داسې يوه عملي او موثر نظام جامه ور اغوستل کيدای شي او پر بنسټ يې هم داسې يو نظام منځ ته راتلی شي چې منونکې يې ته يې مسلمان او نه منونکې ته يې نا مسلمان ويلای شو .

په نظري لحاظ د دغه بنسټ اېښودل دا ښه والی لري چې د انساني ژوند چارې په پوره توګه د الله جل جلاله په واک او حاکميت کې وی او انسان د خپل ژوند په ټولو چارو کې له خپله انده کومه پريکړه ونکړي ، بلکه په ډيره کوچنۍ مسئله کې هم د الله جل جلاله حکم ته مخه وکړي او د هغې پيروي وکړي ، د الله جل جلاله د حکم د پيژندلو لپاره بايد يوه وسيله او ذريعه موجوده وي .

هغه ذريعه د الله جل جلاله رسول الله صلی الله عليه وسلم دی ، د شهادت په کلمه کې دغه ذريعه د اسلام د دويم رکن په حيث بيان شويده او

فرمايلي يې دی چې : ( واشهد ان محمد رسول الله ) " او زه شاهدی وایم چې محمد صلی الله علیه وسلم د الله جل جلاله رسول دی " .

دا هغه نظرياتی بنسټ دی چې د اسلام مانۍ پری ودانه ده او د اسلام اصلی روح دی ، دغه بنسټ د انسانی ژوند مکمل قانون جوړوی چې د ژوند په هر اړخ کې یې نافذول ضروری دي ، د یو مسلمان د ژوند ټولی انفرادی " وګړیزی " او ټولنیزی مسئلی اوارولی شی

که د اسلامي حکومت په خاوره کې وی او که تری بهر وی [illegible] په هغه روابطو پوری اړه لری چې له یوی اسلامي ټولنی سره یې ټینګ[illegible] و ده په داسی روابطو او اړیکو پوری مربوط وی چې [illegible] اسلامي ټولنه یې نورو غیر اسلامي ټولنو سره ټینګوی

## په جاهلی ټولنه کې اوسیدونکې مسلمان

لکه څنګه چې مونږ په پوره ډول وویل : اسلام یوازی یوه جامده او مجرده نظریه نده چې خلک یی د ګروهی په توګه ومنی او د معمولی شان عبادت تر حده پوری عمل وکړی او بیا دی پر زور او قوت ولاړی جاهلی ټولنی د ماشین یوه فعاله پرزه وګرځی ، د اسلامي ایډیالوژی دغه ډول منونکې ، د اسلام عملی وجود منځ ته نشی راوستلای .

که څه هم د شمیر له مخی هغوی زیاته برخه تشکیله کړی ، دا ځکه چې ( نظري مسلمان ) چې د جاهلی ټولنی د ترکیبی اجزاؤ یو جز دی ، خامخا به د جاهلی ټولنی تنظیمی غوښتنو ته غاړه ږدی ، د هغو ټولو اساسی ضروریاتو پوره کولو ته به چې د دغی ټولنی د ژوند او بقاء لپاره ضروری دی په شعوری او یا غیر شعوری توګه طوعا او کرهاء اړ کیږی .

بلکه تر دی لا زیاته خبره دا ده چې د همدغی ټولنی د ساتونکې او څارونکې په توګه به هم عمل وکړی ، د هغو عناصرو او عواملو په ټکولو او نابودولو کې به برخه واخلی چې د ده د وجود او نظام د ورانیدلو لپاره تری ویره موجوده وی .

دا ځکه چې که ( کل ) دا ټول وظائف سر ته ورسوی نو ( جز ) خو ورسره لازما په ارادی توګه او یا غیر ارادی توګه د دغو وظائفو د سر ته رسولو

لپاره د ( کل ) په پله پل رېدی ، په بله وینا دغه ډول ( نظری مسلمان ) چې د کومې جاهلی ټولنی مخالفت په نظری توګه کوی ، هغه په نا څان خبری توګه عملاء د هغی د ټینګښت لپاره لګیا وی ، بلکه تر هر څه د مخه دی د هغه نظام ژوندی حجره هم ثابتیدای شی .

ځکه چې د همدغه نظام او ټولنی لپاره د بقاء عناصر او د ژوند اسباب برابروی ، خپل تجربی لیاقت او مهارت ، علم او پوهه ، د ځوانی ځواک او قدرت ، د هغی خدمت ته ګوماری ، د دی لپاره چې د هغی عمر اوږد او ځواکمنه شی ، په داسی حال کې چې باید دغه ټول قوتونه د دغی جاهلی ټولنی د له مینځه وړلو لپاره په کار ولوېږی چې پر ځای یې د یوی اسلامي ټولنی مانی ودانه شی .

## له جاهلي قیادت نه سرغړونه ضروری ده

له همدی امله دا خبره ضروری ده چې د اسلام نظریاتی بنسټ ( د الوهیت عقیده ) له پیل نه د یوه منظم او فعال ټولی ( جماعت ) په بڼه څرګند شی ، دغه ټولی به له جاهلی ټولنی نه کورټ جلا وی ، چې کړنلار یې د اسلام او الله جل جلاله د حاکمیت مخنیوی دی .

دغه نوی ټولی باید له هره اړخه ممتاز او غوره صفت ولری او د یو نوی قیادت په چورلیځ وچورلی ، هغه قیادت چې د چارو واګی یې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په لاس کې وی او له هغه نه وروسته هر هغه اسلامي قیادت او رهبری د دغه امانت مسئولیت په غاړه لګنتری چې د انسانانو لپاره یـوازې د الله جل جلاله ( الوهیت ، ربوبیت ) د الله جل جلاله اقتدار او حاکمیت او د الله جل جلاله د قانـون او شریعت تر سیوری لاندې ژوند کول غواړي .

هغه څوک چې دغه شهادت اداء کړی چې : له الله جل جلاله نه پرته بل الله نشته او محمد صلی الله علیه وسلم د الله جل جلاله رسول دی نو هغه باید له جاهلی ټولنی سره خپلی اړیکې وشلوی او له جاهلی قیادت نه چې په هره جامه کې وی بغاوت وکړی .

که د کاهنانو ، پنډتانو ، جادوګرانو ، او قیافه پیژندونکو مذهبی قیادت او رهبری وی ، که سیاسی ، ټولنیز یا اقتصادي قیادت وی ( لکه څنګه چې دغه ډول قیادت د نبی صلی الله علیه وسلم په وخت کې د قریشو په برخه و ) ، دی باید خپلې ټولې وفاداری مرستی او تجربی د نوی اسلامي ټولی او د هغه الله جل جلاله پیژندونکې او الله جل جلاله منونکې مشرتابه او قیادت ته وقف کړی .

## په جاهلی چاپیریال کې د اسلام د احیاء لار

دغه فیصله کونکې اقدام باید له هماغه شیبی نه وشی په کومه شیبه کې چې څوک اسلام ومنی او دغه شهادت ورکړی چې [ لا اله الا الله ] او [ محمد رسول الله ] اسلامي ټولنه له دغی انقلابي اقدام نه پرته منځ ته نشی راتلای ، اسلامي ټولنی یوازی پدی هم منځ ته نشی راتلای چې د خلکو په زړونو کې د اسلام د نظریاتی بنسټ ډیره کیبنودل شی ، که د دغه ډول قولی ( وینایې ) مینه والو او پلویانو شمیر په نړۍ کې هر څومره زیات هم شی بیا هم اسلامي ټولنه نشی جوړیدلی .

د اسلامي ټولنی د جوړیدلو لپاره دا لازم او ضروری ده چې هغه څوک چې قولا د اسلام شهادت اداء کوی له هغوی نه باید داسی یو تحریک جوړ شی چې ډیر منظم او فعال وی ، د غړو ترمنځ یې له یو بل سره د مرستی همدردی او هم فکری مزی ټینګ وی .

په هره خبره کې هم اهنګ او همنوا وی ، یو ځانګړی هویت ولری ، د دغه نهضت غړی باید د انسانی جسم د غړو په څیر یو منظم ټولنیز حرکت ولـری او له خپل وجود نه دفاع وکړی ، د ټینګښت لپاره یې هڅه وکړی ، ریښی یې باید د ځمکې تل ته ورسیږی ، د ځانګو او ښاخونو تر سیوری لاندی یې باید د نړۍ مستضعفین په ډیره هوساینه د خپل ژوند په چارو او د الله جل جلاله په عبادت بوخت واوسي .

هغه ټول عوامل او سببونه چې دغه ستر وجود ته د میکروب په څیر زیان رسوی له مینځه یووړل شی ، دغه ټولی دندی ( وظیفی ) د یوه داسې [illegible] مغز و ، ویښ او روښانه ضمیر، تر رهبری او قیادت لاندی ترسر[illegible]

شي چې د جاهلي قيادت نه بالکل جلا او تر هغې ځو ګرايه منظم او فعال واوسي ، چې له يوې خوا نه د خپل نهضت په منډو ترړو کې يو رنګي او د نظر او عمل يو والي راوستلي شي او له بلې خوا د هغوی د اسلامي وجود په لا ټينګښت ، پرمختيا او پراختيا کې ښه ترا پرمختګ وکړای شي ، چې د خپل مقـابل دښمن ( جاهلي وجود ) اغيزي په يـوه مخيزه توګه له مينځه يوسي .

دا وه هغه فطري لار او متود چې د هغې پر اساس په نړۍ کې د اسلامي حکومت رون مشال د جهالت په تورو تيارو کې لګيدلی و ، هغه د نظرياتي قانون په شکل منځ ته راغی ، سره لدې چې په مجمله توګه و ، خو د خلکو د ژوند په ټولو چارو کې نافذ و .

د هغې پر بناء يو محکم ژوندی او متحرک تنظيم منځ ته راغی ، نه يوازې دا چې د جاهلي ټولنې په مقابل کې يې خپل ځانګړی شخصيت په جلا توګه تثبيت کړ بلکه جاهليت ته يې د مقابلې چلينج هم ورکړ ، هغه هيڅکله هم له عمل نه ليرې نه و او نه مبازې " محض " د يوه خيالي الواک ( نظريې ) په توګه ميدان ته راوتلی و ، په آينده کې هم د هغه وجود د يوه عملي نظام په توګه منځ ته راتلای شي .

که څوک له سره د جاهلي ټولنې د بې شميره ظلمونو او جنايتونو په تورتم کې د اسلام د ډيوې روښانول غواړي ، نو د تاريخ په هره مرحله او هر هيواد کې چې وي خامخا به د اسلام پر مزاج او فطرت باندې ځان پوهوي ، ځکه چې پرته له دينه به هيڅوک هم په سمه توګه د هغه د روزنې ، پالنې ، ودې او پرمختګ لپاره په ښه توګه زمينه برابره نکړی شي .

## د اسلام نصب العين د انسان د " انسانيت " پرمختګ دی

تر پورتنې تفصيل وروسته انسان بايد پدې هم پوه شي چې ، اسلام د پورتنې ښودل شوې لارې پر اساس د الوهيت د عقيدې پر بنسټ ، د مسلمان امت د تشکيل لپاره هڅه او هاند کوي ، غواړي چې هغه د يوې وحدت خوښونکې متحرکې او فعالې ټولنې په څير تبارز وکړي ، د دې

ټولنې د ارتباط او اړيکو پوازينی منبع به عقيده وی ، نو د دې ټولو هلو ځلو او منډو ترړو نه به يې مقصد څه وی ؟

د اسلام مقصد په حقيقت کې له دې ټولو هلو ځلو نه دا دی چې د انـ ا (انسانيت ) د غفلت له درانه خوبه راويښ کړی ، د اسلام پـه مکتب کې يې ور وزی ، د ضمير او وجدان له ښيښې نه يې د جاهليت تـور ماحول زنګ وتوږی ، د الوهيت او توحيد د عقيدی پـه وسپنتوږی ( سـوهان ) يې صيقل کړی .

هغه ته وده ورکړی ، ځواک او قدرت يې زيات کړی او د انسان په وجود کې يې په ټيلو غوښتنو غالب کړی ، اسلام په خپل حکومت او خپل نظام سره غواړی چې دغه ارزښتناک هدف ته ورسيږی ، د اسلام د ټولو قوانينو ، لارښونو ، احکامو ، هدف او مقصد همدغه دی .

انسان په ځينو صفاتو او خويونو کې له حيواناتو سره ګډ دی ، له همدی امله د همدغو اوصافو او خصائلو له مخې د ساينس ځينې ليونيان او د ( ساينتفک جهالت مخکښان ) پدی وهم کې دی چې ګنی انسان به هم د نورو حيواناتو په څير د حيواناتو د يوی ډلی يو غړی وی .

او ځينی خو يې لا پدی خام خيالی هم اخته کړی وو ، چې انسان به د جماداتو يو قسم وی ، خو حقيقت دا دی چې انسان له حيواناتو سره په ځينو صفاتو کې د ګډون سره سره داسی صفات او خويونه هم لری چې له هغو دواړو نه يې جلا کوی ، او هغه ته د يو ځانګړی موجود حيثيت وربښی چې د ( ساينتفک جهالت مخکښانو ) هم بالاخره پدی خبره اعتراف کړيدی .

په حقيقت کې ډيرو څرګندو شواهدو او حقايقو هغوی ديته اړ کړل چې په کائناتو کې د انسان امتيازی او غوره حيثيت ته قائل شی خو سره لدی هم د دوی د دغه اعتراف مخلصانه ندی [1]

---

۱ - د دغو خلکو مخکښ د نوی د وينيزم مدعی ( جولين هيکسلی ) دی [ ليکوال ]

## د انسانیت د پرمختګ نتیجې

په دغه برخه کې چې د اسلام سپیڅلی نظام د بشریت کوم چوپړ کړیدی ، د هغې له ښو نتایجو نه هیڅوک هم سترګې نشي پټولای ، اسلام د رنګ ژبې ، توکم ( نسل ) وطن او مادي ښیګړو ، جغرافیایي کړښو او بریدونو کمزوري اړیکې تولنې وشلولې ، د هغې پر ځای یې خلک د ایمان ، او عقیدې په یوه قوي او نه شلیدونکې ځنځیر وتړل .

پر همدې بنسټ یې د اسلامي ټولنې ماڼۍ ودانه کړه ، په دغه ټولنه کې یې د انسان او حیوان د ګډو صفاتو پر ځای یوازې د انساني صفاتو روزنې او ودې ته پاملرنه وکړه ، د هغو ولې نې د اسلام د سپیڅلي چینې په پاکو اوبو خړوب کړې ، د دغه ستر کار له نتایجو نه یوه ستره او انساني نتیجه دا وه چې : اسلامي ټولنه یوه داسې وسیع الظرفه او وسیع النظره ټولنه شوه چې د هغې په توده او خوږه غیږ کې ، د هر نسل ، هر قوم ، هرې ژبې ، او هر رنګ خلکو په خوښۍ او خوشالۍ سره ژوند تیرولای شو ، د دغې ټولنې په وګړو کې د حیواني خصایصو او بریدونو ، نوم او نښان هومره څه هم موجود نه وو .

د دغې ټولنې په ناپایه سمندر کې د انساني نسلونو د لوړ اهلیت او لیاقت ، پوهې او تجربې کوچنۍ ویالې سره یو ځای رابهیدلې او له یو بل سره به ګډیدلې ، له دغه ګډ والي او امتزاج نه یو داسې لومړۍ درجه مرکب جوړ شو چې سره له دې چې عمر یې نسبتا کم و خو د خپل وخت د ټولو انساني صلاحیتونو او انساني فکر او ذهن علمي خزانې یې په خپله لمن کې رانغښتې وې .

سره له دې چې په دغه وخت کې لارې ټولې اوږدې ، او اغزنې وې او مواصلاتي وسیلې هم ډیرې کمزورې وې ، خو هم د دغې لوړې اسلامي ټولنې د رفتار ګاډې دومره ګړندی و چې ، عربي ، فارسي ، شامي ، مصري ، مراکشي ، ترکي ، چیني ، هندي ، رومي ، یوناني ، اندونیشیایي او افریقایي سیمو ته په لږه موده کې ورسیده ، لنډه دا چې د هر نسل او سیمو ممتازې څیرې د اسلامي ټولنې په پراخه انګړ کې راټولې وې .

د ټولو خصوصيات او ځانګړتياوې سره شريکې وې ، له يو بل سره بې د مرستې ، همدردۍ ، توافق او هم اهنګۍ د احساس په لرلو د اسلامي ټولنې او اسلامي تهذيب د ودانۍ په ودانولو کې برخه واخيسته .

دغه اريانوونکې تهذيب چې د تاريخ په آرشيف کې بې سارې نشته د يوې ورځې لپاره هم ( عربي تهذيب ) نه و ، بلکه هر وخت خالص " اسلامي تهذيب " و .

همدا راز هيڅکله هم دغه تهذيب يو ( قومي تهذيب ) ندی ګڼل شوی ، بلکه تل د يوه ( نظرياتي تهذيب ) په توګه پيژندل شويدی د هر قوم او نسل خلک د دغه تهذيب په وياړونو کې په برابره توګه شريک وو ، د مينې او اخلاص په سپيڅلو مزو سره تړل شوي وو ، په هغوی ټولو کې د همدې يوه احساس ځپې په غورځنګ وې چې ټول د يوې لارې لاروې دي .

له همدې امله هغوی د دغه تهذيب پرمختګ کې خپل هرڅه ځار کړل ، خپل ممتاز نسلي خصوصيات او قومي افتخارات هر څه يې د همدې تهذيب ښنو ته خاورې کړل ، د خپلې پوهې او تجربې ځواک يې د همدې يوه چمن د ښکلا لپاره وقف کړ .

دا د دې لپاره چې دوی په داسې رسۍ سره تړل شوي وو ، چې يو سر يې د الله جل جلاله د قدرت په لاس کې و ، په هغه کې چې د دوی " انسانيت " بې له کومو اړو او ځنډ نه پرمختګ کاوه ، دا هغه ښکاره ښيګړې وې چې په ټول انساني تاريخ کې د يوې انساني ټولنې په برخه شوې هم ندي .

## ايا پخوانيو ټولنو هم د " انسانيت " د پرمختګ لپاره هڅه کړې وه ؟

په بشري تاريخ کې تر ټولو ممتازه ټولنه د روم امپراطوري ګڼل کيږي ، پـه دغـه ټولنه کې د بې شميره مختلفو نسلونو او ګڼو ژبو ويونکې او مختلفو رنګونو وګړې ( افراد ) راټول شـوي وو ، خو د دوی اتحاد ، يو والي او ټولنه د " انساني اړيکو " پر بنسټ نه وه ولاړه ، نه له دې نــه کوم بل لوړ معيار " ګروهه ، عقيده " ، د دوی ترمينځ موجود و، چې په هغې سره راټول شـوي واي .

دغه ټولنه په پاټکيزو " طبقاتي " اصولو ولاړه وه ، يـوی خواته " اشـراف " وو ، او بلی خوا تـه " مريان " ، ټولـه امپراطـوری پـه همدغه دوه پاټکو ( طبقو ) ويشل شوی وه ، سربيره پردی د نسلی امتيازاتو بازار هم ښه تود و ، چې د هغی له مخی رومی نسل تر ټولو لـوړ او بادار نسل و او نـور ټول نسلونه يې خپل مريان ګڼل ، نو له همدی امله د انسانی معيارونو په لحاظ دغه ټولنه هغو پوړيو ته نه وه رسيدلی ، چې د اسلامي ټولنی په برخه شوی وو ، په نتيجه کې دغی ټولنی له هغومره برم پرتم او عظمت سره سره بيا هم هغه چوپړ چې اسلامي ټولنی بشريت ته وکړ ونکړای شو .

## ايا معاصرې ټولنې انسانيت ته خدمت کولای شی ؟

په اوسنی عصر کې هم ډيری پرمختللی ټولنی مينځ ته راغلی دی ، د ساری په توګه د انګليس امپراطوری ، چې له رومی ټولنی سره دومره توپير نلری ، ځکه دا ټولنه هم په نړيواله کچه د يوی لوټماری ډلی لخوا اداره کيدله ، د دغی امپراطوری بنسټ هم د انګريزانو د برتری او نوو اباد شوو سيمو په زبيښنه ( استثمار ) او وينو څښلو ولاړ دی چې پر تخت يې د برتانيا د امپراطوری د يو ناخي .

د نورو اروپايي سلطنتونو هم همدا حال دی ، د اسپانيا او پرتګال پادشاهيو او د فرانس د امپراطوری ټولو هم دا يو حال دی ، ټولی د ظالمانه نظامونو مخکښی او د خوارانو په وينو لړلی شهنشاهی وی ، کمونيزم هم د يوی نوی او عجيبی ټولنی د مانی جوړول غوښتل ، او د هغوی ديوالونو د نړولو ادعا يې کوله چې ، رنګ ، نسل ، قوم ، وطن او جغرافيې يې بريدونه ټاکلی وو .

خو د دغی ټولنی بنسټ هم د " انسان دوستی " پر اصولو نه و ولاړ ، بلکه د پاټکيز ويش " طبقاتی تقسيم " اساس يې د ټولنی بيخ بنا ګرځولی وه ، له دغه پلوه کمونيستی ټولنه د رومی ټولني هغی دويم مخ دی ، په رومی ټولنه کې د شرفاوو ډلی ته امتياز ورکول کيده او په کمونيستی ټولنه کې يې د پرولتاريا " کارګرانو " طبقی ته تش په نامه امتيازی حيثيت ورکاوه .

خو په واقعیت کې چې د دغې جذبې تر شا کوم احساس حکم فرما دی ، هغه له نورو ټولو طبقو سره د دښمنی او میرڅی پر ستنو ولاړ دی ، په خپله د پرو لتاریا له پاټکې " طبقه " سره هم له یوه حیوان نه زیات سلوک نه کیږي .

د دغه ډول کم ظرفی ، تنګ نظری ، له کینی او رخی ډکې ټولنی په بڼ کې به نو له ترخې میوی نه پرته بله کومه میوه شنه شي ؟ چې یوازی د انسان ډیر وادنی او حیوانی جذباتو ته وده ورکړی او د هغی پر بنسټ د ټولنی د ودانولو هڅه پیل کړی ، په انسان کې یوازی حیوانی او ټیټ اوصاف راپورته کړی او هغه په ښه توګه وروزی ، ان تردی پوری چې نور ټول انسانی صفات یې تر اثر لاندی کمزوری او بې ځواکه شي .

دا ځکه چې د داسی ټولنو په نظر کې د انسان بنیادی غوښتنی هغه دی چې د حیواناتو بنیادی غوښتنی هم دی ، لکه کور ، ډوډی ، کالی او جنسی تمایلات چې د دغې فلسفی پر بنسټ باید ټول بشری تاریخ د خوراک او څښاک پیدا کولو په هڅه کې سرګردانه او لالهانده واوسی ، د خیټی مریان دی وی ، او نور انسانی ارزښتونه دی هیر کړی .

## اسلام د دغه میدان یوازینی اتل دی

یوازی اسلام د ژوند هغه الهی نظام دی چې د انسان د ډیرو لوړو خصوصیاتو او ځانګړتیاوو ، دودی او روزنی لپاره هڅه کوی او د انسانی ټولنی په ودانولو کې له هغه نه ګټه اخلی ، اسلام تر ننه پوری د دغه میدان یوازینی اتل دی ، هغه خلک چې له دغه نظام نه سرغړونه کوی او د کوم بل نظام د مینځته راتګ لپاره هلی ځلی کوی ، هغه نظام که د هیواد پالنی " وطن پرستی " پر بنسټ ولاړ وی او که د قوم پالنی پر بنیاد ، نسل ، رنګ او ژبی ته ارزښت ورکوی که د طبقاتی غورځو پرځو مخکښان وی او که د داسی نورو فاسدو او خوسا نظریو پر بنسټ ولاړ وی ، ټول بې له شکه د بشریت دښمنان دی .

هغوی په حقیقت کې نه غواړی چې انسان په نړۍ کې خپلو لوړو خصوصیاتو ته تبارز ورکړی چې الله جل جلاله د هغوی په فطرت کې

نغښتې دي او نه يې دا خوښېږي چې انساني ټولنه د ټولو انساني نسلونو له هر اړخيزو تجربو او پوهې نه ګټه واخلي او د دې لپاره کوم ګډ او مناسب نظام مينځ ته راولي ، د داسې خلکو په برخه کې الله جل جلاله فرمايلي دي :

قُـــلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْأَخْسَرِينَ أَعْمَالًا() الَّذِينَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَهُمْ يَحْسَـبُونَ أَنَّهُـــمْ يُحْسِنُونَ صُنْعًا() أُولَئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَلِقَائِهِ فَحَبِطَــتْ أَعْمَالُهُمْ فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا() ذَلِكَ جَزَاؤُهُمْ جَهَنَّمُ بِمَا كَفَرُوا وَاتَّخَذُوا آيَاتِي وَرُسُلِي هُزُوًا [کهف : ۱۰۳ - ۱۰۶]

( اې محمده ! هغوی ته ووايه ، ايا تاسو ته خبر درکړو په هغو خلکو چې د عمل له مخې زيانمند ترين د خلکو دي ، هغه چې د دنيا په ژوند کې يې ټولې هلې ځلې ضايع شويدي ، خو دوی داسې تصور کوی چې ښه عمل کوی او په سمه لار روان دي ، دوی هغه خلک دي چې د خپل رب او پالونکې د ايتونو له منلو نه يې انکار کړيدی او د هغه حضور ته يې په وړاندې کيدو يقين او باور ندی کړی ، نو د دې له امله د هغوی ټول اعمال ضايع شول ، نو د قيامت په ورځ به مونږ هغوی ته هيڅ ارزښت ( قدر ) ورنکړو ، د دوی جزا جهنم دی ، د هغه کفر په بدله کې چې کړی يې دی او د هغه تمسخر او استهزا په بدله کې چې زما د آيتونو او پيغمبرانو سره يې کړيدی ) .

# څلورم فصل

## د الله جل جلاله په لار کې جهاد

### د جهاد پړاوونه

امام ابن قیم رحمه الله علیه په زاد المعاد نومی اثر کې یو باب لیکلی دی چې سر لیک یې دی : له منافقینو ( دوه مخو ) سره د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم روش او کړنلاره له بعثت نه بیا تر هغه وخته چې د خپل الله جل جلاله حضور ته ورغی څه ډول وه ؟ په دغه باب کې نوموړی امام په حقیقت کې د اسلامي جهاد کړنلاره او اصول بیان کړیدی .

هغه لیکي چې ، د وحی لومړی کلمه چې پر رسول اکرم صلی الله علیه وسلم نازل شوه ، هغه دا وه " اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ..... " ووایه د خپل رب په نامه چې پیدا یې کړل .... " دا د هغه حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د نبوت پیل و ، الله جل جلاله هغه ته فرمایلي وو چې دغه وحی په زړه کې وساتي ، نورو ته یې لا د هغې د رسولو او تبلیغ حکم نه و ورکړی .

بیا الله جل جلاله دا آیت نازل کړ يَاأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ()قُمْ فَأَنذِرْ ( ای په جامه کې نغښتیه پاڅه ! او خلک وویروه ! ) ، په دی توګه د " اقرا " په وحی الله جل جلاله هغه مبارک ته نبوت ور وباښه او د " يَاأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ " په ارشاد یې هغه ته د رسالت منصب ورکړ ، بیا یې هغه ته حکم وکړ چې خپل نژدی خپل او خپلوان له الله جل جلاله نه وویروه او له هغې وروسته عرب ملت د هغوی له ناروا ، اعمالو نه وویروه ، بیا هغه ټول عرب چې ستا شا وخواته په لرې سیمو کې پراته دی او په پای کې ټول نړیوال وویروه .

له همدی امله حضرت محمد صلی الله علیه وسلم تر دیارلس کلونو پورې په دعوت او تبلیغ سره له الله جل جلاله نه خلک ویرول او د خپلو ناسمو اعمالو له پای نه یې خبرول ، په دغه اوږده موده کې د حق لور ته دعوت بې له جګړې او جزیې اخیستو نه روان و ، هغه ته به همدا حکم کیده چې له صبر او زغم نه کار واخلي ، عفو او بښنه خپل شعار وګرځوي .

وروسته بیا د هجرت ( لیږد ) حکم ورته وشو ، د جګړې اجازه هم ورته وشوه ، بیا ورته دا حکم وشو هغه څوک چې له تاسو سره جګړه کوي له هغو سره جګړه وکړئ او له هغو سره چې تاسو ته څه نه وایې او له تاسو سره جګړې ته نه راوځي څه مه وایې .

له دې نه وروسته بیا دا حکم وشو چې له مشرکینو سره تر هغه وخت پورې جنګ وکړئ چې دین ټول د یوه الله جل جلاله قانون وګرځي ، د جهاد د حکم له راتلو نه وروسته درې ډوله کفار موجود وو :

لومړي هغه ډله چې سوله یې خوښوله .

دویمه هغه ډلـه چې جګړه یې کولـه .

دریم اهل ذمه وو له هغو کفارو سره چې حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم د سولې د تړون لاسلیک کړی وُ ، د هغوی په هکله حکم راغی چې له هغوی سره خپله ژمنه ( تعهد ) پوره کړې ، ترڅو چې هغوی په خپله دغه تړون ته په درنه سترګې ګوري له هغوی سره خپلې ژمنې سر ته ورسوئ او که له هغوی نه د خیانت اندیښنه لرئ ، نو خپل تړون ورسره مات کړئ .

خو تر هغې پورې د هغوی پر ضد وسله پورته نه کړئ چې څو پورې مو خبر کړي نه وي ، دا حکم هم نازل شو چې له عهد ماتوونکو سره جګړه وکړئ ، کله چې د برات آیت نازل شو نو په هغه کې درې ډوله احکام بیان شوي وو ، د اهل کتابو په هکله داسې حکم راغلی و : " هغه کسان چې له الله جل جلاله او رسول الله صلی الله علیه وسلم سره دښمني کوي له هغوی سره باید تر هغه وخته جګړه وکړئ چې یا جزیه ومني او یا اسلام " .

د کفارو او منافقینو دوه مخو په هکله دا وویل شوه چې : د هغوی پر ضد باید سخت جهاد وکړئ او سخته سزا ورکړئ ، لکه څرنګه چې هغه مبارک صلی الله علیه وسلم بیا له هغوی سره په تورو او نیزو جهاد وکړ او له منافقینو سره یې په دلیل او برهان جهاد وکړ ، په دغه سوره کې دا هم ویل شوي وو چې له کفارو سره خپلې ټولې معاهدې ماتې کړئ او خبر یې کړئ .

په دې برخه کې معاهده کوونکې درې ډوله وو ، يو هغه ډول چې له هغوی سره د جګړې حکم شوی و ، دا هغه ډله وه چې په خپله يې عهد او تړون مات کړی و ، او په خپل عهد يې وفا نه وه کړې ، حضرت پيغمبر صلی الله عليه وسلم له هغوی سره جګړه وکړه او بری يې په برخه شو .

دويمه ډله هغه خلک وو چې تر يوه ټاکلي وخت پورې هغه ورسره عهد کړی و او هغوی له خپل عهد او تړون نه سرغړونه ، نه وه کړې ، نه يې د مسلمانانو پر خلاف له چا سره مرسته کړې وه ، د دوی په برخه کې الله جل جلاله وفرمايل چې له دوی سره دې د معاهدې موده پوره کړای شي .

دريمه ډله هغه خلک وو چې له هغوی سره مسلمانانو هيڅ ډول عهد او تړون نه درلوده او نه هغوی له مسلمانانو سره جګړه او دښمني کوله ، يا داسې خلک هم وو چې تر ټاکلي وخت پورې ورسره مسلمانانو پر يو بل د نه بلوسې ( تعرض ) معاهده او ژمنه کړې وه .

د داسې خلکو په هکله دا حکم راغی چې دوی ته دې څلور مياشتې مهلت ورکړای شي چې دا مهلت پای ته ورسي او اسلام ته غاړه کې نږدي ، نو بيا دې ورسره جهاد وشي چې بيا د الله جل جلاله د همدې فـرمان له مخې له عهد ماتوونکو ســره جهاد وشو او ووژل شول ، له هغه چا سره چې کوم عهد او تړون نه و شــوي او يا د نا معلومې مودې لپاره و، هغوی تــه څلور مياشتې مهلت ورکړ شو، هغه چا چې له مسلمانانو ســره پــه خپلو وعــدو وفا کړې وه ، له هغوی ســره د معاهــدې د وخت د پوره کولو حکم وشو .

په دې توګه ټول خلک د اسلام پلويان شول او د مهلت د مودې تر پای ته رسيدو پورې په کفر کې پاتې نشول ، په اهل ذمه وو باندې جـزيه ومنل شوه ، لنډه دا چې د برات سوره د نازليدو نه وروسته د هغــه د چلند له کفارو ( محاربين ، اهل عهد او اهل ذمه وو ) سره درې ډوله و .

عهد کوونکې په پای کې په اسلام مشرف شول يوازې دوه ډوله خلک پاتې شول ، محاربين ( جګړه کوونکې ) او اهل ذمه ، جګړه کوونکې به تل

له مسلمانانو نه په ویره کې وو ، په دې توګه د ځمکې پر مخ ټول انسانان په درې بڼو د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم مخې ته ودریدل .

لومړی هغه کسان چې پر نبي صلی الله علیه وسلم یې ایمان راوړ او د مرګ تر وروستی سلګۍ یې ورسره د ژوند سړې تودې وګاللې ، دویمه ډله سوله غوښتوونکې خلک و چې اسلام امان ورکړ ، دریمه ډله خایفین یا ویریدونکې چې له اسلام نه په ویره کې وو او د جګړې په حالت کې پاتې شول ، د منافقینو او دوه مخو په برخه کې الله جل جلاله ورته وفرمایل چې د هغوی ظاهري اعمال او بڼه قبوله کړې ، او د باطني حالاتو په هکله یې قضاوت الله تعالي ته وسپاري .

د پوهې دلیل او منطق په وسله ورسره جهاد وکړې ، د حق فرمان و چې ، له هغوی نه مخ وګرځوی او له میرځې نه ډک چلند ورسره وکړې ، په پوره فصاحت او بلاغت ورته تبلیغ وکړې ، د دې ترڅنګ حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د هغوی جنازې ته له تلو نه او یا د هغوی د قبرونو ترڅنګ حاضریدو نه هم ایسار کړ ، په دې یې هم خبر کړ چې که حتی دې هم ورته ښښنه وغواړې ، نو الله جل جلاله به هغوی ونه ښښي .

دا و له دوه مخو او منافقینو سره د حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم چلند ، په دغه مضمون کې د اسلام جهاد ټول پړاوونه په ډیر غور ، رالنډ شویدي ، په دغه لنډیز کې د حق دین د ژوندي او متحرک نظام دوربیني او دور اندیشي او ځیني نورو غوره او امتیازي صفاتو ډیوه له ورایه ځلیږي ، چې د جهالت د تورتم په لاره کې د مؤمنانو لپاره روڼ مشال دي .

دغه مضامین د دې وړ دي چې ښه په غور ولوستل شي چې د هغه دین په نصب العین او کړنلاره چې د نړۍ د رهبري او قیادت ادعا لري ښه پوه شي ، ځو مونږ په دې خبره صادقانه اعتراف کوو چې د اسلام د جهادي کړنلارې هر اړخیز څرګندونه په دې وخت کې زمونږ له وسې وتلې خبره ده ، مونږ دلته په اجمالي صورت د جهاد په مختلفو اړخونو د خپل توان تر حده رڼا اچوو .

## لومړنی ځانګړتیا

د الله جل جلاله د دین لومړنی غوره امتیازی صفت دا دی چې ټول قوانین یی د ژوند په ډګر کې د عمل وړ او حقیقت دی ، جهاد یو انسان جوړوونکې تحریک دی او په تحریک کې موجود انسانان د ژوند دغه انسانی اړخ ته رابولی ، په دغه لار کې له هغو وسایلو نه کار اخلی چې د انسان له عملی ژوند سره اړخ لګوی ، ځکه چې د دغه تحریک مقابله له یوه داسی جاهلیت سره ده چې له یوی خوا یی د خلکو په افکارو او نظریاتو د خپسی په څیر منګولی لګولی دی او له بلی خوا یی د هغه پر بنسټ د ژوند د عملی نظام کوډله جوړه کړیده .

همدا رنګه په دریم پړاو کې د دغه ډول نظام د ټینګښت او پایښت لپاره د هغه تر شا سیاسی او مادی اقتدار موجود دی ، له همدی امله اسلامي نهضت ته پکار دی چې د جاهلیت د مقابلی او ماتی لپاره له هغوی سره له برابرو وسایلو نه کار واخلی .

دغه نهضت د افکارو او عقایدو د سمون لپاره له تبلیغ او تلقین نـه کار اخلی او د جاهلی نظام د مادی او سیاسی ځواک د له مینځه وړلو لپاره له مادی قوتونو او جهاد نه کار اخلی ، ځکه چې جاهلی نظام د عامـو خلکو د افکارو او عقایدو د اصلاح او سمون پـه لار کې خنډونه پیښوی او پـه خپلو جاهلی بی لاری کوونکو تبلیغاتی وسایلو سره خلک خپل اطاعت تـه اړ باسی .

د دی پر ځای چې خلک د الله جل جلاله بندګی ته راوبولی د فرعون صفته انسانانو د بندګی او مرئیتوب مندری ئې په غوړونو کې وراچوی ، اسلامي نهضت له جاهلی نظام او قدرت سره په زور ازمایلو او جګړه کې یوازی په تبلیغ او تلقین بسنه نکوی او نه د عامو انسانانو د افکارو او عقایدو د بدلون لپاره له زور او جبر نه کار اخلی ، دغه دواړه اصول ، د دغه دین د کړنلاری د نورو اصولو ترڅنګ یو برابر ارزښت لری او په یوه ډول باید پری عمل وشئ .

د دغـه ديـن د قـيام او پـاڅون لومړی موخـه همدا ده چې يـو انسـان د بـل انسان له مرئيتوب نه خلاص کړي او د يوازينی الله جل جلاله بندګی ته ټول انسانان راوبولي .

## دويمه ځانګړتيا

د جهاد دويمه غوره ځانګړتيا دا ده چې دا يو عملي تحريک دی چې په هر پړاو کې له بل نه پرمختګ کوي او په هر پړاو کې له خپلو عملي اړتياوو او غوښتنو سره سمې لارې او مناسب وسايل غوره کوي ، هره موجوده مرحله د راتلونکې مرحلې د راتګ لپاره لار هواروي ، په حقيقت کې دغه دين د عملي ژوند له تجريدي نظرياتو سره سر وکار نه لري او نه د ژوند مختلف پړاوونه د جامدو او نه بدليدونکو وسايلو پر اساس پر مخ بيايي ، هغه خلک چې د دين د جهاد په قوانينو بحث کوي او قرآنی آيتونه نه د استدلال په توګه وړاندې کوي ، له يوې خوا د دين له پورتنی غوره صفت نه سترګې پټوي او له بلې خوا د هغو پړاوونو له نظرې حقيقت نه خبر نه دي ، چې د جهاد نظام له هغو نه تير شوی دي .

نـه يې دې خبرې ته پام دی چې د قرآن د مختلفو آيتونو د جهاد له هر پړاو سره څه تعلق دی ، دغـه ډول خلک چې د اسلامي جهـاد پـه برخه کې څه وايـې نـو پـه ډيره ساده ګی او علمـی شـډلتيا تری نـه خبره ګډوډه شـی ، د اسلامي جهـاد نظام په بې لارې کوونکې توګه بيانوي او له قرآنی ايتونو په زوره د خپـل مطلب د اثبات لپاره کلي اصول راباسي ، چې دغه ډول اصول په هغو آيتونو کې قطعا نه ځايږي .

د هغـوی اساسـی غلطی په دې کې ده چې دوی د قرآن د هر سوره په هکله داسـی فکر کوي چې ګنی په دې برخه کې همدا وروستنی دی او په ده کې د ديـن وروسـتنی او کلی حکم هم بيان شويدی ، دغه ډول مفکرينو په حقيقت کـې د اوسـنيو خواشـينوونکو حـالاتو د فشـار او نـاخوالو پـه مقـابل کـې پـه روحـی او عقلـی ډول وسـله غورځولـی ده ، پـه هغـی نـاروغی اخـته دی چې اوسنی اسلامي نسل هم پرې اخته دي .

لـه دوی سره د عقیدي او عمل له مخې د اسلام له مارک او لیبل نه پرته نـور څه نـه دي پاتې ، دا د همدغه ماتې خوړلې ذهن محصول او اثر دی چې دغـه حضرات فـرمایي " اسلام یوازې د دفاعي جنګ پلوي کوي " او غم خو دا دی چې دوی پدې ورانوونکې خبره او بې لارې کوونکې استدلال پدې ګومان دي چې مونږ په دین زښت زیات احسان کړیدی .

حـال دا دی چـې د دغـه غلط تـاویل پـه نتـیجه کـې هغـوی دیـن د خـپلې امتـیازي او غوره کړن لارې د کار له اصولو نه لاس اخښتو ته رابللی دی ، پـه حقیقت کـې دا خبره دا معنی لري چې دین باید خپل هغه نصب العین او کړنلاره چې پـه نړۍ کـې د ټولو طاغوتي د قصرونو د نړولو او د فرعونانو ، نمرودانو او قارغونیانو ورو ورو په ماتولو پسې راغلی دی پرېږدي .

اسلام ددې لـپاره راغلی چې بشریت د الله جل جلاله بندګۍ ته راوبولي ، د دې لـپاره راغلی چې انسان د انسانانو مرئیتوب نه خلاص کړي او یوازې د خـپل رب پـه درګـاه کـې سر کیږدي ، خو دا هم باید په یاد ولرو چې اسلام خـپله دغـه کړن لاره د توري په زور پر خلکو نه مني ، بلکه د سیاسي قدرت تـر اخیسـتلو وروسـتـه هغـوی خلکـو تـه د آزادي عقـیدې د درلودلـو فضـا برابروي ، اسلام د نړۍ پر مخ ټول د اقتدار په څوکې ناست سیاسي نظامونه ړنګوي او یا هغوی خپل اطاعت ته اړ کوي او جزیه ترې اخلي .

پـدې تـوګـه هغـوی هغـه ټولـی لارې چـې د اسـلامي عقـیدې پـه مـنلو کـې خنډونه پیښوي اواروي ، تردې وروسته بیا خلکو ته مکمله آزادي ورښي چې هغوی دغه عقیده مني او که نه .

## دریمه ځانګړتیا

دریمه امتیازي او غوره ځانګړتیا دا ده چې د دین دغه سخته او اغزنه لار او له هر پړاو سره د نوو وسایلو او ذرایعو نه کار اخیستل دین له خپلو بنیادي اصولو او مقاصدو نه نشي بې لارې کولی ، دین له هماغه لومړۍ ورځې نه که د رسول الله صلی الله علیه وسلم نژدې خپلوان یې مخاطب وو او که قریشو ته یې خطاب کاوه ، یا یې له ټولو عربو سره خبرې کولې او که

د ټولی نړۍ له اوسیدونکو سره ګړیده ، له ټولو سره یی په همدغه یوه اساس او بنیاد خبره کوله .

هغه له ټولو نه همدا یوه غوښتنه کوله چې د انسانانو له بندګی او مریتوب نه ځانونه خلاص کړی او د یوه الله جل جلاله بندګی ته غاړه کیږدی ، د دغه اصولو په برخه کې دین هیڅ ډول سازش او سودا بازی نه کوی او نه له چا سره له هیڅ ډول نرمش نه کار اخلی .

وروسته بیا دین د خپل دغه یوازینی مقصد لپاره د یوی منظمی طرحه شوی نقشی پر اساس په کار پیل کوی ، دغه طرح شوی پلان څو ټاکلی پړاوونه لری او د هر پړاو بری ته د رسولو لپاره له غوره او نورو وسایلو نه کار اخیستل کیږی .

## څلورمه ځانګړتیا

څلورم غوره امتیازی صفت دا دی چې دین د اسلامي ټولنی او نورو ټولنو ترمینځ اړیکو ته یوه ټاکلی او قانونی بڼه ورکوی ، لکه څنګه چې د " زاد المعاد " له ذکر شوی لنډیز نه څرګندیږی ، پر کوم بنسټ چې دغه قانون ولاړ دی ، هغه دا دی چې اسلام (د الله جل جلاله فرمان او اطاعت ته غاړه کیښودل) داسی یو عالمګیر او هر اړخیز حقیقت دی چې منل یې پر بشریت لازم او واجب دی .

که چیری څوک دغه لار نه غوره کوی او عمل پری نکوی نو هغه ته پکار دی چې له اسلام سره د سولی او مصالحی لار غوره کړی او د کوم سیاسی نظام او یا مادی طاقت په بڼه د اسلامي دعوت په لاره کې مرکونډی ونه کړی ، د ټولنی هر وګړی آزاد پریږدی چې په خپله خوښه دغه لار غوره کړی او که نه یې غوره کوی هم څه ستونزی او کړاو ورته پیښ نه کړی .

د نورو لپاره په دغه لار کې خنډ نشی ، که څوک د اسلام په دغه لار کې خنډونه پیښوی نو دا د اسلام وظیفه ده چې له هغه سره تر هغه وخت پوری جګړی وکړی چې هغه یا له اسلام سره د وفادارۍ لوړه وکړی او یا د مرګ او نیستی ژوری کندی ته ورولویږی .

هغه د ماتي خوړلي او وېريدلي ذهن اديبان او عالمان چې " په اسلام کې د جهاد په حقيقت د قلم نيلي ځغلوي او هڅه کوي چې د دوی په اصطلاح د اسلام له لمنې د جهاد داغ وتوړي ، دوه اصله سره ګډوي :

لومړی د دين دغه اصل چې په زور او جبر باندې د عقيدې منل نه خوښوي ، لکه څنګه چې د قرآنکريم له صريح حکم " لا اکراه فی الدين " نه څرګند دی .

دويم د دين دغه کړنلاره چې هغه ټول سياسي او مادي قوتونه د نېستى کندې ته ور غورځوي ، هغه عقيده چې د دين او انسان ترمينځ خنډ کيږي او انسان د انسان بندګی ته رابولي او د الله جل جلاله له عبادت نه یې ايساروي ، دغه دواړه اصول بالکل مختلف دي او له يو بل سره هيڅ اړيکې نه لري .

نه د دواړو د ګډولو او يو ځاى کولو څه ګټه شته ، خو بيا هم د ماتي خوړلي او غلامانه ذهنيت خاوندان دا هڅه کوي ، چې دغه مباحث سره ګډ کړي او غواړي چې په اسلام کې د جهاد مفهوم يوازې په دې خبره کې را خلاصه کړي ، چې په ننی اصطلاح ورته " دفاعی جګړه " وايي ، حال دا دی چې جهاد بالکل يو جلا او ځانګړی واقعيت دی ، د اوسنى پيړۍ له جګړو سره بالکل کومې اړيکې نه لري ، نه د جنګ د اسبابو او عواملو له پلوه او نه د ظاهري بڼې له مخې .

د جهاد اسباب او عوامل بايد په خپله د اسلام په مزاج کې ولټول شي او همدا رنګه په دنيا کې د هغه د کردار او روش له مخې وڅېړل شي ، د هغو لوړو اهدافو او اصولو په مينځ کې بايد ولټول شي چې الله جل جلاله د دغه دين لپاره ټاکلي دي او د هغوی د عملي کولو لپاره يې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم ته د رسالت د ستر منصب وياړ ور وباښه ، بيا ئې هغه ته خاتم النبيين او د هغه رسالت ته خاتم الرسالات لوړه درجه ورکړله .

حق دين په اصل کې د دغه نړيوال او جهاني اعلان نوم دی چې په نړۍ کې انسان د انسان په مرئيتوب نه او په خپله د نفس له مرئيتوب نه چې د

انسان د غلامی یوه بله بڼه ده آزادوی ، دغه اعلان په حقیقت کې د هغه لومړی اعلان طبیعی نتیجه ده چې وایې :

" د الوهیت مقام یوازی د یوه الله جل جلاله لپاره ورړ دی " ، د هغه د ربوبیت شان پر ټوله نړۍ محیط دی ، د دی خبری ښکاره او څرګند مطلب دا دی چې دین د انسان د حاکمیت په هره بڼه ، هر شکل هر نظام او هر پړاو کې همدا رنګه د ځمکې پر مخ د هر هغه هیئت او انقلاب مخالفت کوی چې په هغی کې حکمرانی د انسان په لاس کې وی ، یا په څرګندو الفاظو انسان د الوهیت مقام په یوه نه یوه پلمه د ځان لپاره غوره کړی وی .

د حکومت داسی نظام چې د معاملاتو وروستی رجوع پکې انسان نه وی او انسان د ټولو اختیاراتو وروستی منبع وی ، په حقیقت کې په دی صورت کې انسان ته د الوهیت درجه ورکوی له ځنی انسانانو د خپل ځان په څیر انسانانو ته " ارباب من دون الله " جوړیږی .

خو کله چې دا اعلان وشو چې ربوبیت او الوهیت یوازې د یوه الله جل جلاله لپاره خاص کړی شوی دی ، نو د دی خبری مفهوم دا دی چې د الله جل جلاله غصب شوی اقتدار او حاکمیت باید له غاصبینو نه واخیستل شی او بیرته دی الله جل جلاله ته ور وګرځول شي .

دغه غاصبین بایـــد له هغو تختونو نه راکوز کړای شي چې د خپلی ځان جوړ شوو شـــریعتونو په ذریعه یی د مظلوم بشریت په څټونو ایښی دی ، ځانته د هغوی د رب مقام ورکوی او هغوی خپل مریـــان ګڼی ، پـــه لنډو بـــه مطلب دا وی چې د الوهیت او ربوبیت د آواز پورته کولو موخه دا ده چې د ټولو انسانی شهنشاهیو لمخی ټول شی ، د نړۍ پر مخ یوازې د الله جل جلاله د بادشاهی د عدل فـــرش وغوړیږی یا د قـــرآن په خوله دغه اعلان وشي .

وَهُوَ الَّذِي فِي السَّمَاءِ إِلَهٌ وَفِي الْأَرْضِ إِلَهٌ [زخرف : ۸۴]

( هماغـه دی چې یوازی په اسمان کې هم الله جل جلاله دی او پر ځمکه هم الله جل جلاله دی ) .

إِنْ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ أَمَرَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ ذَلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ [یوسف : ۴۰]

( حکم یوازې د الله جل جلاله لپاره دی ، هغه فرمان ورکړی دی چې له هغه پرته د بل چا بندګي او عبادت مه کوئ ، همدغه حق دین دی )

قُلْ يَاأَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا اللَّهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَقُولُوا اشْهَدُوا بِأَنَّا مُسْلِمُونَ[آل عمران : ۶۴]

( ورته ووایه چې ای اهل کتابو د داسې یوې کلمې " حقیقت " په لور راشئ چې زمونږ او ستاسو ترمینځ برابره او یو شان ده ، هغه دا چې نه به له الله جل جلاله نه پرته د بل چا عبادت کوو او نه به له هغه سره بل څه شریکوو ، له مونږ او تاسو نه به ځینې نور خلک له حقیقي الله جل جلاله نه پرته بل څوک په خدایي نه غوره کوي ، که له دغې بلنې نه یې مخ وګرځاوه ، نو ورته ووایه چې په دې شاهد اوسئ چې مونږ د الله جل جلاله بندګۍ ته غاړه ایښې ده ) .

## په نړۍ کې الهي حکومت څنګه جوړیدای شي ؟

په نړۍ کې د الله جل جلاله حکومت یا بادشاهي جوړیدل دا معنی نلري چې یو څو " مقدس وګړي " یعني دیني لارښوونکې دې د حاکمیت پر مسند تکیه وکړي ، لکه څنګه چې د کلیسا د بادشاهۍ همدغه حال وو ، او نه دا خبره سمه ده چې د اله وو څو نمایندګان دې د حکومت د چارو واګې په لاس کې واخلي ، لکه څنګه چې په تیوکراسي یا د مقدس خداي حکومت " په نامه دود د چارو واګې به د یوې مخصوص کورنۍ لاس کې وو او د الله جل جلاله په نامه به یې هر څه کول .

د الله جل جلاله د بادشاهۍ او حکومت معنی دا ده چې د الله جل جلاله شریعت پر خلکو حکومت وکړي او د ژوند په ټولو چارو کې وروستۍ پریکړه پر همدې اساس وشي ، خو سړی باید دا خبره په نظر کې ونیسي چې په نړۍ کې د الله جل جلاله د بادشاهۍ ټینګول او پاڅون د انسان د بادشاهۍ له خاتمې سره برابره ده ، د غاصبینو له لاس نه د قدرت واګې اخیستل او د الله جل جلاله شریعت ته ورسپارل ، الهي شریعت جاري کول

او د ټولو انساني قوانینو د تنسیخ اعلان - دا ټول ستر او بنیادي کارونه په مجرد دعوت او وچ تبلیغ سر ته نه رسیږي .

هغه خلک چې د الله جل جلاله د مخلوق په څټونو سپاره دي ، د الله جل جلاله په قدرت یې غاصبانه قبضه کړیده او د خپل اقتدار ، زغ یې د نورو پر څټ ایښی دی .

هغوی په داسې تبلیغ او غوښتنه کله د خپل اقتدار له تخت نه په داسې اسانۍ راکوزیږي ، که داسې وای نو د الله جل جلاله پېغمبرانو ته به په ډېره کې د حق دین خپرول یو اسانه او بسیط کار وای ، خو د انبیاؤ د ژوند له تاریخ او د حق دین په مقابل کې له را پیدا شوو خنډونو نه څرګندیږي چې خبره برعکس ده .

دومره د ستر اعلان چې د الوهیت او ربوبیت صفات یوازې د الله جل جلاله لپاره مخصوص کړای شوي دي او بیا د دې اعلان مهمه نتیجه چې انسان به له الله جل جلاله نه پرته د هر قسم اقتدار او حاکمیت نه آزاد وي ، یوازې یو نظریاتي ، فلسفیانه او منفي ډول اعلان نه و بلکه یو مثبت ، متحرک او انقلابي اعلان و چې کړنلاره یې د داسې یوه نظام راوستل و چې د اسلامي شریعت پر اساس پر خلکو حکومت وکړي .

عملاً یې بشریت د نورو همنوعو له مریتوبه خلاص کړ او د یوه الله جل جلاله د عبادت او بندګۍ ویاړلي ور وباښه ، ښکاره خبره ده چې د دومره ستر کار د سر ته رسولو لپاره دا ضروري وه چې دغه اعلان یوازې د مجرد تبلیغ او دعوت په ساحه کې محدود پاتې نشي ، بلکه د دې سره دا هم لازم او ضروري وه چې دغه اعلان د یوه منظم تنظیم بنه غوره کړي چې د عملي ژوند له کړکیچونو سره په برابره توګه د نورو وسایلو او ذرایعو پر اساس مقابله وکړي .

انسان د تاریخ په هر پړاو کې په تیره اوسني او ښايي په راتلونکې زمانه کې هم ، د حق دین په مقابل کې په ډول ډول چلونو او فریبونو لاس پورې کړي دي او دا هڅه یې کړیده چې د دغه دین په ښیګړو توري خاورې راواړوي او د خلکو له نظره یې پټ کړي .

دا ځکه چې دا دین د بشریت قاطع اکثریت څه چې ټول بشریت د بل همنوع له غلامی نه خلاصوی ، نو ځکه ځینی خود غرضه او قدرت مینو انسانانو تل د دین د پرمختګ په لار کې په فکری او مادی لحاظ خنډونه پیښ کړیدی ، سیاسی ، اجتماعی او اقتصادي د یوالو نه یی وهلی دی ، د نژادی او پاټکیزو اختلافاتو او نابرابر یو چیغی او سوری یی وهلی دی .

د دی ترڅنګ په خپله د انسان منحرف عقاید او باطل تصورات هم لګیا دی ، په خپل وار سره خپل کار کوی ، او د دغو دواړو له اتحاد نه یو بی نهایت کړکیچنه فضا را پیدا شویده .

که تبلیغ د خلکو عقاید ، تصورات او افکار اصلاح کوی نو د " جهاد تحریک " له دغی لاری نوری مرکونډی لزی کوی او لاره هواروی ، چې په سر کې یې تر ټولو د مخه سیاسی قدرت دی چې د ډیرو کړکیچنو فکری ، نژادی ، پاټکیزو توپیرونو ، ټولنیزو او اقتصادي ( وټه ائیزو ) ستنو په مرسته ولاړ دی .

دغه دواړه تکړه مجاهدین یعنی " تبلیغ او جهاد ت " چې سره یو ځای شي ، نو له څلور خواو نه په دښمن اثر غورځولی شی او له هغو ټولو عواملو او سببونو سره د خپل نوی نظام په مینځ ته راوستو کې مرسته کولی شی ، چې د یوه نظام د مینځ ته راتګ لپاره ضروری دی ، د جاهلي نظام هغه ټول عوامل او اسباب په متقابله برابرو عواملو له مینځه وړلای شی ، په دغه ځمکه کې د انسان د حقیقی آزادی نه بلکه په ټوله نړۍ کې د بشریت د حقیقی آزادی او دغه ستر رسالت د سر ته رسولو لپاره د دغو دواړو اصولو یعنی تبلیغ او د جهاد اوږه په اوږه کار کول یوه ډیره په زړه پوری او مهمه مسئله ده چې څو څو ځلی باید د هغه چا تر غوږ تیره شی ، چې د دغه ډول ستر کار د سر ته رسیدو لپاره یی لیځی رانغښتی دی .

## د بندګی اصلی حقیقت

د انسان د آزادی اعلان د اسلام په واسطه یوازی د عربو لپاره نه و او نه د دی دین پیغام یوازی په عربی سیمو پوری محدود و ، ځکه چې دغه رسالت او پیغام د ټولی نـړۍ لپاره و ، د دغه دین مـوضوع ( انسان ) دی

- ټول انسانان او د عمل ډګر یې د ځمکې پراخـه غولی [د ټولی ځمکې مخ ] دی .

الله جل جلاله چې له ټولو بشری نیمګړتیاوو او کمزوریو نه پاک دی ، یوازی د عربو پروردګار او پالونکې نه دی ، ان تردی چې په هغو خلکو پوری هم اختصاص نلری چې د اسلام دین یی منلی دی ، الله تعالی رب العالمین دی .

د ټولـو نړۍ والـو رب او پالونکې دغه دین د ټولی نړۍ قدرت او ځواک د هغـی د واقعـی رب لاسـونو تـه ورسـتنوی ، هغـوی د غـیر الله د بـندګی او مرئیتوب له ناولو منګولو نه خلاصوی .

د اسلام له نظره همدغه بندګی او عبودیت دی چې انسان د داسی قوانینو کړی په غاړه کړی چې په خپله د همده په څیر انسانانو جوړ کړیدی ، او دا هماغه بندګی او " عبادت " دی چې دغه دین د هغی په برخه یی پریکړه کړیده چې دغه ډول عمل یوازی د الله جل جلاله لپاره ښایی .

هغه څوک چې غیر له الله جل جلاله نه بل چاته د دغه ډول قوانینو پر اساس په دا شان عبادت کوی ، که هغو د دینداری زرګونه دعوی هم وکړی ، هغه له دین نه وتلی دی ، رسول الله صلی الله علیه وسلم په ښکاره او څرګندو ټکو کې ویلی دی چې د وخت د حاکم نظام د قانون او حکومت " اطاعت " د عبادت دویم نوم دی .

د عبات په هغه مفهوم چې کله نصاری او یهودو د یوه الله جل جلاله له " عبادت " نه مخ وګرځاوه نو هغوی په مشرکینو کې وشمیرل شول [ ترمذی ] له عدی بن حاتم رضی الله نه روایت کړیدی کله چې ده " عدی بن حاتم " ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم دعوت او بلنه ور ورسیده ، نو هغه شام ته وتښتیده ، ځکه چې هغه د جاهلیت په وخت کې د نصاری وو په دین ګروهیدلی ( معتقد ) و .

خو خور او څو نـور ملګری یې د مسلمانانو پـه لاس قیدیان شـول ، د الله جل جلاله استازی د هغه په خور احسان وکړ ، هغه یی آزاده کړه او څه بخشش یی هم ورکړ ، هغه سملاسه خپل ورور ته ورغله او هغه یی د

اسلام منلو ته وهڅاوه ( ترغيب کړ ) او دا مشوره يې ورکړه چې د حضرت رسول کريم صلی الله عليه وسلم دربار ته ورشي ، " عدي " د خپلې خور خبره ومنله او له هغه دربار ته يې د پلي "ورتگ ملا وتړله .

کله چې هغه ( عدي بن حاتم ) د رسول الله صلی الله عليه وسلم په حضور کې ودريده نو هغه صلی الله عليه وسلم هغه وخت دغه ايت لوسته : اتخذو احبارهم ورهبانهم اربابا من دون الله ( هغوی د الله جل جلاله پر ځای د خپلو علماوو او راهبانو عبادت کاوه ) .

عدي وويل : اي د الله رسوله ! در نه ځار شم ، مونږ د راهبانو عبادت نه کاوه او نه مو د هغو بندگی کوله .

د الله رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل : هو ! تاسو د هغوی بندگی او عبادت کاوه ، ځکه هغوی حلال په تاسو حرام او حرام درباندی حلال کړل او تاسو يې هم پيروی کوله ، نو له همدی امله تاسو د هغوی عبادت او بندگی کوله ، ځکه د الله جل جلاله له حکم نه پرته د چا پيروی په حقيقت کې ستاسو بندگی او عبادت و چې ورته کاوه مو .

نو له دی امله د الله جل جلاله دغه راليږل شوی مفسر چې کوم تفسير له دغه آيت نه کړی دی هغه بالکل قطعي دی ، ځکه څوک له هغه صلی الله عليه وسلم نه پرته د الله جل جلاله د کلام په توجيه او تفسير ښه پوهيدای شي ؟ نو له دی امله د هغه صلی الله عليه وسلم ارشاد په دی هکله يوه غوڅه پريکړه ده چې د هر غير الهی حکومت له قانون او فتوی نه پيروی کول په حقيقت کې هماغه بندگی او عبادت دی او د دغه عمل له کولو نه وروسته عامل د اسلام له دايری نه په خپله وځی .

همدا رنگه له دغه نص نه دا هم څرگندیږی چې د غير الله له عبادت نه مراد دا دی چې ځيني انسانان د ځيني نورو لپاره د دغه مبارک آيت د حکم مصداق گرځی ... اربابا من دون الله ، د حق دين د خپل هغه فرمان او د آزادی په اعلان سره له الله جل جلاله نه پرته بل هر نوع پرستش الغاء کړيدی .

هغه څوک چې منکران دی دغه دین د هماغو د نابودولو لپاره راغلی دی ، او بیا بیا دا وایی چې د دغه دین اعلان دی چې د ځمکې پر مخ ټول انسانان د غیر الله له بندګی او مرئیتوب نه آزاد شی .

## اسلام د دعوت او تحریک پر دواړو اړخونو ولاړ دی

که د انسان علمی ژوند له پورتنی یاد شوی اعلان سره سمون ونه لری ، نو د دغه حالت د سمون لپاره اسلام ناچاره دی چې په یوه وخت د تبلیغ او جهاد په دواړو وسلو سره د عمل میدان ته ور ودانګی او هغو سیاسی قدرتونو ته کاری ضربې ورکړی چې انسانان د غیر الله بندګی ته اړ کوی ، د الله جل جلاله له شریعت نه پرته پر هغوی حکمرانی او باداری کوی .

د اسلام دعوت د خلکو تر غوږونو رسوی ، که دغه ډول عمل ونکړی نو نتیجه به داسی وی چې که دغه حالت کې څوک د اسلام دعوت او تبلیغ وهم منی نو بیا به هغه ته هغه آزادی نه وی چې له حاکم قدرت نه بی ویری او بی پروا اسلام قبول کړای شي .

د دی لپاره ضروری ده چې اسلام طاغوتی قدرتونه له خپلو مانیو سره یو ځای د نیستی کندی ته وغورځوی دا مهمه نه ده چې دغه طـاغوتی قدرتونـــه په کومه جامــه کې دی د نژادی توپیر ناری وهی او که د پاتکیزو ( طبقاتی ) تضادونو رپی ( بیرغ ) یی راپورته کړی دي .

له دی امله اسلام باید یو داسی ټولنیز ، اقتصادي او سیاسی نظام مینځ ته راولی چې د انسانانو د آزادی غوښتنی هڅو ته عملی بڼه ورکړی او د نړۍ پر مخ د هغوی د هیلو څرګندوونکې او مرستیال وی .

## د اسلام له نظره د انسان د آزادی مقصد

اسلام هیڅکله هم دا نه غواړی چې پر خلکو باندی د برچې په زور عقیده ور وتپی " تحمیل کړی "، خو دا خبره هم واضحه او څرګنده ده چې اسلام یوازی د یوی مجردی عقیدی نوم نه دی ، بلکه لکه څنګه مو چې مخکې وویل : اسلام د انسانانو د آزادی یو عمومی اعلان دی ، د نورو انسانانو له بندګی او مرئیتوب نه لومړنی موخه یی هم همدا ده چې د داسی نظامونو او

حکومتونو د اقتدار کمبله ټوله کړی چې د خپل اقتدار زغ یی د خپلو همنوعو په څټ اینبی دی ، او انسانان د نورو انسانانو غلامی ته اړ کوی .

کله چې اسلام د مظلومانو له څټ نه د انسانی حاکمیت او بندګی زغ لیری کړ ، نو بیا د دغو انسانو عقل او روح ته د اسلام د منور دعوت پیشنهاد کوی ، وروسته له هغی بیا هغوی آزاد پریږدی چې دغه الهی دعوت او ژوند جوړوونکې نظام منی او که نه ، خو د دی آزادی مطلب دا هم نه دی چې انسان د خپل نیمګړی فکر او هوا وهوس په غوښتنه چې هر څه یی زړه وغواړی وکړی او خپله فیصله وکړی چې یا د انسانانو مرئیتوب کې ژوند وکړی او یا نور انسانان خپل مریان کړی او یا خپلو کې یو ځانته له بل نه معبود جوړ کړی .

په نړۍ کې چې حکومت کوم نظام مینځ ته راځی هغه هم باید د یوه الله جل جلاله د بندګی پر بنسټ ولاړ وی ، د ژوند د قوانینو ماخذ یی هم باید یوازی د الله جل جلاله ذات وی ، ځکه د داسی یو نظام په سیوری کې به هر وګړی ته ډاډه زړه دا آزادی موجوده وی چې هره ګروهه یی چې زړه وغواړی ومنی ، په همدغه صورت کې د دین او قانون ، اطاعت او فرمانبرداری او بندګی یوازی د الله جل جلاله لپاره خاص کیدای شی .

د دین " اسلام " مفهوم د عقیدی له مفهوم او معنی نه ډیر جامع دی ، او په اسلام کې یوازینی ممکنه لاره هغه ده چې د ټولو انسانی جمعیتونو متنوع ډولو ته د اسلام د دغه هر اړخیز او جهانی روش پر اساس یوازی د لوی الله جل جلاله په مقابل کې د کوچنی والی احساس وکړی .

دین په دغه برخه کې پر عقیده باندی تکیه کوی ، خو د ده د قدرت او پراختیا ساحه د عقیدی تر هغی ډیره پراخه ده ، ځکه د اسلامي حکومت په پالیسی کې دا ځای شته دی چې ګڼ شمیر خلګ پکې واوسی ، چې د اسلام حکومتی قانون ته ( چې د الله جل جلاله د بندګی پر بنسټ ولاړ دی ) وفادار وی ، خو اسلام یی د عقیدی په توګه نه وی قبول کړی .

## ایا اسلام یو دفاعي نهضت ( غورځنګ ) دی ؟

هغه څوک چې د اسلام له روح او مزاج نه خبر او اګاه وی لکه څنګه مو چې مخکې وویل ، په ښه توګه پوهیږی او ښایې پخپله دی نتیجی ته ورسیږی ، چې د اسلامي نهضت قیام او پاڅون له دی دوو لارو نه پرته ناشونی دی : لومړی جهاد بالسیف او دویم جهاد بالقول .

او دا حقیقت به هم ورته څرګند وی چې اسلام په هغه محدود معنی ( دفاعی نهضت ) نه دی چې په اوسنی مروجه اصطلاح له " دفاعی جګړی " نه تعبیر کیږی ، دغه سرسری او غلط نظر په حقیقت کې د هغه حضراتو د غلامانه ذهنیت محصول دی چې د حالاتو د بتی له تاوه متاثر شوی او پر اسلام باندی یی د مستشرقینو د عیارانه حملو په مقابله کې ماتی خوړلی ، نو بیا یی د اسلام دغه ډول تصویر وړاندی کړی دی .

اسلام د یوه څپاند سمندر په توګه د انسان د آزادی په مخ کې هر خس وخاشاک په مخه کړی وو ، د دی لپاره چې د بشریت د مرئیتوب بیړی د حقیقی آزادی ساحل ته ورسوی ، هغه د انسان د عملی ژوند له ټولو اړخونو سره په جګړه او مبارزه بوخت و .

د هر اړخ د مثبت سمون او اصلاح لپاره یی هغه وسایل غوره کړی وو چې د هغه د سمون لپاره غوره او وړ وو ، د اسلام د جهاد نهضت له ډیرو کړکیچنو پړاوونو نه په بری سره تیر شویدی او په هر پړاو کې یی د وخت او زمان له شرایطو سره له هغو وسایلو نه کار اخیستی چې زښت زیات اغیزمن وو .

بالفرض که دا هم ومنو چې د اسلام د " جهاد تحریک " یو دفاعی تحریک دی نو بیا باید د " دفاع " د لفظ مفهوم او معنی ته تغیر ورکړو ، له دفاع نه مقصد باید " دفاع له انسان " څخه وی یعنی د هغو ټولو سببونو او عواملو په وړاندی له انسان نه دفاع کول چې د انسان آزادی سلبوی او یا لږ تر لږه د انسان د ریښتینی آزادی په لار کې خنډ کیږی .

کیدای شی چې دغه عوامل د افکارو او عقایدو په بڼه وی او یا د داسی سیاسی نظامونو په جوله " شکل " چې د سیاسی ، وټه ایزو " اقتصادي "

طبقاتي او نژادي امتيازاتو پر بنسټ ولاړ وي ، کله چې د اسلام لمر په نړۍ کې نوی ځیره ووهله نو هغه وخت هم د دغو عواملو او سببونو چې د انسان د آزادي په لار کې خنډ کيږي ، تورتم موجود و ، او د اوسني پيړۍ په جهالت کې هم د هغوی ځيني بنې دود دي .

که د " دفاع " کلمه دغه پراخه مفهوم غوره کړي نو مونږ په اساني سره کولای شو چې د هغو ادعاوو په مفهوم پوه شو چې په هغې سره د اسلامي جهاد د تحريک په لار کې موانع ايجاد وي .

دا لا څه چې په خپله د اسلام رښتيني مفهوم به هم زمونږ مخې ته د لمر په څير ځرګند شي ، مونږ بايد ددي خبرې په درک او پوهيدلو کې هيڅ وخت ضايع نکړو چې : د اسلام مطلب د يوه انسان له بندګۍ نه د بل انسان آزادي ده ، د الهي تعليماتو او ربوبيت په مقابل کې غاړه ايښودل او په نړۍ کې د انساني خپل سرۍ د پای ته رسوني اعلان او يوازې الهي شريعت او د لوی الله جل جلاله حکومت !!!

هغه هڅې چې د " دفاع " د مفهوم لپاره په هماغه محدوده او ساده معنی کيږي چې د هغې له مخې د " جهاد " کلمې ته هم همدا لنډه او تنګه جامه ور واغوندي ، چې د اوسني پيړۍ د " دفاعي جګړې " په مفهوم کې رانغښتي دي او همدا رنګه هغه هلې ځلې چې د دې خبرې د تائيد او د اسنادو او مدارکو د پيدا کولو لپاره کيږي چې د جهاد مفهوم يوازې له اسلامي هيواد نه دفاع ده .

او اسلامي خاوره هم د دوی په نظر هماغه " جزيره العرب " ده ، په حقيقت کې هغه ناکامي هڅې او هلې ځلې دي چې غواړي يا خو د دين د مفهوم په هکله پر خپله ناپوهي او نارسايي پرده وغوړوي او يا دغه په ظاهره د اسلام خوا خوږي ، د جهاد پر اصلي رول او اغيزه پوی شوی نه دی ، چې د اسلام جهادي نهضت په نړۍ کې څومره انقلابي او مثبت رول لري ؟

يا خو دغو خوارانو د حالاتو د فشار او د اسلامي جهاد په کرښلاره او اصولو د مکارو مستشرقينو د حملو په مقابل کې وسله ايښې ده او غوښتي يې دي چې يو دفاعي حالت غوره کړي ، دا ځکه چې د اسلام په

برخه کې د دوی د درک او لید ساحه دومره پراخه نه ده لکه څومره چې د دغه دين اصول او قوانين عميق او ژور دی .

ايا څوک دا ويلی شي چې که حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه حضرت عمر رضی الله عنه او حضرت عثمان رضی الله عنه پردی خبری باور درلودای چې رومی او ايرانی لښکری پر جزيره العرب حمله نه کوی ، نو هغوی به بيا د اسلام د ځلانده لمر د وړانګو د خپرولو هڅه نه کولای ؟

څرګنده ده چې د دی خبری ځواب منفی دی ، ځکه چې له دی نه پرته اسلام پرمختګ نشوای کولای ، که هغوی پر اسلامي خاوره يرغل هم نه کاوه ، خو دا څوک ويلی شی چې هغوی به د اسلام د خپرولو مخنيوی نه وایَ کړی ، حتما يی کاوه ، ځکه چې د اسلامي دعوت خپريدل او د خلکو له خوا يې منل په خپله د هغوی د امپراطوری د پای اعلان معنی درلوده .

طبعا به هغوی په دغه لار کې زيات خنډونه پيښول او د دغو بی شميره ستونزو په لړ کې ، سياسی نظام ، د ټولنی نژادی او طبقاتی امتيازات او بيا د دغو نژادی او طبقاتی توپيرونو له ګيډی نه راوتی اقتصادي نظام او د دغه اقتصادي نظام ملاتړ سياسی قدرت او نور مادی وسايل ـ دغه ټول د اسلام د خپرولو په لار کې ستر خنډونه وو .

دغه ډول تصور او فکر به څومره ساده ګی او بوله توب وی چې يو دعوت د نړۍ پر مخ د ټول بشريت د آزادی اعلان وکړی او بيا د ټولو پورتنيو خنډونو ، او موانعو مقابله يوازی په تبليغی جهاد وکړی او په دی اسره هم وی چې خلک هغه ومنی ! په دی کې هيڅ شک نشته چې تبليغی جهاد هم د دين له غوره او مهمو ارکانو نه دی ، خو کله ؟ هغه وخت چې ټول انسانان د هر ډول ګروهی په منلو کې آزاد وی .

له همدی امله دغه دين هم لومړی انسانان د لاری له ټولو موانعو او خنډونو نه آزاد وی او بيا په دغه ډول يوه آزاده فضا کې له هغه نه د اسلام د منلو غوښتنه کوی او بيا دی " لا اکراه فی الدين " پر قانون عمل کوی ، خو که چيری د پورتنيو عواملو حکومت موجود وی او د بشر د آزادی په لار کې

خنډونه موجود وي نو له دې نه پرته بله چاره نشته ، چې لومړی هغه په زور او قدرت لیرې شي .

ځکه کله چې دغه دعوت خلک د الهی بندګی غاړه ایښودلو ته رابولی ، نو هغه وخت باید خلک ذهنا او جسما له هر ډول زنځیرونو او زولنو نه آزاد وي او په ډاډه زړه د دغه دعوت د منلو او یا نه منلو په هکله پریکړه وکړي ، د آزادی په خوند آزاد خلک ښه پوهیدای شی ، د آزادی له چیغی سره یوازې آزاد خلک خپله چیغه په ډاګه غبرګولی شی .

که چیری د اسلامي دعوت چلند او اسلوب د انسان د آزادی فیصله کوونکې اعلان وی او بیا دا اعلان او زیری محض په فلسفیانه عقایدو او خیالاتو کې محدود شوی نه وی ، بلکه د عملی ژوند له نیمګړتیاوو سره تل په جګړه اخته وی او د ژوند په هر اړخ کې د یوه مثبت زور او بنیادی بدلون د راوستو لپاره هڅه کوی ، نو بیا خو د دغه ډول انقلابی غورځنګ " نهضت " لپاره چې د بشریت د آزادی رسالت پر غاړه لری او د بشریت د اوسنی تورتم او جهالت له تیارو نه ئې د هغوی د را ایستلو هوډ کړی وی " جهاد " یو بیخی بنیادی او ضروری جز دی ، اسلام او جهاد سره په هر ډول حالت کې نوک او وری دی که اسلامي هیواد او یا په سمه او اسلامي اصطلاح ـ دار الاسلام د سولی او امن په حالت کې وی او که د ګاونډیو هیوادونو تر یرغل او حملی لاندی .

کله چې اسلام د امن او سولی نوم اخلی نو هغه امن او سوله دا نه ده چې یوازی دی په دی کې خلاصه شی چې سوله دی په هغه ځای کې وی چې هلته مسلمانان اوسیږی او له ستونزو او کړاوونو دی خلاصي وی .

اسلام چې د کومی سولی او امن غوښتونکې دی هغه دا دی چې په نړۍ کې په بشپړه توګه د الله جل جلاله حکومت ټینګ شی ټول انسانان د هغه د عبودیت سجده پر ځای کړی ، داسی ونه کړی چې د کائناتو د خالق بندګی پریږدی او د ځان په څیر انسانانو مرئیتوب مندری په غوړ کې واچوی .

د نبوت تر زمانی وروسته ، د اسلام د اصولو په هکله د اعتبار وړ پړاوونه هغه وروستی پړاوونه دی چې په هغوی کې جهاد د الله جل جلاله د

حکم پر اصولو ولاړ و ، د اسلامي دعوت لومړی او منځنی پړاوونه په دی برخه کې د اعتبا وړ نښی کیدای .

د جهـاد لومړی او منځنی پړاوونه اوس تیر شویدی او لکه څنګه چې امام بن قیم رحمه الله علیه په خپل کتاب کې لیکلي چې " په پای کې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د سوره برات تر نازلیدو وروسته له کفارو سره دری ډوله پالیسی غوره کړی وه .

لومړی له هغه کفارو سره چې له اسلام سره په جګړه بوخت وو ، دویم هغه چې له مسلمانانو سره یې د سولی تړونونه درلودل ، دریم اهل ذمه وو ، کله چې سوله غوښتوونکې او معاهدین د اسلام په نور منور شول ، نو یوازی دوه ډلی کفار د هغه په وړاندی پاتی شول ، یو محاربین او دویم اهل ذمه .

محاربین هغه کفار وو چې له هغه صلی الله علیه وسلم نه په ویره کې وو او هر وخت به جګړی ته چمتو وو ، په حقیقت کې د نړۍ ټول انسانان مونږ د اسلام په مقابل کې په دری ډلو ویشلای شو : یو هغه مسلمانان چې په الله جل جلاله او د هغه د استازی په پیغمبری ئې ایمان راوړه .

دویم هغه سوله خوښوونکې کفار چې حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم امن ورکړ ، چې اهل ذمه تری مراد دی ، دریم هغه خلک چې له اسلام نه به تل په ویره کې وو او د جګړی حالت یی غوره کړی و .

په دغه بحث او څیړنه کې چې له کفارو سره د اسلامي دعوت د برخورد کومی جولې " شکلونه " بیان شویدی ، په منطقی توګه همدغه جولی د دغه دین له مزاج او مقاصدو سره اړخ لګوی ، د حالاتو ناخوالو څپلی ذهنونو او د مستشرقینو له حملو نه ویریدونکې افکار چې د اسلامي جهاد د نقش او رول کومه تشریح او توضیح کوی ، هغه د اسلام د انقلابی او آزادی بښونکې دین له مزاج او کړنلاری نه ډیر لری دي .

## د جهاد تدریجی حکمونه

په لومړنیو وختونو کې چې مسلمانانو مدینی ته هجرت ( لیږد ) پیل کړ ، نو الله جل جلاله هغوی ته له کفارو سره د جګړی نه کولو حکم وکړ ، او

مسلمانانو تــه يې وفــرمايل : كفوا ايديكم واقيموا الصلوة واتو الزكوة (لاسونه مو چاته مه ور اوږدوي ، لمونځ كوى او زكات وركړى .

وروسـته بـيا هغـوى تـه د جګړې او قـتال حكـم وشـو او داسـى يـى ورتـه وفـرمايل : د أُذِنَ لِلَّذِيــنَ يُقَــاتَلُونَ بِــأَنَّهُمْ ظُلِمُوا وَإِنَّ اللَّهَ عَلَى نَصْرِهِمْ لَقَدِيــرٌ() الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ بِغَيْرِ حَقٍّ إِلَّا أَنْ يَقُولُوا رَبُّنَا اللَّهُ وَلَوْلَا دَفْــعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَاتٌ وَمَسَاجِدُ يُذْكَــرُ فِــيهَا اسْــمُ اللَّــهِ كَثِيرًا وَلَيَنصُرَنَّ اللَّهُ مَنْ يَنصُرُهُ إِنَّ اللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيــزٌ()الَّذِيــنَ إِنْ مَكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ أَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنْ الْمُنْكَرِ وَلِلَّهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ [الحج : ۳۹ - ۴۱]

(هغو كسانو ته د جګړې اجازه وركړ شوه چې ( كفار ) له هغوى سره جګړه كوى ، ځكه چې پر هغوى ظلم او تيرى شويدى ، او يقينا الله تعالى هغوى ته د مرستى او نصرت په وركولو ډير ښه قادر دى ، هغه كسان چې له خپلو كورونو نه په ناحقه او ناروا ايستل شويدى ( بله ګناه يې نلرله ) پرته له دى نه چې وايې زمونږ رب ، الله جل جلاله دى ، كه چيرى الله جل جلاله ځينې خلك په ځينى نورو سره نه دفع كولاى نو په دى صورت كې به د راهبانو خلوت خانى د نصارى وو كليسا ګانى ، او د يهودو عبادت خانى او د مسلمانانو مسجدونه چې د الله جل جلاله نوم پكې ډير ياديږى وران شوى واى ، الله جل جلاله له هغه چا سره مرسته كوى چې له الله جل جلاله سره مرسته كوى ، الله جل جلاله ډير ستر توان او قدرت لرى ، دا هغه خلك دى چې كه مونږ ورته د ځمكې اقتدار وباښه لمونځونه به كوى ، زكات به وركوى ، پر نيكيو ( معروف ) به خلكو ته امر او له بدو ( نواهيو ) ځينى به يې منع كوى ، د ټولو كارونو انجام د الله جل جلاله په لاس كې دى ) .

تردى وروسته بله مرحله راغله ، په هغه كې مسلمانانو ته حكم وشو چې هغه خلك چې ستاسو پر ضد توره راپورته كوى له هغوى سره جګړه وكړى .

الله جل جلاله فرمايى :

وَقَــاتِلُوا فِــي سَــبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوا إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ [ بقره : ۱۹۰ ]

( د الله جل جلاله په لار کې له هغه چا سره چې له تاسو سره جګړه کوي جګړه وکړئ ) .

او په پای کې یې د ټولو مشرکینو پر خلاف په عمومي ډول جګړه فرض کړه او داسې حکم وشو .

وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً كَمَا يُقَاتِلُونَكُمْ كَافَّةً [د توبه سورت ۳۹ آیت ]

( له ټولو مشرکینو سره په جګړه او قتال لاس پورې کړئ لکه څنګه چې هغوی ټولو له تاسې سره په جګړه او قتال لاس پورې کړیدی)

قَاتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَلَا يَدِينُونَ دِينَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حَتَّى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَدٍ وَهُمْ صَاغِرُونَ [د توبه سورت ۲۹ آیت ]

( له هر هغه اهل کتاب [ یهود او نصارئ ] سره ( چې پر یوه الله جل جلاله او د قیامت پر ورځ ایمان نلري او هغه څه چې الله جل جلاله او د هغه رسول الله صلی الله علیه وسلم حرام کړیدي ، حرام نه ګڼي او حق دین ته غاړه نه ږدي جګړه وکړئ ، له هغوی سره چې کتاب ورکړ شوی د الله جل جلاله له خوا تر هغه پورې جګړه وکړئ چې په خپل لاس په داسې حال کې جزیه درکړي چې خوار او ذلیل وي )

د امام بن قیم رحمه الله د وینا له مخې مسلمانان په لومړي مرحله کې له مشرکینو او کفارو سره له جګړې نه ایسار شوي وو ، بیا وروسته د هغې اجازه وشوه ، تردې وروسته یې د هغه خلکو پر خلاف د جهاد امر وکړ چې لومړي یې په جګړه لاس پورې کړي و او په پای کې د ټولو مشرکینو او کفارو پر خلاف جګړه او جهاد فرض شو .

د جهاد په برخه کې د قرآن واضح او صریح نصوص او همدا رنګه جهاد ته هڅوونکې احادیث او د اسلام د لومړیو وختو جګړې او د اسلامي تاریخ په هره پاڼه کې د جهاد افسانې ، دا ټول هغه واضح او څرګند دلایل دي چې

د دې په موجوديت کې به د هيڅ مسلمان زړه هم د جهاد په هکله هغه تفسير ونه مني چې د هغو حضراتو د نيمګړې پوهې او ګنجې ذهن محصول دی .

په حقيقت کې د حالاتو کړکيچ او په اسلام باندې د مستشرقينو د مکارانه حملو څپېړو د هغوی د ذهن مخ شين کړی دی او خپله ماتې يې منلې ده ، داسې له عقله پاک به څوک وي چې د الله جل جلاله واضح او صريح احکام هم واوري او ور سره يې د رسول الله صلی الله عليه وسلم صريح اقوال او احاديث هم له نظره تير شوي وي ، د اسلامي سوبو د تاريخ پاڼې يې هم اړولې وي او بيا هم په دې خام خيالي اخته شي چې د جهاد ټول اصول او احکام عارضي او د وخت او مهال له مصلحت سره سم هدايتونه وو او يوازې هغه برخه يې دايمي حيثيت لري چې د سرحدونو په ساتنې پورې اړه لري .

الله جل جلاله په خپلو هغو آيتونو کې چې د لومړي ځل لپاره يې پر مسلمانانو له کفارو سره د جګړې په برخه کې نازل کړي او هغوی ته يې د جګړې او قتال امر وکړ ، نو دا ئې هم ورته وښوده چې جهاد د دغه دين له فطري او دايمي اصولو نه يو اصل دی او په دنياوي ژوند کې به د الله تعالی جل جلاله دغه ابدي او مستقل اصول جاري وي ، ترڅو ځينې انسانان له ځينو نورو نه شر او ستم دفع کړي ، چې د الله جل جلاله له ځمکې نه فساد او بدي ورکه شي .

أُذِنَ لِلَّذِيــنَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا وَإِنَّ اللَّهَ عَلَى نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ() الَّذِينَ أُخْــرِجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ بِغَيْرِ حَقٍّ إِلَّا أَنْ يَقُولُوا رَبُّنَا اللَّهُ وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَــهُمْ بِبَعْضٍ لَهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَاتٌ وَمَسَاجِدُ يُذْكَرُ فِيهَا اسْمُ اللَّهِ كَثِيرًا [د الحج سورت ۳۹ -۴۱ ايتونه]

(هغو کسانو ته د جګړې اجازه ورکړ شوه چې ( کفار ) له هغوی سره جګړه کوي ، ځکه چې پر هغوی ظلم او تيري شويدی ، او يقينا الله جل جلاله هغوی ته د مرستې او نصرت په ورکولو ډير ښه قادر دی ، هغه کسان چې له خپلو کورونو نه په ناحقه او ناروا ايستل شويدي ( بله ګناه يې نلرله )

پرته له دې نه چې وايي زمونږ رب ، الله جل جلاله دی ، که چیرې الله جل جلاله ځيني خلک په ځيني نورو سره نه دفع کولای نو په دې صورت کې به د راهبانو خلوت ځانې د نصارې وو کليسا ګانې ، او د يهودو عبادت خانې او د مسلمانانو مسجدونه چې د الله تعالى نوم پکې ډير ياديږي وران شوي واى) .

له دې امله چې حق او باطل د يو بل ترخنګ نشي اوسيدلای نو د دې فرمان موقعيت هم ابدي او هميشني دی ، د عارضي حالاتو وخت او مهال تابع ندی ، دا يوه هميشني او مستقله جګړه ده چې د ځمکې پر مخ به د انسان د ازادې اعلان ژوندې ساتي ، له کوم وخت راهيسې چې اسلام د نړۍ پر مخ د ربوبيت پر اصولو د ولاړ نظام د مينځ ته راوستلو اعلان کړيدی او د يوه انسان د غلامې او مرئيتوب له بد مرغې نه ئې د بل انسان د خلاصون لوړه کړيده .

نو له هماغه وخت راهيسې هغو طاغوتي قدرتونو چې د الله جل جلاله پر حاکميت او د انسان پر ازادې يې ظالمانه منګولې ښخې کړيدې ، د اسلام د پرمختګ په مقابل کې توره په لاس په يوه صف کې دريدلي دي ځکه د دغه ډول ازادې ښېونکې حکومت وجود او مينځ ته راتګ په هيڅ ډول هم نشي زغملای ، په خپله اسلام د الله جل جلاله په وړاندې د دغو باغيانو له مينځه وړلو ته ملا تړلې ده او د مظلومو انسانانو له ځټونو نه يې د هغوې د استبداد د زغ په لرې کولو کې ډيل نه دې کړې .

د مصطفوي څراغ د رڼا او بولهبي شرارت د تورتم ترمينځ به دا جګړه تر هغه وخته جارې وي او د جهاد سمندر به هم تر هغه وخته ځپاندوي چې بولهبي تياره ورکه شي او محمدې رڼا پر ټوله نړۍ خوره شي ، د نړۍ ټول طاغوتان د جهاد د ځپانده سمندر ځپې د فرعون استوګنځي ته ور ورسوي ، ترڅو د ټولې نړۍ دود او دستور د الله جل جلاله د دين او د ژوند د قانون په ازادې ښېونکې لار روان شي .

## په مکې دوره کې ولې د جهاد بالسيف اجازه نه وه ؟

په مکه کې د جهاد نه کولو دوره د يوې اوږدې مودې د نقشې او پلان لپاره يوه تاکتيکي مرحله وه ، همدغه تاکتيک د مسلمانانو د هجرت په لومړيو وختونو کې تر اجرا لاندې و ، خو له ابتدايي پړاوونه وروسته چې مسلمانانو د جهاد لپاره توری له تيکې را وايستلی نو هغوی سره يوازې دا احساس نه و چې مدينه منوره وساتي ، په دې کې هيڅ شک نشته چې د مدينې د پولو او بريدونو ساتنه به هم د هغوی په نظر کې وه خو دې مسئلې د اسلامي تحريک لپاره له يوې ابتدای حيلې نه زيات ارزښت نه درلوده .

اصلي مقصد نور څه وو ، د دغه تاکتيک اصل هدف دا و چې د اسلامي تحريک د " طلوع مرکز " د کفارو له زيان نه په امن پاتې شي او د دغه کاروان په لار کې خنډونه پيښ نشي ، د انسان د ازادی ستر او عظيم کاروان د هدف لور ته پر مخ ولاړ شي ، هغه ټول ديوالونه چې په دې لاره کې حايل دي له بيخه يې ونړوي ، د مکې دورې په ژوند کې که مسلمانانو د بالسيف جهاد اجازه نه درلودله نو دا خبره څه له عقله لرې نه وه او سړی پوهيدای شي چې دا ولې ؟

• ځکه چې په مکه کې د تبليغ ازادي موجوده وه ، له پيغمبر صلی الله عليه وسلم نه د بنو هاشم د قبيلې نورو دفاع کوله او له همدې امله هغه ته د ازادانه دعوت موقع په لاس ورتلله ، او هغه صلی الله عليه وسلم خپل دعوت او پيغام د خلکو تر غوږو ورسولای شو .

له هغوی نه يې د خپل دين د منلو غوښتنه کولای شوه او د مکې له هر وګړي سـره يې پخپله خبرې اترې کولای شوي ، په مکه کې داسې کوم منظم سياسي قـــدرت نه و چې پر تبليغ دې داسې بنديز ولګولای شي چې خلک يې چور له اوريدو نه بې برخې شي ، نو له همدې امله د اسـلامي نهضت لپاره په دغه وخت کې د زور او قوت د کارونې کومه خاصه اړتيا نه پيښيده .

پردې سربيره داسې نور عوامل هم وو چې د دعوت په دغه مرحله کې له جګړې او قتال نه پرته د دعوت د پرمختګ لپاره پکار وو ، دغه ټول

عوامل او لاملونه ما د في ظلال القرآن ، د أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ قِيلَ لَهُمْ كُفُّوا أَيْدِيَكُمْ آيت په تفسير کې بيان کړيدي ، د دغه تفسير د ځينې برخو را اخيستل به دلته بې ګټې نه وي .

دويم لامل : په دغه پړاو کې د جهاد بالسيف د نه کولو علت دا هم کيداى شي چې د اسلامي دعوت مرحله په يوه مخصوص او ځانګړې چاپيريال ، مخصوص نوم ، او ځانګړو حالاتو په بهير کې د وګړو د روزنې او استعدادونو د رابرسيره کولو مرحله وه .

په داسې يوه ماحول کې روزنه او د استعدادونو راټولول د ګڼو مقاصدو لپاره يو ضروري کار و ، چې له هغې نه يو مقصد دا هم و چې يو عرب انسان داسې وروزل شي چې هغه خبرې او حالات وزغملې شي چې د هغې له زغم او سهلو سره نا اشنا و .

د ساري په توګه شخصا په خپل ځان او په هغو کسانو چې د ده په حمايت کې دي ، د بل چا له خوا د تيرې او ظلم زغمل او په ډير صبر او زغم د داسې حالاتو له توغه وتل ، د دې لپاره چې د خپل شخصيت د پرستش " پالنې " او نفس له غلامې او مرئيتوب نه آزاد شي ، ترڅو د ده په ژوند کې يوازې له ځانه دفاع او يا د خپلو حليفو ساتنه د ده د ژوند د ټولو مصروفيتونو او محرکاتو يوازينې چورليځ ونه ګرځي .

له بل پلوه هغه ته د ضبط نفس او د ځان د کنترول روزنه ورکول کيده ، د دې لپاره چې دغه سړې لکه څنګه چې دده طبيعت دي ، د کومې نا دودې په اوريدو بې حوصلې او بې واکه نشي او د هيڅ ډول هيجانې پېښې په ليدو ئې لاس د تورې موټې ته ور اوږد نشي .

بلکه د دې پر ځاى بايد د ده په ټولو حرکاتو ، سکناتو او مزاج کې پوره اعتدال ، وقار او شان وشوکت څرګندوى ، هغه ته دا روزنه هم ورکړاى شي چې هغه د يوى داسې ډلې د دسپلين له پابندى سره ځان روږدى کړې چې نهايت منظمه وى ، ځکه چې د يوه ستر لارښود د مشرتابه ويارنې په برخه دي .

د ژوند په هر دود دستور ، او کاروبار کې دوی هماغه رهبر ته رجوع کوی ، د دوی هر ډول کړه " افعال " باید د رهبر د احکامو آئینه وی ، پرته له دی چې دا په نظر کې ولری چې دا حکم د ده له طبیعت سـره جوړ دی ، که نه ؟

په مکې دوره کې د یوه عرب د خوی د اصلاح او روزنی لپاره پورتنی مسایل د بنسټ ډبری وی ، مقصد دا و چې د لوړو خویونو ، پتمن وګړی راټول کړای شی او یوه داسی اسلامي ټولنه مینځ ته راولی چې د رهبر د ورځو په اشاره د هدف په لور روان شی پر مختللی او مهذبه وی ، له وحشیانه ، قبایلی مفاسدو نه پاکه او منزه وی .

درېیم لامل : په دغه مرحله کې د جهاد بالسیف دعوت نه کولو یو لامل دا هم کیدی شی ، چې د قریشو ټولنه د قومی افتخاراتو او نسبی شرافت او له نورو نه د برتری له احساس نه ډکه ټولنه وه ، په دغه ډول یوه چاپیریال کې له امنه ډک دعوت او سوله ئیز چلند ښه اغیزه لری تردی چې سړی توری ته لاس کړی .

نو له همدی امله په دغه پړاو کې د جګړی او توری له لاری دعوت خپرول د لا زیاتو دښمنیو او میرڅیو اور ته ببوزی وهل و ، او د عربو ترمینځ د نورو دښمنیو او د وینی بدل اخیستو تخم شیندل وو .

په عربو کې له پخوا راهیسی د وینی د بدل اخیستو دود روان و چې له همدی امله یی د " دا حس ، غبراء او سیوس " د جګړو لمبی تر ډیرو کلونو پوری مړه کیدو ته پری نښودلی ، تر هغی چې ډیر تېرونه په کې له مینځه لا نړل ، د وینی د بدل اخیستلو نوی جذبی به د هغوی په زړونو کې د اسلام له نامه سره یو ځای نقش شوی وی او دا نوی دښمنی به یی د اسلام محصول ګڼلی ، چې بیا به دا اور هیڅکله هم نه وای مړ شوی .

په نتیجه کې به اسلام د یوه جهانی دعوت، او دین پر ځای د بی پایه خونړیو جګړو او قومی دښمنیو په احساس بدل شوی وای ، او د هغه بنیادی تعلیمات به له هماغه پیل نه خلکو د فراموشی کندی ته غورځولی وای ، په آینده کې به یی هیڅکله هم بیا د ژوند هیله نه وای پیدا شوی .

څلورم لامل : دا هم کیدای شي چې په دغه وخت کې جهاد بالسيف د کورنيو شخړو د مخنيوی لپاره منع کړای شوی وئ ، په دغه وخت کې په مکه کې کوم منظم سیاسی قدرت نه و چې ایمان راوړونکو ته سزا ورکړي او یا نور ډول ، ډول کړاوونه پرې تیر کړي .

دغه کار د هر مؤمن د کورنۍ مشر کاوه ، هر مؤمن به د خپلې کورنۍ له مشر نه په کړاو اخته و او هغه به هم فکر کاوه چې د خپلې کورنۍ د کوچنی غړي د تادیب او تعذیب حق لري ، نو په دغه ډول یوه فضا کې واضحه خبره ده چې د جګړې او قتال اجازه دا معنی لري چې په هر کور کې د پلار او زامنو او ورونو او نورو خپلوانو ترمینځ جګړه پیل شي چې په دې توګه د کورنیو جګړو یوه نه شلیدونکې لړۍ ( سلسله ) پیل کیدله .

د اسلام دښمنانو ته به دا ښه موقع پلاس ورغلې وای چې ووایي : " دغه دی اسلام " ! او په واقعیت کې خو دا خبره د اسلام په باره کې هغه وخت شوی هم وه ، سره له دې چې اسلام په هغه وخت کې له کفارو سره جګړه او قتال روا کړی نه و .

خو قریشو به د حج په موسم کې د لیرې ځایونو عربو ته چې د حج او تجارت په نیت به راغلي وو ، ویل چې " محمد صلی الله علیه وسلم نه یوازې دا چې د خپل قوم په مینځ کې تفرقه اچوي ، د پلار او زوی ، ترمینځ بیلتون راولي " ، قریشو به دا اعتراض هغه وخت کاوه چې مسلمانانو ته د هغوی په مقابل کې د توري را ایستلو اجازه نه وه شوی .

خو که چیرې په رښتیا سره اسلام ، زوی ته د پلار د سر وهلو او غلام ته د بادار د قتل امر کړی وای او په هر کلي او کور کې دا محاذ پرانیستل شوی وای نو بیا به مغرضینو څه ویل او عملا به د اسلام څه حال شوی وای ؟

پنځم لامل : دا علت هم کیدای شي چې الله جل جلاله په دې پوهیده چې د اسلام زیاتره مخالفین چې په اوله کې به ئې مسلمانان له ډول ډول کړاوونو او ستونزو سره مخامخ کول او په دغه لار کې به یې پرې د هر ډول ستونزو زغملو ازمیښتونه کول .

يوه ورځ به خپله د اسلام مخلص سر تيرى شى ، او ان تردى چې د رهبرى تر مقام پورى به ورسى ، ايا عمر بن خطاب رضى الله عنه د همدغه ډول خلکو له ډلى نه نه و ؟ آيا د اسلام له منلو وروسته چې هغه کومى درجى او مرتبى ته ورسيده هغه څرگندونى ته اړه لرى ؟

شپږم لامل : دا علت هم کيداى شى چې د عربو او په تيره بيا په قبايلى چاپيريال کې په فطرى توگه له مظلوم نه په دفاع راولاړيږى ، هغوى ظلم او تيرى زغملى خو شى ، خو تيښته او په شا تگ نه پيژنى ، د عربو دغه د همت او غرور سمندر هغه وخت زيات توپانى کيږى چې دغـــه ډول ظـلم او تيرى د دوى اشــرافو او سپين روبــو تــه متوجه وى ، د مکې پــه ماحول کې داسى ډيــرى پيښى مينځ ته راغلــى دى چې زمونږ د خبرى رينښتينوالى جوتوى .

د مثال په توگه کله چې ابوبکر صديق رضى الله عنه غوندى ډروند او پتمن انسان د مکې پريښودلو او کوم بل ځاى هجرت کولو ته اړ شو نو " ابن الدغنه " دغه خبره نه شوه زغملى او هغه يى له هجرت نه ايسار کړ ، ځکه هغه دغه مسئله د عربو له پاره ننگ او عار گڼله ، نو له دى امله هغه له حضرت ابوبکر صديق رضى الله عنه نه دا غوښتنه وکړه چې ته به زما په حمايت کې يى زه پناه درکوم خو ځه مه !

د داسى پيښو بل ښه مثال د هغى وثيقى څيرول دى چې په هغى سره د بنو هاشم قبيلى د ابو طالب پر کورنى باندى د خوراک څښاک او نورو اړتياوو بنديز لگولى و ، خو کله چې د هغوى ولړه او تنده زياته او نورى له حوصلى نه د دغو ستونزو زغمل بهر شوى وو او د عربو ځوانان په دى خبر شول نو هغوى د همدردى او زړه سوى د جذبى او احساس تر اغيزى لاندى دغه وثيقه ټوټه ټوټه کړله .

دغه ډول نخوت او غرور د عربو ځانگړى او امتيازى صفت و ، په داسى حال کې چې د پخوانيو تهذيبونو خلک چې د انسانانو له سپکاوى او تذليل سره روږدى وو ، په دغه ډول مسايلو کې له سرچپه چلند سره مخامخ کيږى ، ځکه هلته هغه څوک چې د ظلم او تيرى په مقابل کې زغم

او تحمل ښیي ، د خپل چاپیریال د انسانانو له خوا د هغه زغم او تحمل ته په درناوی نه کتل کیږي ، بلکه لا یې سپکوي ، نو پر ځای یې د ظالم درناوی او احترام کوي ، خو په عربو کې برعکس د مظلوم پر خوا دریږي .

اووم لامل : په دغه وخت کې د جهاد نه فرض کیدو یو علت د مسلمانانو د شمیر کموالی هم کیدای شي هغوی یوازې په مکه کې وو ، او اسلامي دعوت وړانګو لا تر دغه وخته پورې د عربو نورې سیمې نه وې روښانه کړې ، یوازې د ګډو وډو خبرونو په واسطه شا وخوا سیمو ته د دغه نهضت د خپریدو او پاڅون ازانګې ور رسیدلې وې .

نورو قبایلو داسې فکر کاوه چې دا مسئله د قریشو خپله کورنۍ مسئله ده ، نو ځکه یې په کې لاسوهنه نه کوله ، او وروستۍ پریکړې ته منتظر وو ، نو که په دغه وخت کې جهاد پر مسلمانانو فرض شوی وای ، دغه جګړه به ضرور د دغه کم شمیره مسلمانانو په ورکیدو پایته رسیدلې وای .

که مسلمانان هر څومره تورزن شوي وای او هر یو څو کسه وژلي وای بیا به هم دغه جګړه د نړۍ له مخ نه د دوی په بیخي ورکیدو پایته رسیدلې وای او د شرک ځیلې به په خوړې شوې وای ، د اسلامي نظام د پاڅون ستوري به د نړۍ په تور اسمان کې نه وای ځلیدلای او هیڅکله به د دغه نظام د عملي وجود پسرلی نه وای راغلی ، په داسې حال کې چې هغه د دې لپاره مینځ ته راغلی و چې د انساني ژوند د ماني عملي نقشه د هغه پر بنسټ ودانه شي .

**مدینې ته د هجرت په لومړیو ورځو کې د جهاد اجازه ولې نه وه ؟**

د مدینې د ژوند په پیل کې هم له کفارو سره د جګړې اجازه او امر نه و شوی ، د دې لامل دا و چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د مدینې له یهودو او هغو عربو سره چې د مدینې شا وخواته میشته وو د سولې تړون کړی و ، هغوی تر اوسه پر خپل شرک ولاړ وو ، د هغه دغه اقدام په حقیقت کې د دغه نوې پړاو فطري غوښتنه وه او د هغې ښیګړې دا وې چې :

لومړۍ خو دا چې په دغو سیمو کې د تبلیغ او تلقین لپاره لار پوره اواره نه وه ، هلته هیڅ ډول سیاسي قدرت نه و چې د مسلمانانو په تبلیغ او

تلقین او دغو سیمو ته په تګ راتګ څه بندیز ولګوی ، د شا وخوا ټولو اوسیدونکو د مسلمانانو دغه نوی جوړه شوی ټولنه په رسمیت وپیژندله او د هغې د سیاسی او ټولنیزو مسایلو د حل لپاره د رسول الله صلی الله علیه وسلم په مشری ټول یوه خوله شوی وو .

د سولې په پورتنی تړون کې دا خبره څرګنده وه چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم له اجازی نه پرته هیڅوک هم د سولې د تړون د لاسلیک کولو او یا د جګړې د امر ورکولو او یا نورو اړیکو ټینګولو حق نه لری ، دا حقیقت د لمر په څیر روښانه و چې د مدینې منورې اصلی سیاسی قدرت د مسلمانانو په لاس کې و ، له همدې امله د اسلامي دعوت لپاره لارې پرانیستل شوی وې ، د عقیدې ازادی موجوده وه او خلکو به چې هره عقیده غوښتله هغه یې منلی شوای ، هیڅ ډول سیاسی قدرت هغوی ایسارولی نشول .

دویم دا چې رسول الله صلی الله علیه وسلم غوښتل چې په دغه وخت کې له نورو شخړو نه ځان وژغوری او یوازې له قریشو سره خپله وروستی پریکړه وکړی ، ځکه چې د قریشو مخالفت د نورو قبایلو په مینځ کې د اسلام د خپرولو لپاره خنډونه پیښبول نور قبایل په دی فکر کې وو چې د قریشو ترمینځ به دغه مسئله کومی نتیجی تـه ورسیږی ، د دغی موضوع په نظر کې نیولو سره رسول الله صلی الله علیه وسلم بی له دینه چې وخت ضایع کړی ، یوه خوا او بله خوا تـه یې د جنګی ټولیو ( سرایا ) په لیږلو پیل وکړ .

تر ټولو لومړی جنګی ټولی ( سریه ) چې ولیږل شو ، د حضرت حمزه بن عبدالمطلب په مشری وه دغه وخت د هجرت شپږمه میاشت او روژه وه ، تر دغه ټولی وروسته پرله پسی څو ټولګی نور هم ولیږل شول ، یوه ډله د هجرت د نهمی میاشت بله د دیارلسمی میاشت او دریمه ډله د هجرت د شپاړلسمی میاشت په پیل کې ولیږل شوه .

کله چې د هجرت اوه لسمه میاشت پیل شوه نو د عبدالله بن جحش په مشری یوه " سریه " ولیږل شوه ، د لومړی ځل لپاره د دغی سر یې په لیږلو

خونړۍ جګړه پېښه شوه آن تردې چې خبره جګړې اووينې تويولو ته هم ورسيدله ، دغه جګړه د حرام ( رجب ) په مياشت کې پېښه شوه .

د دغې جګړې په هکله لاندينۍ آيتونه نازل شول :

يَسْأَلُونَكَ عَنْ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيهِ قُلْ قِتَالٌ فِيهِ كَبِيرٌ وَصَدٌّ عَنْ سَبِيلِ اللَّـــهِ وَكُفْرٌ بِهِ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَإِخْرَاجُ أَهْلِهِ مِنْهُ أَكْبَرُ عِنْدَ اللَّهِ وَالْفِتْنَةُ أَكْبَرُ مِنْ الْقَتْلِ[بقره : ۲۱۷]

( له تا نه به د حرام د مياشتې او په هغې کې د جګړې په هکله پوښتنه کوي ، ورته ووايه چې جګړه په دې مياشت کې ستره ګناه ده ، خو د الله جل جلاله د لارې بندول ، له هغه سره کفر کول او د حقايقو پټول او له مسجد الحرام نه د خلکو شړل او د " حرام " له ښار نه د اهل حرام ايستل د الله جل جلاله په نزد تر هغې لا ستره ګناه ده ، او فتنه وفساد تر وژلو هم بد دي )

بيا د هجرت په دويم کال کې د بـدر ستره جګړه پېښه شـوه ، د روژې او انفال د سـوره د نازليدو مياشت وه چې د بدر پـه جګړه پـه کې تبصره شـوې وه .

که د دغو حالاتو په رڼا کې د اسلامي نهضت دريځ ته په غور وکتل شي ، نو نور به د دې خبرې لپاره په کې هيڅ ځای پاتې نه وي چې د اسلامي نهضت د " جهاد " د اصل مفهوم او معنی په محدوده او تاکلې بڼه د اوسنی پېړۍ د " مدافعانه جګړې " معنی نه ښندي .

د جهاد د اصل لپاره په حقيقت کې دغه محدوده معنی د "سر وسترګيو" ( مجازا کمونستان ) د اينبودونکو حضراتو او همدا رنګه د مستشرقينو د عيارانه حملو په مقابل کې د مريي ذهنه او ماتې خوړلو مفکرينو د مريې قلم محصول معنی ده .

که نه نو حقيقت دا دی چې جهاد د اسلامي حرکت لومړنی پوړی ، اصل او بنسټ دی ، چې د اسلامي نهضت د پرمختګ متضمن دی .

هغه څوک چې د اسلام د بې سارې پرمختګ او سوبو عوامل د اسلام د خالصو " مدافعانه جګړو " نتيجه بولي او بيا د خپلې نظريې د پخلې لپاره هلې ځلې کوي ، په حقيقت کې د اسلام " دغه خواخوږې " څېړونکې !!! د

مستشرقینو ظالمانه او ناروا حملو ته تسلیم شوي دي ، هغوی اوس پر اسلام داسې حملې کوي او وایي چې نه د اسلام هغه تیر برم پاتې دی او نه ورسره د مسلمانانو هغه ډول مینه چې بیرته یې هغه برم ته ورسوي چې د پیړیو په پوړیو کې یې ساری په تاریخ کې نه لیدل کیږي .

خو له دې نه نا خبره دي چې الله جل جلاله تل د خپل دین د ساتنې لپاره ضرور داسې یوه ډله د دغه ډول ذهني غلامی نه خوندي ساتي ، چې هغوی په دې ګروهه وي چې اسلام " یعنې دا ابدي او همیشني پیغام " به د ځمکې پر مخ د ټول بشریت لپاره د انسان د اقتدار زغ مات کړي او له اسلامي قدرت او حکومت نه پرته به د هر ډول تیري او استبداد زنځیرونه وشلوي .

د مسلمانانو د ژوند اصول او قوانین به د الله جل جلاله له فرمان سره سم کړي ،له دغو کم شمیره خلکو نه پرته نور ټول دا هڅه کوي چې د اسلامي جهاد لپاره اخلاقي وجوهات را پیدا کړي ، چې معترضین پرې ډاډه کړي ، خو افسوس د دوی په حال او خاوري دي په خوله وي ، د اسلامي جهاد د حقانیت لپاره د قرآن له نصوصو نه بل اخلاقي او قانوني سند چیرته پیدا کیدای شي او نه ورته ضرورت شته .

قرآن کریم په دې هکله فرمایي :

فَلْيُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يَشْرُونَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا بِالْآخِرَةِ وَمَنْ يُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيُقْتَلْ أَوْ يَغْلِبْ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا()وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ الَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْ هَذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ أَهْلُهَا وَاجْعَلْ لَنَا مِنْ لَدُنْكَ وَلِيًّا وَاجْعَلْ لَنَا مِنْ لَدُنْكَ نَصِيرًا()الَّذِينَ آمَنُوا يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ كَفَرُوا يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ الطَّاغُوتِ فَقَاتِلُوا أَوْلِيَاءَ الشَّيْطَانِ إِنَّ كَيْدَ الشَّيْطَانِ كَانَ ضَعِيفًا [النساء : ۷۴ - ۷۶ آیتونه]

( نو " د الله جل جلاله په لار کې باید هر هغه څوک جګړه وکړي چې د دنیا په مادي ژوند سره یې د آخرت ژوند اخیستې دی ، او هر هغه څوک چې د الله جل جلاله په لار ( جهاد ) کې مړ شي او یا سوبه وکړي ، ډیر ژر به مونږ

هغه ته ستر اجرونه ورکړو ، آخر ولې تاسو د الله جل جلاله په لار کې جهاد نه کوئ ، د هغو کمزورو ، ناتوانو ، ښځو او نارینه وو او ماشومانو لپاره چې ظلم پرې کيږي ، بې وسې دي او ناري فرياد کوي چې خدايه ! مونږ له دغې سيمې او کور وکلي نه چې اوسيدونکي يې ظالمان دي وباسه ، او له خپلې خوا نه مونږ ته څوک حامي راوليږه او له خپلې خوا نه مونږ ته مرستيال راوليږه ، هغه څوک چې مومنان دي د الله جل جلاله په لار کې جګړه کوي او هغه څوک چې کافران دي د شيطان او طاغوت په لار کې جګړه کوي ، نو اې مؤمنانو ! د شيطان له ملګرو سره جګړه وکړئ او باور ولرئ چې شيطاني چلونه ډير کمزوري دي ) .

قُلْ لِلَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ يَنتَهُوا يُغْفَرْ لَهُمْ مَا قَدْ سَلَفَ وَإِنْ يَعُودُوا فَقَدْ مَضَتْ سُنَّةُ الْأَوَّلِينَ() وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ فَإِنِ انتَهَوْا فَإِنَّ اللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ بَصِيرٌ()وَإِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَوْلَاكُمْ نِعْمَ الْمَوْلَى وَنِعْمَ النَّصِيرُ [ انفال : ۳۸ - ۴۰]

( اې رسوله ورته ووايه هغوی ته چې کافران دي که اوس هم له کفر نه لاس واخلي هغه څه چې تاسي مخکې کړي دي هغه به در وبښل شي ، خو که چيرې خپلو پخوانيو عادتونو ته ور وګرځي ، نو له تيرو قومونو سره چې الله جل جلاله څه کړيدي هغه ټولو ته څرګند دي ، او جګړه وکړئ له کفارو سره تر هغې چې د ځمکې پر مخ د فساد نوغي " د کفر غلبه " پاتې نشي او دين ټول د الله جل جلاله لپاره شي ، که چيرې هغوی له کفر نه لاس واخيست نو الله جل جلاله په هغه څه چې هغوی يې کوي بينا دی ، که هغوی د الله جل جلاله له دين نه مخ وګرځوي نو په دې پوه شئ چې الله جل جلاله ستاسو مل او مرستيال دی ، چې تر ټولو ښه مل او مرستيال دی ") .

قَاتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَلَا يَدِينُونَ دِينَ الْحَقِّ مِنْ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حَتَّى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَدٍ وَهُمْ صَاغِرُونَ() وَقَالَتْ الْيَهُودُ عُزَيْرٌ ابْنُ اللَّهِ وَقَالَتْ النَّصَارَى الْمَسِيحُ

ابْنُ اللَّه ذَلكَ قَوْلُهُمْ بأَفْوَاههمْ يُضَاهئُونَ قَوْلَ الَّذينَ كَفَرُوا منْ قَبْلُ قَاتَلَهُمْ اللَّهُ أَنَّى يُؤْفَكُونَ()اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا منْ دُون اللَّه وَالْمَسيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَمَا أُمرُوا إلَّا ليَعْبُدُوا إلَهًا وَاحدًا لَا إلَهَ إلَّا هُوَ سُبْحَانَهُ عَمَّا يُشْركُونَ()يُريدُونَ أَنْ يُطْفئُوا نُورَ اللَّه بأَفْوَاههمْ وَيَأْبَى اللَّهُ إلَّا أَنْ يُتمَّ نُورَهُ وَلَوْ كَرهَ الْكَافرُونَ [ توبه - ۲۹ - ۳۲ آیتونه]

( ای مؤمنانو ! له هغه چا سره جگړه وکړی چې نه په الله تعالی ایمان لری او نه د آخرت په ورځ ، هغه څه چې الله جل جلاله او رسول الله صلی الله علیه وسلم حرام کړیدی حرام یی نه گڼی ، او حق دین ته غاړه نه ږدی ، له هغو سره جگړی وکړی چې د الله تعالی له جانبه ورته کتاب رالیږل شویدی ، تر هغی چې ماتی ورکړی ، خوار او ذلیل شی او په خپل لاس جزیه ورکړی ، یهودو ، وویل چې [عزیز ] د الله جل جلاله زوی دی او عیسویان. وایی چې مسیح د الله جل جلاله زوی ، په دغو له حقیقته لری خبرو چې دوی یی وایی ځانونه یی له هغو خلکو سره مشابه کړل چې له دوی نه مخکې په کفر مبتلا شوی وو ، الله جل جلاله دوی هلاک (لعنت ) کړل چې بیا هم کفر ته گرځیدلی وو ، خپل عالمان او عابدان یی له حقیقی الله جل جلاله نه پرته په خدایې نیولی وو ، او همدا مقام یی مسیح بن مریم ته هم ورکړ ، په داسی حال کې چې د الله تعالی جل جلاله له خوا ورته د یوه الله تعالی د بندگی کولو حکم شوی و ، له هغه نه پرته بل معبود نشته ، هغه ذات له هغه څه نه چې دوی یی ورسره شریکوی بالکل پاک او منزه دی ، دوی غواړی چې د الله جل جلاله د نور ډیوه په خپلو پوکیو ( خولو ) مړه کړی ، او د خپریدو مخه یی ونیسی ، خو الله جل جلاله به خپل نور تمام او کامل ( خپور ) کړی ، که څه هم پر کافرانو سخته تمامه شی) .

د جهاد د وجود ، وجوهات او محرکات چې په پورتنیو آیتونو کې بیان شویدی هغه دا دی : په نړۍ کې د الله جل جلاله د الوهیت بیرغ راپورته کول ، د بشری ټولنی د ژوندانه د دود په برخه کې د اسمانی او حقانی

اصولو عملي کول او د ټولو شیطاني قوتونو او شیطاني اصولو او قوانینو له منځه وړل ، د انسان د باداري پای ته رسول ، چې نور انسانان د خپلې غلامۍ په زنځیرونو او زولنو کې مرئیتوب ته راکاږي .

حال دا دی چې انسان یوازې د الله جل جلاله بندګۍ کولای شي او له هغه نه پرته بل چا ته دا حق حاصل نه دی چې هغوی انسانان د خپلې ګیډې او رنځورو اذهانو د قانون تابع وګرځوي او د خپل شخصي نظر او هوا وهوس ، شریعت پرې ومني .

پورتني وجوهات او عوامل د " جهاد کولو " لپاره کافي دي د دې ترڅنګ باید د دغه اصول پابندي هم وشي چې لا اکراه في الدین (د دین په منلو کې اکراه نشته ) یعنی په خپله خوښه د دین منل او په دې خبره پوره پوره اقرار کول چې د بندګانو د تسلط او اقتدار له خلاصون نه وروسته به د الله جل جلاله د تسلط او اقتدار بیرغ پورته وي ، یا په بله وینا د ژوند په هر اړخ کې به د الله جل جلاله قانون چلیږي ، یو انسان به حتی دیته هم نه اړ کیږي چې اسلام په زوره ومني .

که تاسو د جهاد په پورتنیو وجوهاتو او عواملو غور وکړی نو نتیجه به دا وي : د کوم هدف لپاره چې اسلام د جهاد بیرغ راپورته کړی دی ، هغه په بشپړه توګه په نړۍ کې د انسان د حقیقي ازادۍ اعلان دی ، دا ازادي هغه وخت خپلې بشپړتیا ته رسیدلی شي چې انسان د انسان له بندګۍ نه خلاص وي ، او د الله جل جلاله د بندګۍ په پراخه ماحول کې ورننوځي چې د خلاصون یوازینی ماحول دی او هیڅ ساري نلري ، ایا د جهاد کولو لپاره یوازې همدغه ستره موخه " هدف " سند کیدای نشي ؟

په هر صورت کې په قرآن کې چې د جهاد کوم عوامل او مقاصد بیان شویدي هغه به هر وخت د مسلمانانو مجاهدینو د پاملرنې وړ وي هیڅکله به هم داسي پیښه نه وي شوي چې له مسلمان مجاهد نه پوښتنه وشي چې ته د څه لپاره جهاد کوې او هغه دې ووایې چې : " زمونږ د وطن بریدونه د دښمنانو د یرغل له خطر سره مخامخ دي ، مونږ د هغې د ساتنې لپاره راپورته شوي یو " .

یا " پر مونږ مسلمانانو د فارس او روم له خوا ظلم او تیری شویدی او د هغی د مخنیوی لپاره جهاد کوو" یا " مونږ غواړو چې د خپل هیواد بریدونه پراخه کړو ، چې زیات غنایم او ولجی په لاس راشی " !! د پورتنیو ځوابونو په خلاف به د اسلامي مجاهد ځواب هغه وی چې ربعی بن عامر ، حذیفه ابن محصن او مغیره بن شعبه د قادسیه په جګړه کې د فارس د لښکرو سپه سالار ، رستم ته ورکړی وو .

رستم له جګړی نه دری ورځی مخکې پرله پسی له دغو درو تنو مجاهدینو نه بیلا بیل همدا یوه پوښتنه کوله چې کومی هڅی او خواهش تاسو دلته راوستی یی ؟ خو د هغوی ټولو همدا یو ځواب و چې :

" الله جل جلاله پر مونږ حکم کړی دی چې د نړۍ ټول انسانان د ځان په څیر انسانانو له مرئیتوب ، بندګی ، ذلت او خواری نه وژغورو او د الله جل جلاله د بندګی او عبادت ویاړ وربښو ، هغوی ته د دنیا له تنګی نه د دنیا د وسعت او پراختیا په لور لارښوونه وکړو .

د ادیانو د ظلم له تورتم نه یی د اسلام د عدل د رڼا په لور سم کړو ، د دغه پاک مقصد لپاره الله جل جلاله خپل پیغمبر محمد صلی الله علیه وسلم له عادلانه دین سره خپل مخلوق ته راولیږه نو هغه څوک چې زمونږ دغه دین ومنی مونږ هم د هغه اقرار منو او بیرته ګرځو، د هغوی هیواد هغوی ته سپارو او هغه څوک چې زمونږ له دین نه سرغړونه کوی له هغه سره جګړه کوو ، تر هغی مو چې د خپل شهادت په بدل کې جنت نصیب شی او یا سوبمن شو .

## د جهاد یو بل فطری لامل

د جهاد پر نورو خارجی وجوهاتو او محرکاتو سربیره د جهاد د جواز یو بل قایم الذات لامل هم شته دی ، چې په خپله د دی دین په خټه او فطرت کې اخښل شوی دی ، د هغه د انسانی ازادی په هر اړخیز غوښتنه کې نغښتی دی ، دغه دین لکه څنګه چې د انسانی ژوند له عملی حالاتو او شرایطو سره د وخت او زمان د غوښتنی له مخی د نورو وسایلو او ذرایعو

په واسطه څنګ په څنګ روان دی او د ژوند په ټاکلو پړاوونو کې په هره مرحله کې د وخت له غوښتنو سره سم کار کوي .

نو په خپله د دغه دین دغه حقیقت خوښوونکې کرښلاره د جهاد د طبیعي والي او فطري والي څرګندونه کوي ، د جهاد لپاره دغه وجه د اسلامي دعوت له پیل نه پیدا کیږي او په دې شرایطو پوري اړه نلري چې پر اسلامي هیواد او یا یې اوسیدونکو باندې د بهرني حملې ویره شته او که نه ؟ د جهاد د دغه سبب مینځ ته راوړونکې د وخت او حالاتو له غوښتنې سره سم دفاعي جګړې یا اضطراري حالات نه دي ، بلکه د دغې علت مینځ ته راوړونکې هغه بې خدایه ، طاغوتي ټولنې او قدرتونه دي چې په هغوی کې له یوې خوا د اسلامي دعوت لپاره عملي ستونزې او کړکیچونه را پیدا کیږي .

له بلې خوا په خپله د اسلام د ژوند ځانګړې دود او په عملي ژوند کې د اسلام رول او د هغه دعوت ، دا ټول د جهاد ، دغه طبیعي او فطري وجه او علت مینځ ته راوړي ، له بل پلوه دا په خپله هم د جهاد په حقانیت کې یو ستر دلیل دی چې یو مسلمان د الله جل جلاله په لار کې په سر و مال جهاد کوي ، د هغو انساني او اسماني اصولو د پرمختګ او عملي کولو لپاره جهاد کوي چې د ده شخصي ګټه په یوه کې هم نشته او نه داسې کوم بل لامل چې مجاهد دې جهاد ته وهڅوي .

کله چې یو مسلمان د جهاد لپاره راپورته کیږي او د جګړې په میدان کې قدم ږدي نو له دې نه مخکې دی یو بل ستر جهاد پیل کوي ، په دغه جګړه کې د ده حریف د ده " د نفس شیطان " وي ، د هغه د هوا وهوس غوښتنې وي ، ښکلې ارزوګانې او خیالونه وي ، شخصي ګټې وي ، د خپل قوم ، خپلوانو او کورنۍ ګټې وي ، لنډه دا چې د ده جګړه او مقابله له هر هغه مفهوم سره وي چې د اسلامي اصولو خلاف وي .

د ده جګړه د ده د نفس له هر هغه احساس او جذبې سره وي چې د الله جل جلاله له بندګۍ سره بدوالي ( تضاد ) لري ، او په نړۍ کې د الهي حکومت د پاڅون ( قیام ) او د طاغوت او اله وو په ورکولو کې خنډونه پیښوي .

## د اسلام له نظره د وطن ساتنې اصلي محرک :

هغه څوک چې اسلامي جهاد يوازې د " اسلامي هيواد " په ساتنه او دفاع پورې اړوند ( مربوط ) ګڼي او وايي چې پرته له دې جهاد جواز نلري ، دغه ناخبره ډله په حقيقت کې د اسلام د ژوند دود له عظمت ، او لوړوالي نه ناخبره دي او غواړي چې هغه بې ارزښته وښيي .

د دوی په نظر د اسلام د ټولنيز ژوند دغه ايماني اصول او کړنلاره دومره اهميت او ارزښت نلري ، لکه څومره يې چې " وطن " لري ، د هيواد د مسئلې او داسې نورو عواملو په باره کې د اسلام نظر هغه ډول نه دی لکه څنګه يې چې دا ښاغلي وړاندې کوي .

د دوی دا نظر د اوسنې پيړۍ سوغات دی ، دغه نظر د اسلامي شعور او اسلامي ښوونې او روزنې لپاره بالکل نا اشنا او بيګانه نظر دی ، د اسلامي تعليماتو له مخې د جهاد د کولو په برخه کې اصلي اعتبار د اسلامي ګروهې ساتنه ده ، يا د هغه ټولنيز ژوند دود ساتنه ده چې د دغې ګروهې عملي تفسير يې وړاندې کوي او پر همدې بنسټ ولاړه ده ، يا د هغې ټولنې ساتنه ده چې هلته د ژوند چارې د همدې قانون " دوی " له مخې رواني وي .

هيواد په خپل ذات کې د اسلامي نظريې پر اساس کوم خاص ارزښت نلري ، د اسلامي تصوراتو پر اساس که " وطن " ته کوم شی شرف او عظمت وربښلی شي او هغه با ارزښته کولای شي ، هغه يوازې دا خبره ده چې هلته د الهي حکومت بيرغ رپيږي او د الله جل جلاله راليږل شوی نظام هلته نافذوي ، دغه ډول سيمه چې د نړۍ په هر ګوټ کې وي د ټولو مسلمانانو هيواد دار الاسلام دی .

تر دې وروسته " وطن " د اسلامي ګروهې لپاره کلا او د اسلامي ژوند دود جلوه ګاه ، د اسلام او مسلمانانو کور " دار الاسلام " دی په پای کې د انسان د ريښتوني او بشپړې ازادۍ د تحريک او نهضت مرکز دی ، بې له شکه له " دار الاسلام " نه دفاع په خپله له اسلامي ګروهې نه دفاع ده .

د اسلامي نظام ژوند دود او د هغې له نماینده ټولنې نه دفاع ده ، یو دفاع د جهاد اصلي او وروستۍ موخه ( هدف ) نه ده ، او نه د " د دار الاسلام " ساتنه د اسلامي جهاد د نهضت اصل هدف دی ، په حقیقت کې د دار الاسلام ساتنه د الهي حکومت د قیام او پاځون یوه ذریعه ده ، بله خبره دا ده چې له دار الاسلام نه یو داسې مرکز جوړ شي چې له هغه نه د اسلام ځلنده وړانګې د نړۍ ګوټ ګوټ روښانه کړي او د انسان د ازادۍ اعلان د نړۍ پر مخ د هر بشر غوږونو ته ورسیږي ، دا خبره مونږ د مخه هم کړې ده چې د اسلام موضوع " انسان " دی نو له دې امله د اسلام د کار ډګر د ټولې نړۍ مخ دی یا په بله وینا هر چیرته چې انسانان اوسیږي .

## جهاد د اسلام فطري اړتیا ده

لکه څنګه مو چې مخکې وویل په نړۍ کې د اسلامي حکومت د پاځون او قیام په لار کې ډیر مادي قدرتونه خنډ کیږي ، سیاسي قدرت ، ټولنیز نظام ، د خلکو کلتور ، لنډه دا چې ټول انساني ماحول په دغه لار کې خنډونه پیښوي ، اسلام د دغو ټولو خنډونو د لرې کولو لپاره دیته اړ دی چې مبارزه او جهاد وکړي .

تر هغې چې د اسلام او انسانانو ترمینځ کوم خنډ پاتې نشي او اسلام وکړلی شي چې په ازاده فضا کې د انسان روح او عقل ته خپل دعوت وړاندې کړي ، انسان چې د نورو له مرئیتوب نه خلاص وي ، نو کولای شي چې کومه خبره او نظریه یې خوښه وي ، په خپله خوښه یې د منلو او نه منلو پریکړه وکړي .

د اسلام پر جهاد چې مستشرقینو کومې ناروا حملې پیل کړیدي هغه باید مونږ ونه ویروي او نه مو تیر باسي ، دا خبره هم باید زمونږ د بې صبرۍ او کمزورۍ سبب نشي چې د وخت او حالاتو سمندر زمونږ پر خلاف بهیږي او د دنیا ستر ځواکونه ( قدرتونه ) هم زمونږ پر خلاف دي .

د مبارزې په دغه ډګر کې باید زمونږ پښې ونه ښویږي ، باید په پوره متانت د خپل ثبات بیړۍ د حالاتو په دغه توپاني سمندر کې د ارمانونو ساحل ته ورسوو ، دا ټولې خبرې باید داسې نه وي چې مونږ دومره متاثر

کړي چې د اسلامي جهاد د جواز عوامل د دغه دين له حقيقت او فطرت نه بهر ولټوو ، او په دې هڅه کې شو چې جهاد يو دفاعي ضرورت او د وخت او حالاتو غوښتنه ده .

د جهاد مشال روښ دی ، او لا پسې روښ به وي ، که د دفاعي اړتياو ، د وخت او حالاتو غوښتنه وي او که نه ، که مونږ د اسلامي تاريخ په پوړيو کې د جهاد په فصل له پيله تر پايه نظر وکړو نو مونږ ته به د اسلامي جهاد د اصلي محرکاتو او فطري غوښتنو پته ولګيږي چې د اسلام په طبيعت کې پټ دي .

مونږ بايد هغه له نظره ونه غورځوو ، جهاد ته اړتيا او ضرورت د اسلام په هغه نړيوال اعلان کې نغښتی دی چې د بشريت د ازادۍ لپاره دی ، دا اړتيا د اسلام په هغه ټولنيز قانون کې هم پټه ده چې د خلکو د هوسا ژوند متضمن دی ، نو له دې امله به دا خبره سمه نه وي چې مونږ د اسلامي جهاد د اصلي محرکاتو او دفاعي ضرورياتو ترمينځ او د وخت او زمان مصلحت خوښوونکو نظريو ترمينځ توپير ونکړو او دا درې واړه سره ګډ کړو .

په دې کې هيڅ شک نشته چې دغه دين بايد له بهرنيو يرغلګرو نه د خپلې دفاع او ساتنې لپاره هر ډول چمتو والی ولري ، ځکه چې که دين دفاعي قدرت ونلري او محض په دې بڼه وي چې دا د الله جل جلاله د نړيوال ربوبيت اعلان دی ، او د انسان له بندګۍ نه د انسان د آزادۍ اعلان او دعوت دی ، او بيا يې د يوه منظم نهضت په بڼه تبارز کول چې له ټولو جاهلي قيادتونو نه باغي وي او بالکل د يوې نوې رهبرۍ او قيادت تابع وي ، او د يوې داسې بې سارې ټولنې د جوړولو مدعي وي .

چې په هغې کې د انسان حاکميت ځکه نه منل کيږي چې حاکميت يوازې د يوه الله جل جلاله حق دی ، نو په دغه صورت کې به په دغه بڼه د دين معرفي کول د دې خبرې لپاره کافي وي چې د شا وخوا ټولې جاهلي ټولنې او پاټکي ( طبقات ) چې د انسان د بندګۍ پر بنسټ ولاړ دي .

د خپل وجود د پايښت او بقا لپاره متې راونغاړي ، او د هغه د له منځه وړلو لپاره راپورته شي ، نو ښکاره خبره ده چې په داسې صورت کې به

اسلامي ټولنه هم د خپلې دفاع لپاره څه نا څه انتظام کوي ، د دغه ډول حالت راتلل ضروري دي ، په حقیقت کې له کوم وخت راهیسی چې اسلام ظهور کړیدی دغه ډول حالت هم لازما ورسره پیدا شویدی .

د دغه کشمکش او کړکیچ د خوښولو او یا نه خوښولو پوښتنه اسلام ته نه راجع کیږي ، ځکه چې دغه ډول کړکیچونه په زوره په اسلام ورتپل کیږي ، دا هغه طبیعي کشمکش او کړکیچ دی چې د دوو داسې نظامونو ترمینځ روان وي چې تر زیاتې مودې پورې د خپلې منځې پایښت پر بنسټونو سره یو ځای نشي اوسیدلای ، دا هغه حقیقت دی چې د شک مجال په کې نشته او د همدغه حقیقت له مخې د اسلام لپاره خپله ساتنه او دفاع حیاتي ارزښت پیدا کړي ، چې په پای کې د اسلام لپاره د دغې تپل " تحمیل " شوي دفاعي جګړې له کولو نه پرته بله چاره نه پاتې کیږي .

## اسلام د جاهلیت په وړاندې جګړه نشي بندولی

خو پر پورتني څرګند واقعیت سربیره باید مونږ یوه بل ستر حقیقت ته هم ځیر شو چې له لومړني واقعیت نه ډیر مهم او روښانه دی ، د اسلام د فطرت یوه کوټلې پریکړه ده چې بشریت د غیر الله د بندګۍ له کندې نه راوباسي او په دغه برخه کې یې له لومړي ورځې نه خپلې هڅې پیل کړیدي ، نو له دې امله د اسلامي اصولو لپاره د جغرافیایي او نژادي بریدونو ټاکل یوه ناممکنه خبره ده .

دا له اسلامي فطرت سره بالکل متضاده خبره ده ، چې له لویدیځ نه تر ختیځ پورې خواره واره انسانان دې د شر او فساد په خوسا ډنډونو کې غوپې وهي او د دنیاوي خداي ګوټو د نهنګ خولې ته دې برابر وي ، اسلام دې دا هر څه په سترګو ویني او بیا دې کرار د عافیت په کونج کې کیني .

د اسلام پر مخالفینو یو داسې وخت راتلای شي چې د هغوی لپاره د وخت او زمان مصلحت دا وي چې د اسلام پر خلاف به هیڅ ډول ظالمانه او ناروا عمل نه کوي ، په دې شرط چې اسلام دوی ته د دې خبرې اجازه ورکړي چې دوی د خپل هیواد په پولو او بریدونو کې دننه په خپله غیر

اسلامي ګروهه ټينګ پاتې شي ، اسلام دې دوى په خپل حال پرېږدي او د خپل نړيوال ازادى ښوونكې دعوت منلو ته يې بايد اړ نكړي .

خو اسلام له هغوى سره په هيڅ ډول د" اور بند " دريغ نشي غوره كولى ، مګر په يوه صورت او هغه دا چې هغوى د اسلام د اقتدار په مخكې د اطاعت سرونه ټيټ كړي او د جزيې وركول ومني ، ځكه دا خپله د دې مسئلې ضمانت كوي چې هغوى د اسلامي دعوت لپاره لار پرانيستې پرېښې ده ، او په دې لاره كې د كوم سياسي قدرت په زور ممانعت نشي پيښولى .

د اسلام همدغه فطرت دې مسلمانان د الله جل جلاله د ربوبيت د اعلان او د ټولې نړۍ انسانانو ته د ازادى د پيغام " چې د خپل همنوع له بندګى او عبوديت نه به خلاص وي" له امله مجبور دي چې په هيڅ صورت له جاهليت سره سوله ونكړي .

د اسلام د هغه پوړتنى تصور او دغه تصور ( چې په جغرافيايى او نژادى بريدونو كې به را ايسار وي ، تر هغې چې كوم بهرنى تيرى كوونكې قدرت اسلام ته خطره پيښه كړې نه وي ، اسلام د هيڅ ډول اقدام اجازه نلري ) ترمينځ توپير ځرګند دى .

په لومړي حالت كې اسلام يو ژوندى متحرك او ازادى ښوونكې قدرت دى ، په داسې حال كې چې په دويم حالت كې د ټولو داخلي او فطري محركاتو له عمل نه له يوې مخې بې برخې دى او د نورو عادي انساني ايډيالوژيو په څير يوه ايډيالوژي ده ، چې د اسلام له آزادى ښوونكې فطرت او مزاج سره هيڅ اړيكې نه لګوي .

د اسلام د پرمختګ او تحريك خوښونې د جواز د عواملو او اسبابو د پوهيدلو لپاره په واضحه توګه د دې خبرې ياد ساتل ضروري دي چې اسلام د ژوندانه خدايي نظام دى ، دا د كوم انسان د فكر محصول نه دى او نه د كوم انساني ټولې له خوا جوړ شوى مسلك دى .

نه د كوم مخصوص انساني نژاد او نسل د ژوند دود او دستور دى ، د اسلام د جهادي نهضت د بهرنيو اسبابو او عواملو لټولو ضرورت يوازې هغه وخت پيښېږي چې زمونږ له سترګو نه دغه ستر حقيقت پټ پاتې شي او

مونږ د دین اصلي روح چې د الله تعالى د حکومت په قیام او پاڅون سره د ټولو مصنوعي الله ګوټو د حکومت کمبله ټوله شي ، له یاده وباسو ، دا نا ممکنه خبره ده چې انسان دغه ډول مهم او فیصله کوونکې حقیقت تل په خپل ذهن کې ژوندي هم وساتي او بیا دي د اسلامي جهاد د جواز لپاره د بهرنیو اسبابو او عواملو په لټه کې سرګردانه او لالهانده هم واوسي .

## د اسلام په هکله دوه تصوره او د هغو توپیر :

د اسلام د دغو دواړو تصوراتو په مینځ چې کوم توپیر دی هغه په سمه توګه سړی ته د مزل په لومړي پړاو کې ښه نه څرګندیږي ، یو تصور خو دا دی چې اسلام د جاهلیت پر ضد په جبري توګه جګړې کولو ته اړ کیږي ، ځکه دا د اسلام د وجود فطري غوښتنه ده ، چې جاهلي ټولنې دي پر هغه یرغل وکړي او اسلام به له ناچارۍ نه له ځان نه دفاع کولو ته اړ شي .

دویم تصور دا دی چې اسلام به فطرتا د خپل ذات او اصل د غوښتنې پر اساس وړاندې تګ وکړي او په پای کې به هغه جګړې په تاوده میدان کې ور داخل شي .

د میتود د اختلاف په لحاظ په پیل کې سړي ته د دواړو تصوراتو توپیر په اسانه توګه نشي څرګندیدای ، ځکه چې په دواړو حالتونو کې اسلام خامخا د جګړې میدان ته ورتلونکې دی ، خو منزل ته تر رسیدو نه وروسته سړي ته دا څرګندیږي چې د دغو دواړو تصوراتو ترمینځ د ځمکې او اسمان هومره توپیر موجود دی ، د اسلام په هکله د دواړو تصوراتو د انګیرنو او ننګیرنو ( احساسات وخیالات ) ترمینځ یو ستر بنیادي خو نازک غوندې توپیر موجود دی .

په هغه تصور کې چې اسلام د ژوند یو خدایي نظام دی او په دغه تصور کې چې اسلام یو سیمه ایز نظام دی زښت زیات توپیر موجود دی ، د لومړي تصور له مخې اسـلام د دې لپاره نړۍ ته راغلی دی چې د الله جل جلاله پر ځمکه د الله جل جلاله د حکومت د قیام او پاڅون اعلان وکړي .

ټولو انسانانو ته د یوه الله جل جلاله د بندګۍ په لور بلنه ورکړي او خپل اعلان او دعوت ته د عمل جامه ور واغوندي ، بیا یوه داسې ټولنه جوړه

کړی چې په هغی کې د انسان له مرئیتوب او بندګی نه ازاد وی او د الله جل جلاله پر بندګی سره راټول وی ، پر دوی باندی یوازی الهی شریعت چې د ستر او بی مثاله ځواک او قدرت نمایندګی کوی حاکم وي .

یوازی دغه ډول اسلام دا حق لری چې هغه ټول موانع او خنډونه له خپلی لاری لری کړی چې د ده په لار کې پراته دی ، ترڅو په یوه ازاده فضا کې د حکومتونو د سیاسی قدرتونو او انسانانو د خپل فکر جوړو کړو ټولنو د قوانینو له ویری نه پرته د خلکو عقل او وجدان ته اسلامي بلنه ورکړي .

د دویم تصور له مخی اسلام محض یو سیمه ئیز نظام دی او یوازی دومره حق لری چې هر کله که کوم قدرت د ده پر سیمه ئیزو بریدونو یرغل وکړ نو هغه به خپله ساتنه کوي .

اوس دا دواړه حالته ستاسو په مخکې دی ، په دی کې هیڅ شک نشته چې اسلام په دواړه حالتونو کې جهاد کوی ، خو په دواړو حالتونو کې د جهاد پاروونکې او هڅوونکې عوامل ، د جهاد موخی ( مقاصد ) او د جهاد له نتایجو نه چې دوه عملی تصویرونه جوړیږی هغه له یوه بل نه زیات توپیر لری ، هم د فکر او نظر له مخی او هم د پلان او غوره والی له مخی .

بی له شکه اسلام دا حق لری چې له هماغه لومړی پړاوونه په وړاندی تګ پیل وکړی ، اسلام د کوم ځانګړی ټبر او یا ټاټوبی میراث نه دی ، د الله جل جلاله دین دی ، او د ټولی نړۍ لپاره دی ، هغه دا حق لری چې هغه ټول خنډونه له خپلی مخی لری کړی ، چې د روایاتو او دودونو په بڼه د اسلام په لار کې پراته دی .

د انسان د انتخاب او ازادی پښنو ته یی زولنی ور اچولی دی ، اسلام پر اشخاصو حمله نه کوی او نه پر هغوی باندی د سوک او څپیړی په زور خپله ګروهه ورتپی ( تحمیلوی ) ، اسلام یوازی پر حالاتو او نظریاتو تیری کوی چې انسانان د هغوی له بدو او زهرجنو تاثیراتو نه چې د هغوی فطرت یی مسموم کړیدی او د هغوی انسانی ازادی یی تر پښو لاندی کړیده خوندی کړی .

اسلام هیڅکله هم له خپل دغه حق نه ، چې انسانان دی د بندګانو له باداری نه خلاص کړی او یوازی د یوه الله جل جلاله د بندګی په لاره یی

روان کړي نشي تیریدلای ، د دې لپاره چې هغوی د الله جل جلاله د ربوبیت او انسانانو د ازادۍ کامل نهضت د برې تر وروستي پړاو پورې ورسوي .

د اسلامي تصور او عملي تاکتیک له مخې د الله جل جلاله بندګي په خپل پوره برم او شوکت سره یوازې د اسلامي نظام تر سیوري لاندې د عمل جامه اغوستلی شي ، یوازې اسلام دغه غوره ځانګړتیا لري چې د ټولو انسانانو لپاره به پکې حاکم وي .

که محکوم سپین وي که تور ، شتمن وي که نیسمن ، د لیرې ځای وي او که د نژدې یوازې الله جل جلاله قانون جوړوونکې وي او دغه قانون د ټولو لپاره برابر وي ، ټول انسانان په برابره توګه د هغې په مقابل کې د اطاعت او فرمانبرداری لاسونه پر سینه کیږدي .

د ټولنیز ژوندانه نور نظامونه او قوانین ( چې په هغو کې انسانان د ځان په ځیر انسانانو بندګي او مرئیتوب کوي ، د ځان په ځیر انسانانو د جوړ شوي شریعت اطاعت به کوي ) دغه ځانګړتیا نلري ، شریعت جوړول د الوهیت له خصوصیاتو او صفاتو نه یو صفت دي ، هر انسان چې دا ادعا لري زه انسانانو ته د وخت له غوښتنو سره سم د قانون جوړولو اختیار لرم .

نو په حقیقت کې ده د الوهیت دعوی کړیده ، که ده په ژبه د الوهیت دعوه کړي وي او که نه ، هغه څوک چې د دغه مدعي دا حق یعنې په ازاده توګه د قانون جوړولو حق ومنی نو په حقیقت کې هغه د مدعي الوهیت هم منلی دی ، دا مهمه نه ده چې دی هغه ته د الوهیت نوم ورکوي او که کوم بل نوم او اصطلاح ورته غوره کوي ، اسلام یوازې د عقیدې او فکر نوم نه دی او نه په دغو دواړو کلمو کې خلاصه شویدی ، چې خلکو ته دی خپل پیغام یوازې د وعظ او نصیحت په ذریعه ورسوي او په همدې دی بسنه وکړي .

اسلام د ژوند یو دود دی ، چې د یوه منظم تحریک او نهضت په بڼه کې د انسان د ازادۍ لپاره عملي اقدام کوي ، د غیر اسلامي ټولنو د ژوندانه قوانین هغه ته دا فرصت په لاس نه ورکوي چې خپل پلویان او مینه وال د خپلې کړنلارې تر اصولو لاندې منظم کړي .

نو له دی امله دا د اسلام وظیفه ده چې هغه ډول نظامونه چې د انسانانو د بشپړی ازادی په لاره کې اغزی کړی ل‍ه مینځه یوسی ، یوازی په دغه صورت کې الهی دین په پوره توګه حکومت کولی شی ، بیا به نه د کوم انسان طاغوتی قدرتی پاتی وی نه به د بل انسان د بندګی او مرئیتوب سوال په مینځ کې وی ، لکه څنګه چې د نورو نظامونو همدغه حال دی چې د قدرت یوه مانی یی د انسان د باداری او بله د غلامی پر بنسټ ولاړه ده .

په اسلام کې د جهاد په هکله د لویدیځ اند دود ( طرز تفکر ) ځای نشته زمونږ هغه معاصر مسلمان څېړونکې او لیکوالان چې د اوسنیو کړکیچونو حالاتو او مستشرقینو له مکارانه انتقادونو نه یی په روحی او ذهنی توګه ماتی منلی ده ، هغوی د اسلام د پورتنی حقیقت د اظهار او اثبات لپاره چمتو نه دي .

دغو مستشرقینو چې نړۍ والو ته د اسلام کوم تصویر وړاندی کړیدی ، هغه داسی دی چې اسلام د یوه وینی تویوونکې تحریک په توګه توره په لاس پر نورو انسانانو خپله ګروهه او نظریات ورتپی ( تحمیلوی ) ، په حقیقت کې دغه بد مرغه مستشرقین په دی ښه پوهیږی چې اسلام له دغه ډول تصور نه بالکل پاک دی ، خو هغوی له دغه ډول چالاکې او مکاری نه څکه کار اخلی چې د اسلامي جهاد اصلی عوامل او محرکات مسخ کړی ، خو زمونږ مسلمان محققین همدغه ماتی خوړلی محققین په خپل زعم د اسلام له تندی نه د دغه تور ، ( داغ ) د مینځلو لپاره متی رانغاړی او د داسی دلایلو د پیدا کولو په هڅه کې دی چې دا ثابته کړی چې له اسلامي جهاد نه مقصد یوازی " دفاعی جګړه " ده .

حال دا دی چې دغه ډول خلک د اسلام د فطرت او د هغه له اصل مزاج نه بالکل نا خبره دی ، هغوی خواران په دی هم نه پوهیږی چې اسلام یو نړیوال او انسانی مذهب دا حق لری چې د انسانانو د ازادی لپاره په خپله هر ډول اقدام وکړی ، د اوسنی پیړی د دغو ویریدلو او ماتی خوړلو محققینو ، په ذهن د دین هغه تصور غالب ښکاری چې اصولا د مذهب په برخه کې د لویدیځ تصور دی .

د لویدیځ اند دود له مخې دین یوازې د یوې عقیدې نوم دی چې له انساني ضمیر سره ارتباط لري او د ورځینۍ ژوند له مسایلو سره هیڅ اړیکې نه لري ، همدغه لامل دی چې کله که د دین په نامه کومه جګړه پیل شي نو د لویدیځوالو " غربیانو " په نظر دا مطلب لري چې یوه ډله خلک پر نورو باندې خپله ګروهه د توري او ټوپک په زور مني .

خو په اسلام کې د دین په هکله دغه ډول تصور بالکل ځای نلري ، پردې سربیره د جهاد بیرغ هیڅکله د دغه تصور له مخې نه دی راپورته شوی ، اسلام د انساني ژوند ، یو خدایي نظام دی ، چې یوازې د الله جل جلاله بندګي ته غاړه ږدي ، د اسلام په نظر د الوهیت سمه نمونه د الله جل جلاله حاکمیت دی .

په دې توګه اسلام د انسان د ورځینۍ ژوند له سترو مسایلو نه نیولې تر ډیرو کوچنیو مسئلو پورې هم د یوه منظم تنظیم په توګه اداره کوي ، د اسلام جهادي نظام په حقیقت کې د هغه کوشش او هڅې دویم نوم دی چې د خدایي نظام ټینګولو او برې ته د رسولو لپاره کیږي .

پاتې شوه د عقیدې مسئله ، دا خو څرګنده خبره ده چې هغه د رایو او نظر په ازادۍ پورې اړه لري ، اسلام غواړي چې د انسان د رائې او نظر ټول متاثروونکې عوامل له منځه لرې کړي او د ژوند پر هر اړخ اسلامي نظام حکومت وکړي ، فرد د هر ډول عقیدې د منلو او نه منلو ازادي او اختیار ولري ، په خپله خوښه چې کومه عقیده غواړي هغه غوره کړلی شي .

اوس به دا څرګنده شوي وي چې د دین دغه نظریه له هغې نظریې سره په اساسي مسایلو او تفصیلاتو کې له سره تر پایه توپیر لري چې غربیانو وړاندې کړیده .

که هر چیرته دغه ډول یوه اسلامي ټولنه مینځ ته راشي چې د الهي قوانینو او اصولو ژوندې او عملي نمونه وي نو د الله جل جلاله له خوا نه هغوی ته دا حق ورکړ شوی دی چې د پرمختګ لپاره ئې اقدام وکړي ، د چارو واګې بې په لاس کې واخلي او د عالم په جریده د الهي ژوند دود انځور نقش کړي .

البته د عقيدې او ايمان مسئله هغوی د انسان وجدان او د نظر ازادۍ ته پرېږدي ، الله جل جلاله چې تر يوه ټاکلي وخت پورې مسلمانان له جهاد نه ايسار کړي وو ، هغه يوازې يو مصلحت و ، د کومو اصولو او ضوابطو غوښتنه نه وه ، د نهضت د يوې خاصې مرحلې د ضرورت او اړتيا مسئله وه .

نه د اسلام بنيادي عقيده او نظريه ، د دغه څرګند اصل په نظر کې نيولو سره مونږ ته په روښانه توګه د قرآن د بې شميره آيتونو د تفسير په پوهه او درک کې اسانتيا پيښيږي ، چې د اسلامي نهضت په بدليدونکو مراحلو پورې اړه لري .

د دغو مبارکو ايتونو د لوستلو په وخت کې بايد سرې ديته په پوره توګه ځير شي چې د هغوی يو مفهوم هغه دی چې له هغې مرحلې سره سمون وخوري ، چې پکې نازل شويدي ، دويم مفهوم ئې عمومي مفهوم دی چې ارتباط او اړيکې يې د اسلامي نهضت له نه بدليدونکو ، ابدي اصولو او ژوند دود سره دي ، مونږ بايد د څيړنې په وخت کې دغه دوه حقيقتونه هيڅکله هم سره ګډ نکړو .

## پنځم فصل

## لا اله الا الله : د اسلام د ژوند دوی ( قانون )

### د اسلامي ژوند دوی ( قانون زندګی ) بنسټ

" لا اله الا الله " ( له الله جل جلاله نه پرته بل معبود نشته ) د اسلامي ګروهی لومړی رکن یعنی د شهادت د کلمی لومړی ټوک ( جز ) دی ، چې پکې ویل شویدی ، یوازی یو الله جل جلاله د بندګی او ستاینی وړ دی ، " محمد رسول الله " د هغی دویم توک دی ، او دا ښوونه پکې شویده چې د بندګی اصول او څرنګوالی باید یوازی له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه زده شی ، د مومن او مسلمان زړه هغه زړه دی چې د دغی کلمی دواړو مفاهیمو په پوره توګه پکې د تل لپاره ځای نیولی وی .

ځکه چې د دغو دواړو شهادتونو له ادا کولو نه وروسته چې د ایمان ځومره ارکان او اصول موجود دی ، هغه په حقیقت کې د دغو شهادتونو له غوښتنو نه سرچینه اخلی د مثال په توګه ایمان پر ملایکو د الله جل جلاله پر کتابونو ، د الله جل جلاله پر رسولانو ، د آخرت پر ورځ ، پر تقدیر او خیر و شر باندی او دغه راز په لمانځه ، زکات او حج او بیا د ټاکل شوو بریدونو ، لکه حلال وحرام ، د راکړې ورکړې قوانین ، اسلامي لارښوونی او تعلیمات د دی ټولو بنسټ او اساس ذ الله جل جلاله پر بندګی ولاړ دی او د دی ټولو منبع هغه علم چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له خپل رب نه تر مونږ پوری را رسولی دی .

اسـلامي ټولـنه هغـه ټولـنه ده چې د شـهادت د کلمـی او د هغـی د ټولـو غوښتـنو عمـلی تفسـیر وی ، کـه چـیری دغـی کلمـه د غوښتـنو وړانګـی د ټولنی د عملی ژوند په تیاره کې رڼا را نه ولی نو هغه ټولنه به اسلامي ټولنه نه وی ، یعنی دا چې د شهادت کلمه [ لا الـه الا الله محمد رسول الله ] د یوه داسی نظام بنسټ دی ، چې پر هغه باندی د مسلمان امت د ژوند مانی له ټولو سترو او کوچنیو اړتیاوو سره ورانیدلی شی .

د دغه بنسټ له اېښودلو نه مخکې د ژوندانه د خدايې ، د مانې د ودانولو پوښتنه له سره را پيدا کيداى نشي ، په همدى که چيرى له دغه بنسټ نه پرته پر کوم بل بنسټ د ژوندانه اصولو مانۍ ودانه شي يا د دغه بنسټ ترڅنګ کوم بل بنسټ بې شميره نور بنسټونه هم يو ځاى شي او پر هغې د بشريت ژوندانه د مانۍ د ودانولو هڅه وشي ، نو د هغې په نتيجه کې به منځ ته راتلونکې ټولنې ته په هيڅ ډول هم د اسلامي اصولو نماينده ټولنه ونه شوه ويلى ، الله تعالى فرمايي :

إِنْ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ أَمَرَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ ذَلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ [د يوسف سورت ۴۰ آيت ]

( د نړۍ واکمن او حکمران يوازې الله جل جلاله دى او تاسو بندګانو ته يې امر کړى دي چې له هغه پاک ذات نه پرته به د بل چا ستاينه او عبادت نه کوئ ، د هغه اصول رښتوني او هميشني دي ، خو زياتره خلک پرې نه پوهيږي )

مَنْ يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ [د النساء سورت ۸۰ آيت ]

( چا چې د پيغمبر صلى الله عليه وسلم اطاعت او پيروى وکړه هغه په حقيقت کې د الله جل جلاله پيروى او اطاعت کړيدى ) .

دغه لنډ او موجز خو پريکنده ( فيصله کوونکې ) فرمان مونږ ته د دغه دين د اساسي اصولو او بنسټونو په برخه کې چې د عملي ژوند له مسايلو سره يې لرى د يوى سکوتې ( قاطع ) پريکړې په لور راهنماى کوى لومړى د اسلامي ټولنې په فطرت پېژندنه کې له مونږ سره مرسته کوى .

دويم دا چې د اسلامي ټولنې د ودانولو د لارو چارو په برخه کې له مونږ سره مرسته کولى شي .

دريم : مونږ ته دا راښيي چې اسلام له جاهلي ټولنو سره د راشى درشې لپاره کومه لاره غوره ګڼلې ده .

څلورم : له مونږ سره د اسلام د کړنلارى په ټاکلو کې چې د انساني ژوند د عملي اړخونو د بدلون لپاره څه اصول لرى مرسته کوى .

دغـه اصـول هغـه سـتر او بـا ارزښـتـه اصـول دي چـې نـه يـوازې دا چـې د پخوانی اسلامي ټولنی په جوړښت کې يې خپل ارزښت ښودلی دی لکه په حال او اينده کې هم به ډير مهم او اغيزمن ګڼل کيږي .

## د اسلامي ټولنی غوره ځانګړتيا

د اسلامي ټولنی لومړنی او غوره ځانګړتيا دا ده ، چې د ژوندانه په ټولو چارو کې د دغـی ټولـنـی مـانـی د الله جـل جلالـه د بـنـدګـی پـر بنسټ ودانـه شـويده ، د شـهادت کلمـه " لا الـه الا الله محمـد رسـول الله " د همدغـه معبوديت څرګندونه کوی او د هغی د څرنګوالی بريدونه ټاکې .

د انسـان ګروهه ( عقيده ) هم د همدغی بندګی او عبوديت مظهر وی ، په عباداتو او دينی شعايرو کې هم د همدغـی بـندګـی اثـار ځليږي ، د ټولـنـی اصول او قوانين د همدغه عبوديت عملی او ژوندی تصوير وی ، هغه څوک چې د حق سبحانه وتعالی په وحدانيت باور نلری ، نو هغه په حقيقت کې د يوه الله جل جلاله بندګی نه ده غوره کړی .

وَقَالَ اللَّهُ لَا تَتَّخِذُوا إِلَهَيْنِ اثْنَيْنِ إِنَّمَا هُوَ إِلَهٌ وَاحِدٌ فَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ()وَلَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَلَهُ الدِّينُ وَاصِبًا أَفَغَيْرَ اللَّهِ تَتَّقُونَ [د النحل سورت ۵۱ - ۵۲ آيتونه ]

( الله جل جلاله فرمايی چې په دوه خدايانو مه معتقد کيږی ، ځکه چې الله جل جلاله يو دی ، نو ځکه يوازی له ما نه وويريږی ، هر څه چې په ځمکه او اسمان کې دی هغه ټول د هغه دی ، تل پاتی او هميشنی لازم شوی عبادت ، يوازی د هغه لپاره دی ، نو ايا تاسو له الله تعالی نه پرته له بل چا نه ويريږی ) .

نو په دی توګه هغه څوک چې له الله جل جلاله نه پرته د بل ذات بندګی غوره کوی او يا له الله جل جلاله سره په عبادت کې بل څوک شريکوی هغه د يوه الله جل جلاله بنده نشی کيدلای .

قُـلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ() لَا شَرِيكَ لَهُ وَبِذَلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا أَوَّلُ الْمُسْلِمِينَ [ د النحل سورت ۱۶۲ - ۱۶۳ آيتونه ]

( ورته ) ووایه چې زما لمونځ ، روژه ، طاعت و عبادت او زما ټول اعمال ، زما ژوند او زما مرګ یوازې او یوازې د الله جل جلاله لپاره دی ، چې د کائناتو خالق دی ، او هیڅ شریک نه لري او هغه ماته په دې حکم کړی دی او زه لومړنی مسلمان یم ، چې د الله جل جلاله امر ته مې غاړه اېښې ده ) .

په همدې توګه څوک چې هغه قوانین پرېږدي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ذریعه الله جل جلاله مونږ ته رالیږلې دي او د کومې بلې منبع قوانینو ته غاړه کیږدي ، هغه هم د الله جل جلاله له خالصې بندګۍ نه بې برخې کیږي .

أَمْ لَهُمْ شُرَكَاءُ شَرَعُوا لَهُمْ مِنَ الدِّينِ مَا لَمْ يَأْذَنْ بِهِ اللَّهُ [د الشورى سورت ۲۱ آیت ]

( ایا دوی له الله جل جلاله سره داسې شریک پیدا کوي چې هغه د دوی د دین په څېر یو داسې قانون جوړ کړي ، چې الله جل جلاله هیڅکله د هغې اجازه نه ده ورکړې ) .

وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا [الحشر: ۷ ]

( او په هغه څه چې زمونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم تاسو ته فرمان درکړی هغه واخلئ او له هغه څه نه مو چې ایسار کړي ، ایسار شئ )

دا و د اسلامي ټولنې اصلي اصول او قوانین ، په دغه ټولنه کې لکه څنګه چې د خلکو په ګروهه او تصوراتو کې د الله جل جلاله د بندګۍ نور ځلیږي ، په همدې توګه د دوی پر عباداتو او مناسکو باندې هم د الله جل جلاله د سوچه بندګۍ رنګ پریوتی دی ، د دوی په ټولنیز نظام او قوانینو کې هم د الله جل جلاله د بندګۍ ژوندی نمونه لیدل کیږي .

که له دغو ټولو اړخونو نه په یوه اړخ کې هم د الله جل جلاله د بندګۍ رنګ او اثر ورک شو ، نو د هغه سړي ټول اسلام ورسره خور و ور شي ، دا ځکه چې په دې توګه د اسلام لومړی رکن ( د شهادت کلمه ) چې پر هغې د اسلام مانۍ ولاړه ده ، له سره مینځ ته راتلای نشي ، په پورته ډول مونږ عرض وکړ چې د اسلامي ټولنې غوره ځانګړتیا دا ده چې د اوسیدونکو

اعتقادات یې هم د همدغه ډول بندګۍ او عبودیت څرګندونکې وي ، نو دلته دا خبره پر ځای ده چې سړی ووایي اسلامي ایډیالوژي او یا عقیده به څه شی وي ؟

## اسلامي عقیده څه ډول ده

اسلامي " عقیده او ایډیالوژي " څه شی دی ؟ په حقیقت کې دا یوه داسې عقیده او تصور دی ، چې غوټۍ یې د انسان په شعور او ادراک کې هغه وخت غوړیږي چې هغه د اسلام حقایق او رموز نیغ په نیغه د الله جل جلاله د لارښوونې له برکتي چینې ( قرآن ) نه ترلاسه کړي .

کله چې د دغه فکر او عقیدې تصویر په پوره توګه د انسان د ضمیر او ذهن پر لوحه انځور شي ، نو هلته بیا هغه ته د خپل رب د حقیقت په باره کې پوره معرفت او بصیرت لاس ته ورځي .

په هغه کائناتو کې چې انسان ساه وباسي نو د هغې کوچنۍ او واړه ، پټ او ښکاره حقایق بــه هم هغه وخت هغه ته څرګند شي ، چې د هغه ژونــد په برکت دی پــه ژونــدیو انسانانو کې شمیرل کیږي او له هغوی ســره اړونــد ( مربوط ) کیږي ، د هغه پټ او ښکاره حقایق به هم ورتــه ښکاره شي او له دې سره به ورته د ځان په هکله هم پوهه او بصیرت پیدا شي .

یعنې دی به د انسان له اصلیت نه خبر شي ، نو بیا د همدې عقیدوی تصور له مخې له ټولو حقایقو سره د خپل چال چلند د څرنګوالي بریدونه وټاکي ، له خپل پروردګار سره به داسې سلوک غوره کړي چې له هغه سره د ده د بندګۍ او عبودیت وړانګې له ورایه ځلیږي ، له پنځ ( طبیعت ) او د پنځ له قوانینو ، نوامیسو ، ژوندیو مخلوقاتو او انسانانو سره به داسې سلوک غوره کوي ، چې ریښې یې د الهي دین له چینې نه اوبه کیږي ، له هغه تعلیم نه به اخیستل شوي وي ، چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په واسطه انسانانو ته را رسیدلی دی .

په دې توګه هغه بایــد د خپل ټول ژونـد په بهیر کې د الله جل جلاله د بندګۍ او عبودیت اظهـار او څرګندونه وکړي او په همدې توګه د ده د ژوند په ټولو کړو او مصروفیتونو د همدغه پاکیزه اصولو او روش مهر لګیدلی وي .

## د اسلامي ټولنې د جوړېدو لارې

د اسلامي ټولنې د څلور خواوو تر ټاکلو وروسته اوس دا پوښتنه پیدا کېږي ، چې دغه ډول ټولنه څنګه جوړېدې شي ؟ او د جوړېدلو سمه لار یې کومه ده ؟

دغه ډول ټولنه تر هغې مینځ ته نشي راتلای ، چې لومړی یو داسې غوره انساني ټولې ( جمعیت ) مینځ ته رانشي ، چې هغوی دا ومني چې بندګي او عبودیت به خاص د الله جل جلاله لپاره وي او همدا رنګه دغه ټولې دا ومني چې هم به په عمل او هم په عقیده کې له الله جل جلاله نه پرته د بل چا اطاعت او بندګي نه کوي ، او همدا رنګه باید ژمنه ( تعهد ) وکړي ، چې په عباداتو او د ژوند په نورو چارو کې به هم له الله جل جلاله نه پرته د بلې منبع قوانینو او لارښوونو ته د لاسوهنې حق نه ورکوي .

له دغې انساني پریکړې نه وروسته باید دغه خلک له واره د الله جل جلاله د عبودیت او بندګې د اصولو پر بنسټ د خپل ژوند چارې منظمې کړي ، په خپل زړه او ضمیر کې د الله جل جلاله په هکله ساوو او سپیڅلې عقیده او ایمان ور وزي او نور هغه ټول شکمن تصورات او اعتقادات چې د الله جل جلاله له وحدانیت سره منافي دي ، له زړه نه وباسي .

د دغې ټولنې مذهبي دودونه یوازې د الله جل جلاله لپاره وي او له پاتې نورو ټولو سره خپلې اړیکې پرېکړي ، د دغه ډول مثالي او غوره اسلامي ټولنې د ټولو قوانینو ماخذ یوازې د الله جل جلاله ذات وي او په دغو قوانینو کې هغوی د نورو قوانینو ګډول ګناه ګڼي .

دا هغه رویه او سلوک دی چې تر عملي کولو وروسته یې دغه ټولې ته په ریښتوني توګه اسلامي ټولې ویل کېدای شي ، هغه ټولنه چې دغه ټولې مینځ ته راولي ، هغې ته " اسلامي ټولنه " ویل کېدای شي ، هیڅ یوه انساني ټولې ته هم اسلامي ټولې نشو ویلی ترڅو چې د الله جل جلاله په بندګۍ داسې خالصانه اقرار ونکړي لکه څنګه چې مونږ مخکې بیان کړل .

نه مخکې له دینه چې هغوی د عبودیت پر اساس د خپل ژوند نظام ټینګ کړي ، د هغوی جوړې کړې ټولنې ته څوک " اسلامي ټولنه ویلې شي " ، د

دې خبرې دلیل دا دی چې هغه لومړی بنسټ چې د اسلام ودانی پرې ودانیږي او اسلامي ټولنه جوړیږي یعنی " لا اله الا الله محمد رسول الله " د شهادت هغه دوه توکه تحقق نه مومی .

له همدی امله له دینه مخکې چې د اسلام د ټولنیز نظام د جوړښت او عملی کیدو په هکله سوچ وکړو او د هغه نظام پر اساس د یوی اسلامي ټولنی د قیام لپاره لاری چاری ولټوو ، پکار ده چې تر هرڅه لومړی د وګړو زړه او ضمیر د غیر الله د بندګی له ګرد او دوړو نه پاک کړو ، د هغو وګړو زړونه چې د غیر الله د بندګی له دوړو نه پاک شی او ټول سره یو ځای یو ټولی جوړ کړی ، همدغه ټولی به وی چې وګړی به یی د عقیدی او تصوراتو له پلوه ، د عبادت د دودونو ، شریعت او قانون له مخی ، په کامله توګه له الله جل جلاله نه پرته د بل چا له بندګی نه ازاد وی ، نو د اسلامي ټولنی د مانی د بنسټ ډبره ایښودلی شی .

هغه څوک چې په دغه اسلامي ټولنه کې ژوند تیرول غواړی ، هغه پکې اوسیدلی شی او هغه باید هغه عقیده او قانون او عبادت غوره کړی چې د الله تعالی له سوچه بندګی او عبودیت نه پرته پکې د بل څیز ، شک هم موجود نه وی ، یا په بله وینا هغه باید د دغه قولی شهادت یعنی " لا اله الا الله محمد رسول الله " عملی تصویر وی .

دا هغه اصل دی چې د هغی له مخی په نړۍ کې لومړنی اسلامي ټولی جوړ شوی و او لومړی اسلامي ټولنه مینځ ته راغلی وه ، په ګانده ( آینده ) کې یوازی د همدی اصل له مخی د اسلامي ټولی پالنه او روزنه کیدلای شی او د اسلامي ټولنی غوټی ګل کیدای شی .

اسلامي ټولنه په داسی صورت کې مینځ ته راتلای شی چې ټول انسانان له الله جل جلاله نـه پرتـه بله هره هستی که مستقل بالـذات وی او که له الله جل جلاله سره شریکه وی نفی کړی ، یوازی د یوه الله جل جلاله بندګی ته غاړه کیږدی .

له ځان سره دا پریکړه وکړی چې هغوی به د خپل ژوند قانون د الله جل جلاله د بندګی پر اصولو جوړوی ، له دغه ټولی او پریکړی نه به یوه نوی

ټولنه مېنځ ته راشي چې سره له دې چې د جاهلي ټولنې له نس نه به راوتلې وي، خو د خپلې نوې عقيدې، نوي ژوند دوي ( قانون زندګی ) په برکت به د جاهلي وروستي ټولنې لپاره يو چلينج وي، د ژوندانه دغه نوی نظام به د اسلام د لومړي رکن، توحيد او محمدي رسالت لا اله الا الله محمد رسول الله د ازلي نور جلوه ګاه ثابته شي.

دا ممکنه ده چې پخوانۍ جاهلي ټولنه په کلي صورت په نوي اسلامي ټولنه کې وشنل ( تحليل ) شي، او دا هم ممکنه ده چې داسې ونه شي، دا خبره هم له امکانه وتلې ده، چې جاهلي ټولنه له اسلامي ټولنې سره د سولې او روغې هڅه وکړي.

په همدې توګه د اسلامي ټولنې پر خلاف د جاهلي ټولنې عکس العمل ( چا رانګ ) د وسله وال ټکر بڼه هم غوره کولی شي، په دې برخه کې د الهي سنت په دې توګه راغلی دی، چې جاهلي ټولنې تل په اسلامي ټولنې شبخون کړی دی.

کله هغوی د اسلامي لښکر په هغه مخکښ ټولې يرغل کړيدی چې د اسلامي ټولنې د ودانۍ د بنسټ له ايښودلو نه هم اوزګار شوي نه وو، د متفرقو ډلو او ګروپونو په بڼه ويشل شوي وو او کله يې د اسلامي ټولنې له قيام او پاڅون نه وروسته پرې يرغل کړيدی، د حضرت نوح عليه السلام نه واخله ان تر حضرت محمد صلی الله عليه وسلم پورې بې له کومې استثنا د اسلامي دعوت په تاريخ کې همدغه ډول صورت حال مېنځ ته راغلی دی.

دا يو ځرګند او طبيعي حقيقت دی، چې نوې اسلامي ټولنه تر هغه وخته پورې د خپلې ودانۍ، نه کومه پوړۍ ودانولای شي او نه خپل موجوديت په چا منلی شي، تر هغې چې دومره ځواک او قدرت پيدا نکړي چې د هغې پر بنا د جاهلي ټولنې د فشار او يرغل مقابله وکړلی شي.

له قوت نه مقصد يوازې همدا قوت نه دی چې د حملې مخنيوی وکړلی شي، بلکه دا قوت بايد هر اړخيز وي او د ژوند په هره ساحه کې يې اثرات ځرګندوی لکه د عقيدې او تصور قوت، د اخلاقي او روحي روزنې

قوت ، د تنظیم قوت ، او ټولنیز نظام قوت او هغه ټول چې د هغی په مرسته د جاهلی ټولنی هر اړخیزه مقابله کیدای شي .

او که پر هغی باندی بری ونه مومی لږ تر لږه خو یی په مخکې خنډ شی ، او په هیڅ ډول پری نږدی چې د ماتی سره مخامخ شي .

## د جاهلی ټولنی ځانګړتیاوی

راځی چې اوس وګورو د جاهلی ټولنی خصوصیات او حقایق څه دی او اسلام د هغی د مخنیوی لپاره کومه لاره غوره کوی ؟

په لنډه وینا کې د اسلام له نظره له اسلامي ټولنی نه پرته بله هره ټولنه جاهلی ټولنه ده ، که مونږ وغواړو چې سم او منطقی تعریف یی وکړو نو داسی ویلی شو چې : په هره ټولنه کې چې بندګی ، که په عقیده او تصور کې وی ، که په عبادت او قانونی نظام کې ، یوازی د الله تعالی لپاره نه وی ، نو هغی ته جاهلی ټولنه ویل کیدای شی .

د پورتنی تعریف له مخی چې په دنیا کې څومره ټولنی موجودی دی ، هغه ټولې له یوی مخی " جاهلی ټولنی " دی .

کمونیستی ټولنی د دغی لړی " سلسلی " لومړی کړی دی .

لومړی په دی دلیل چې هغوی د الله سبحانه وتعالی د لوړ ذات په متعلق د کفر او الحاد سلوک غوره کړی دی او د الله جل جلاله له وجود نه بالکل منکر دی ، او د دغه الواک ( نظر ) پلویان دی ، چې د کائناتو خالق او علت ماده یا نیچر (Nature) دی ، په خپله انسان او د هغه د تاریخ خالق او محرک د اقتصادي ( وټه ئیزو ) الاتو او وسایلو پیدا کیدل دی .

دویم په دی دلیل چې د ژوند هغه نظام چې په کمونستی ټولنه کې مینځ ته راځی ، په هغی کې بندګی د الله جل جلاله لپاره نشته ، بلکه انسان مجبور دی چې د کمونست ګوند بنده او مریې واوسی ، زمونږ د دغه دلیل اډانه ( پشتوانه ) د کمونیستی ګوندونو موجوده مطلقه قدرت دی ، چې په کمونیستی هیوادونو کې یی د سر په سترګو وینو او نور څوک هم تری انکار نشی کولای .

سربيره پردې د كمونيستي نظام د دغه تصوراتو او قوانينو له مخې چې كومه ټولنه مينځ ته راځي او عملاً يې كوم نتايج ښندلي دي ، هغه هم د يوې جاهلي ټولنې په رنګ لړلې دي .

د مثال په توګه د هغوی د تصوراتو يوه ستره ځانګړتيا دا ده چې وايي د انسان " بنيادي غوښتنې كټ مټ د نورو حيواناتو غوښتنې دي ، يعنې خوراک څښاک ، جامې ، كور اود جنسي غرايزو تسكين .

له نورو حيواناتو سره د انسان برابر ګڼل دا نتيجه لري ، چې د انسان په حيث چې كوم لوړ اخلاقي او عاطفي احساسات په ده كې موجود وي ، هغه ټول تر پښو لاندې كړو ، له هغو ټولو ضروررياتو او غوښتنو نه يې بې برخې كړو چې " انساني روح " ورته اړ دي او له حيواناتو نه پرې د انسان توپير كيږي .

په دغو انساني ضرورياتو او غوښتنو كې لومړی پر الله جل جلاله باندې ايمان ، او د دغه ايمان غوره كولو ازادي او بيا له كومې اړې ، د هغې د اعلان او اظهارولو حق .

په همدې توګه د انسان د فرديت او ځان پيژندنې ازادي او د " زه " د كلمې د اظهار ازادي ، چې د انسان له ډيرو ضروري او اهمو ازاديو نه ده ، دغه ازادي په انسان كې په ډول ډول جولو ( اشكال ) راڅرګنديداى شي ، د شخصي ملكيت په لرلو ، د كار د نوعيت په انتخاب او په هغه كې د خصوصي مهارت په پيدا كولو كې او همدا رنګه د فن ، هنر او علم په وسيله ، د شخصيت په اصلاح او سمون كې هم دغه اضطراب او نا كراري څرګنده وي .

لنډه دا چې كمونيستي نظام د انسان لپاره له هرې هغې ازادۍ نه د بې برخې كولو زيرى او فرمان راوړی دی ، چې په هغې سره د حيوان ، انسان او ماشين ترمينځ توپير كيږي ، ټولې بت پرستې او مشركې ټولنې هم د جاهلي ټولنو په قطار كې راځي .

دغه ډول ټولنې تر اوسه پورې هم په هندوستان ، جاپان ، فلپائن او افريقا كې موجودې دي ، هغه صفت چې دوی د جاهلي ټولنو په قطار كې دروي دا

دي چې : لومړی خو دا ټولنی له الله جل جلاله نه پرته نوری هستی هم د الوهیت په صفت منی او یا له الله جل جلاله سره نوری هستی هم شریکې ګڼی .

دویم دا چې هغوی ډول ډول بتان په مختلفو نومونو جوړ کړیدی ، چې نه یوازی د الوهیت په مرتبه ورته قایل دی ، بلکه عملا د هغوی په مخکې د عبودیت ، بندګی او نیاز مندی دودونه پر ځای کوی ، له پورتنیو دلایلو نه پرته یوازی دغه خبره هم کافی ده چې دوی په جاهلی ټولنو کې شمار شی .

ځکه چې هغه قوانین او شرایع چې په دی ټولنو کې چلیږی ، د هغی منبع الله جل جلاله او د هغه شریعت نه دی ، بلکه نوری هستی دی ، که هغه د پادری ، یا کاهن او جادوګر په بڼه وی او که د قوم مشران وی او که سیکولر اداری وی چې له الهی شریعت نه بی نیازه دی او پخپله قوانین جوړوی ، یا یی د کوم قوم ګوند یا کومی بلی هستی په نامه د حاکمیت اعلی منصب په برخه وی .

په داسی حال کې چې د اعلی حاکمیت یا د مطلق حاکمیت منصب له الله جل جلاله نه پرته بل چا سره نه ښایی ، هغه یوازی په دی توګه مینځ ته راتلای شی ، چې الله جل جلاله د خپلو رسولانو په واسطه خپلو بندګانو ته غوره ګڼلی دی ، د ځمکې پر مخ ټولی یهودی او عیسوی ټولنی هم جاهلی ټولنی دی ، هغوی په خپلو عقایدو کې لاس وهلی دی او هغه یی تحریف کړی دی .

د الله جل جلاله له الوهیت سره یی نور هم شریک کړی دی ، دغه شرک په څو بڼو د هغوی په مذهب کې لیدلای شو ، کله د الله جل جلاله د زوی ولی په بڼه او کله هم د تثلیث په بڼه ، کله یی د الله جل جلاله په برخه کې داسی تصور لرلی دی ، چې د الله جل جلاله له حقیقت سره منافی دی ، کله یی له الله جل جلاله سره د مخلوق ، ارتباطه داسی ښودلی دی ، چې له یوی مخی د حق پر خلاف دی - الله جل جلاله په دی برخه کې فرمایلی دی :

وَقَالَتْ الْيَهُودُ عُزَيْرٌ ابْنُ اللَّهِ وَقَالَتْ النَّصَارَى الْمَسِيحُ ابْنُ اللَّهِ ذَلِكَ قَوْلُهُمْ بِأَفْوَاهِهِمْ يُضَاهِئُونَ قَوْلَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ قَبْلُ قَاتَلَهُمْ اللَّهُ أَنَّى يُؤْفَكُونَ [د توبه سورت ۳۰ آیت]

( يهود وايي چې عزير د الله جل جلاله زوی دی او نصاری وايي چې مسيح د الله جل جلاله زوی دی ، په دغو بې حقيقته او بې سروبو له خبرو چې هغوی يې وايي ځانونه له هغو خلکو سره ورته او نژدې کوي ، چې له دوی نه مخکې کافر شوي وو ، الله جل جلاله دوی تباه او سټ کړل ، چې په الله جل جلاله پوری دروغ تړي او ځانونه غولوي ) .

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ ثَالِثُ ثَلَاثَةٍ وَمَا مِنْ إِلَٰهٍ إِلَّا إِلَٰهٌ وَاحِدٌ وَإِنْ لَمْ يَنْتَهُوا عَمَّا يَقُولُونَ لَيَمَسَّنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ [د مائده سورت ۷۳ آيت ]

( هغه کسان په يقين سره کافر شول چې وې ويل الله جل جلاله د درې کسو دريم دی ، په داسې حال کې چې له يوه الله جل جلاله نه پرته بل هيڅ الله جل جلاله نشته ، او که له هغه څه نه چې دوی يې وايي ايسار نشول نو کافرانو ته به يې سخت دردوونکې عذاب ور ورسيږي )

وَقَالَتِ الْيَهُودُ يَدُ اللَّهِ مَغْلُولَةٌ غُلَّتْ أَيْدِيهِمْ وَلُعِنُوا بِمَا قَالُوا بَلْ يَدَاهُ مَبْسُوطَتَانِ يُنْفِقُ كَيْفَ يَشَاءُ [د مائده سورت ۷۴ آيت ]

( يهودو ، وويل چې د الله جل جلاله لاس تړلی دی ، تړلي دي وی لاسونه د دوی ، او د هغه څه له امله چې دوی ويل د الله جل جلاله په لعنت اخته شول ، د الله جل جلاله د رحمت لاسونه تل خلاص دي ، څه ډول چې وغواړي هغه ډول ببښنه او انفاق کوي )

وَقَالَتِ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَىٰ نَحْنُ أَبْنَاءُ اللَّهِ وَأَحِبَّاؤُهُ قُلْ فَلِمَ يُعَذِّبُكُمْ بِذُنُوبِكُمْ بَلْ أَنْتُمْ بَشَرٌ مِمَّنْ خَلَقَ [د مائده سورت ۱۸ آيت ]

( نصاری او يهودو وويل چې مونږ د الله جل جلاله زامن او دوستان يو ، ورته ووايه چې ولې نو الله جل جلاله تاسو ته ستاسو د ګناه سزا درکوي ، په حقيقت کې تاسو د نورو په څير بنيادمان يې چې الله جل جلاله خلق کړيدي ) .

دغو ټولنو ته له دې امله هم جاهلي ټولنې وايې چې د دوی د عبوديت مراسم او شعاير ټول د ذوی له تحريف شوو ګمراهانه او مشرکانه عقايدو نه

اخيستل شويدی ، او له دی امله هم جاهلی ټولنی دی ، چې د دوی ټول قوانين او شرايع د الله جل جلاله د بندګی پر اصولو ولاړ نه دی .

نه د بی مثله الله جل جلاله حاکميت منی او نه د الله جل جلاله شريعت د اختياراتو يوازينی منبع ګڼی ، هغوی د خپلو جوړو کړو انسانی قوانينو او ادارو له مخی د حاکميت اعلی پر هغه منصب تکيه کړيده ، چې يوازی او يوازی د الله جل جلاله حق دی .

قرآن د خپل نزول په لومړی مرحله کې دغه ډول خلکو ته د مشرک او کافر لقب ورکړيدی ، ځکه چې دغو خلکو د حاکميت حق خپلو احبارو او راهبانو ته ورکړی و ، چې په خپله خوښه به يی شريعت وضع کاوه ، او دغو خلکو به بی له کوم ځنډه مانه .

اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ وَالْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا إِلَهًا وَاحِدًا لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ سُبْحَانَهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ [د توبه سورت ۳۱ آيت ]

( هغوی خپل روحانيون او عابدان د خپل الله جل جلاله په صفت منلی وو او په همدی توګه يی د مريمی زوی مسيح هم منلی و ، په داسی حال کې چې مونږ هغوی ته د يوه الله جل جلاله له نمانځنی او عبادت نه پرته د بل الله جل جلاله د ستايلو امر نه وکړی ، هغه الله جل جلاله چې له هغه نه پرته بل څوک د ستاينی وړ نه دی او پاک دی الله جل جلاله له هغه څه نه چې دوی يی ورسره شريکوی )

دغو خلکو پر احبارو او راهبانو د الوهيت عقيده نلرله او نه به يی د هغوی په مخکې د بندګی مراسم پر ځای کول ، بلکه هغوی يوازی دا خبره منلی وه چې احبار او راهبان د حاکميت حق لری ، له همدی امله هغوی د الله جل جلاله له حکم او فرمان نه ځان بی نيازه ګاڼه .

هر څه به يی چې د شريعت په نامه جوړول ، هغه به خلکو له واره د شريعت او الهی قانون په نامه منل ، هغه وخت قرآن د هغوی د مشرک او کافر په نامه ياد کړی وو ، نو اوس خو د هغوی کفر د لمر نه هم څرګند دی

، دا ځکه نن چې هغوی کومو خلکو ته دغه حق ورکړی دی ، هغه احبار او راهبان هم نه دی ، بلکه د دوی په څیر عادی خلک دی .

په دی برخه کې وروستی خبره دا ده ، چې د اوسنی زمانی " تش په نامه اسلامي ټولنی " هم په حقیقت کې جاهلی ټولنی دی دا پدی نه چې ګنې هغوی له الله جل جلاله نه پرته د کوم بل ذات په الوهیت ایمان لری یا له الله جل جلاله نه پرته د بل چا د بندګی او عبادت مراسم پر ځای کوی ، بلکه جاهلی ټولنی ځکه ورته ویلای شو ، چې د هغوی د ژوندانه قانون او دود د پروردګار د بندګی پر اصولو ولاړ نه دی .

هغوی سره له دی چې له الله جل جلاله نه پرته په بل چا ایمان نلری ، خو د الوهیت خاص صفت او ځانګړتیا یې یعنی حاکمیت یې نورو ته ورکړی دی ، یا په بله وینا نورو ته په دغه حق قایل شویدی ، د ځان په څیر بندګانو حاکمیت یی منلی دی ، چې همدغه حاکمیت د دوی د ژوند د قانون او نورو ، دودونو ، معیارونو او روایاتو ، لنډه دا چې د ټولنیز ژوند اساس او بنسټ یی هم دی ، د حاکمیت د خاوندانو په باره کې الله تعالی فرمایلی دی :

وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنزَلَ اللّهُ فَأُوْلَئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ [ مائده : ۴۴ آیت ]

( او هغه څوک چې د الله جل جلاله د نازل کړی قانون له مخی پریکړه نه کوی هغه کافران دی ) .

د محکومینو په برخه کې الله جل جلاله فرمایی :

أَلَـمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُـرِيدُونَ أَنْ يَـتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوا أَنْ يَكْفُرُوا بِهِ [د النساء سورت ۶۰ آیت ]

( ایا دوی نه لیدل ( ای نبی صلی الله علیه وسلم ) هغه کسان چې داسی ګومان کوی چې دوی پر هغه څه چې پر تا نازل شویدی ایمان راوړی او پر هغو کتابونو هم چې ستا نه د مخه نازل شویدی ، خو بیا هم غواړی چې د خپلو مسایلو په برخه کې د طاغوت ( خپل سری واکمنان ) پریکړو ته غاړه کیږدی ، په داسی حال کې چې هغوی ته له طاغوت سره د کفر امر شوی و )

بل ځای په همدی برخه کې فرمایي :

فَلَـا وَرَبِّـكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا [د النساء سورت ۶۵ آیت]

(نو قسم دی ستا په الله ای محمده ! دغه خلک به هیڅکله مؤمنان نشی ، تر هغه چې د خپل مینځی اختلافاتو او جګړو په برخه کې ستا پریکړو ته غاړه کې نږدی او بیا پر هغه څه چې ته فیصله وکړی ، د هغو په هکله د ناخوښی ، بی میلی او زړه تنګی احساس ونکړی ، هغه پر ځان بوج ونه ګڼی ، بلکه د زړه له کومی یی منلو ته غاړه کیږدی )

یهود او نصاری الله جل جلاله له همدی امله مجرمان ګڼلی وو ، چې د الله جل جلاله له بندګی نه یی انحراف کړی و ، د شرک او کفر لاری غوره کړی وه ، چې د هغی له امله به یی د الله جل جلاله د بندګی پر ځای د احبارو او راهبانو بندګی کوله .

د دغو ټولو جرایمو یوازینی لامل ( علت ) همدا ښودل شوی و، چې هغوی خپلو راهبانو او احبارو ته هغه ډول واک او اختیار ورکړی و، چې اوس د اسلام ادعا کوونکو د خپل ملت ځینی مشرانو ته ورکړیدی او هغوی ورته په خپله خوښه داسی قوانین جوړوی چې الهی شـریعت سره اړخ نه لګوی .

د نصـاری او یهـودو دغـه عمـل د الله جل جلالـه په نزد هغه ډول شرک و ، لکه د نصاری و دغه عمل چې له حضرت عیسی بن مریم نه یی ځان ته رب او واکمن جوړ کړی و او د هغـه بنـدګی ئې غوره کړی وه ، د اسلام په نزد د شرک پـه دغـه دوه ډولونـو کـې هیـڅ توپیر نشـته ، دواړه یـو شـان د الله جل جلالـه له بـندګی نـه د وتلو مفهوم لری ، د الهی دین له احکامو نه سرغړونه د " لا اله الا الله " د شهادت نـه سر غړاوی دی .

په اوسنیو اسلامي ټولنو کې خو ځینی په ښکاره او څرګنده توګه د لا دینی اعلان کوی ، او له دین سره خپلی هر ډول اړیکې له یوی مخی نفی کوی ، ځینی ټولنی یوازی په خوله د " اسلام د درناوی " ناری وهی ، خو له

خپل ټولنیز نظام نه یې دین په کډه کړی دی او وایي چې مونږ په " غیب " ایمان نه لرو، مونږ د خپل ټولنیز نظام مانۍ د علم او تجربې پر بنسټ ودانوو.

یعنی د علم د مکتب یا (Scientecism) پلویان دي ، او وایي چې ، چیرته چې علم او تجربه (Science and Experience) وی هلته " غیب " ځوک نشي منلی ، دغه دواړه د یو بل ضد وی ، خو د دی دغه خیال په خپل ذات کې یو ډول جهالت دی او یوازې هغه خلک دغه ډول خبرې کولای شی ، چې له یوه مخې د جهالت ژوندی بت وی ، ځینې داسې ټولنې هم شته چې عملا یې د " حاکمیت " واک له الله تعالی نه پرته بلې هستی ته سپارلی دی.

هر ډول قانون یې چې زړه وغواړی جوړوی یې ، بیا د خپلې ګیډی د شریعت په هکله دا دعوه کوی چې دا د الله جل جلاله شریعت دی " - دغه راز ټولنې له دی امله سره برابری دي ، چې د هغوی اساس او بنسټ د الله جل جلاله پر بندګی نه دی ولاړ .

د دغه اصولی حقیقت تر روښانولو وروسته د دغو ټولو جاهلی ټولنو په هکله د اسلام دریځ په یوه جمله کې بیانولای شو چې : " اسلام د دغو ټولو ، ټولنو اسلامیت او قانونی جواز نشی منلای " .

اسلام په دی برخه کې په هغو ظاهری ، عناوینو او نومونو پسی نه ګرځی ، چې دغو ټولنو پرې خپل ځانونه نومولی دی ، د دی ظاهر فریبی سره سره د دغو ټولو ټولنو یوه ځانګړتیا سره ګډه ده او هغه دا چې د دغو ټولو د ژوند قانون د الله جل جلاله د خالصی بندګی له اصولو سره سمون نه خوری ، له دی امله دغه ټولنې له نورو کافرو او مشرکو ټولنو سره د جاهلیت په قطار کې شریکې ، هم رنګه او هماهنګه دی .

تر دغه بحث او ځیړنې وروسته به مونږ خپله هغې وروستی نکتی ته رسیدلی یو چې د دغه فصل په پیل کې مو بیان کړی وه یعنی په انسانی ژوند کې د مثبت بدلون راوستلو لپاره د اسلامي اصولو همیشنی او ابدی میتودونه کوم دي ؟

هغه میتودونه او دودونه چې د زمان او مکان زولنې یې پښو ته پرتې نه دي او په هره زمانه کې که د اوسنی زمانی لپاره وي او که د راتلونکې ډیرې لرې زمانی لپاره د اسلام یوازینی اصول او میتودونه دي ، د دغې پوښتنې ځواب مونږ د هغه بحث په رڼا کې ورکولی شو چې مخکې مو " د اسلامي ټولنې غوره ځانګړتیا " تر عنوان لاندې کړی دی ، چې په لنډه توګه یې مفهوم دا دی :

اسلامي ټولنه د خپل ټولنیز نظام او ژوند هره ستره او کوچنی مسئله د الله جل جلاله د بندګی د اصولو پر اساس حل کوي ، د اسلامي ټولنې د فطرت د څرنګوالی تر ټاکلو وروسته مونږ ته د یوې بلې مهمې پوښتنې سم ځواب هم په اسانی سره لاس ته راتلای شي .

هغه پوښتنه دا ده چې هغه اصل او اساس کوم دی چې د انسانی ژوند د ستونزو او کړکیچونو په حل کې باید یوازینی ماخذ ، مرجع او اساس وي ؟ ایا د الله جل جلاله دین او د هغه د ټولنیز ژوندانه قوانین زمونږ اړتیاوو ته ځواب ویلای شي ؟ که نه د دې اړتیاوو د پوره کولو لپاره به کوم انسانی ژوند دوی ( د ژوند قانون ) ته په رجوع کولو هم اړ یو ؟

اسلام د دغو پوښتنو نهایت واضح او څرګند ځواب له زړغیې ( تردد ) نه پرته په خلاص مټ زمونږ مخې ته ږدي ، هغه وایي چې د انسانی ژوند د سمون لپاره په ټولنیز ( مجموعي ) ډول ضروري ده ، چې د الله جل جلاله له خوا خپلو بندګانو غوره کړای شوی الهی شریعت پر اصولو عمل وشي ، ترهغې چې د ټولنیز ژوندانه مانۍ پر دغه بنسټ ودانه نشي نو د ( لا اله الا الله محمد رسول الله ) شهادت هم چې د اسلام لومړنی رکن دی ، تحقق نه مومي او نه خپل حقیقي اغیزې او نتایج ښندلی شي .

تر هغې چې دغه اصل ونه منل شي او له ځنډ او تردد نه پرته د هغې پیروي او اطاعت ونشي ، نو تر هغه وخت پورې د الله جل جلاله د خالصې بندګی غوښتنه هم هیڅکله د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ښودلې لارې پر اساس سر ته نشي رسیدلای .

الله جل جلاله فرمایلي دي :

وَمَا آتَاكُمْ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا [د الحشر سورت ۷ آیت]

( هغه څه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم درته وایي هغه ومنئ او له هغه څه مو چې ایساروي ایسار شئ )

سربېره پر پورتنيو حقایقو اسلام له انسان نه دا پوښتنه کوي چې : انتم اعلم ام الله ( ایا تاسې ښه پوهېږئ که الله جل جلاله ؟ ) او بیا په خپله دا ځواب ورکوي چې : والله یعلم وانتم لا تعلمون ( الله جل جلاله پوهېږي او تاسو نه پوهېږئ ) وما اوتیتم من العلم الا قلیلا ( هغه پوهه چې تاسو ته درکړ شویدې ډېره کمه او نیمګړې ده ) .

اوس نـو څرګـنده خبره ده هغـه ذات چې ډېر عـالم دی ، د انسـان روزي ورکوونکې دی ، نو هغه دا حق هم لري ، چې پر انسان " حاکمیت " وکړي ، د هغـه " دین " د ټولنیز ژوندانه نظام وي او هماغـه د ژوند منبع او سرچینه وګڼل شـي ، ځکه چې د انسـان په خپـله جوړو کړو نظریاتو او افکارو کې بدلون راځي ، نیمګړتیا پکې پیدا کیږي او د انحراف ښکار کیږي .

دا ځکه چې بنسټ یې انساني پوهه او علم دی او دا څرګنده ده ، چې هغه نیمګړې دی ، انسان تر اوسه د فطرت له ډېرو رازونو سره نا اشنا دی ، هغه پوهه چې هغه د پنځ ( طبیعت ) په هکله لري او الله جل جلاله ورکړیده هغه ډېره کمه او نیمګړې ده .

د الله جل جلاله لاره او دود کومه معما او کیسې ( چیستان ) نده ، بلکه څرګنده او روښانه ده ، هغه بر نامه اصول او کړنلاره یې چې د خپل مخلوق لپاره غوره ګڼلې ده ، د هغې بنسټ هم پر خامو خښتو ندی ولاړ ، چې د وخت او زمان پیښې به یې ونړوي .

د شهادت د کلمې په دویم توک کې یعنې د شـهادت برخه " محمد رسول الله ( محمد د الله جل جلاله استاذی دی ) د دغه اصل بریدونه په څرګنده توګه ټاکل شویدي او په هغه اصولو او نصوصو کې ضبط شویدي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم بیان کړیدي .

دا يې ښودلې ده ، چې د الله جل جلاله لار هماغه اصول دي ، چې د الله جل جلاله استاذې مونږ ته راوړي دي ، هغه يې په ټاکلو او مشخصو مسايلو کې معين او محدود کړيدي ، له هغه نصوصو سره چې په اصل کې راغلي دي ، که چيرې د کومې مسئلې په هکله د قرآن " نص " موجود وي ، نو حتما به د هماغه نص پر اساس پريکړه کيږي .

ځکه د نص په موجوديت کې د اجتهاد لپاره ځای نه پاتې کيږي او که چيرې د کومې ستونزې د حل لپاره نص موجود نه وي ، نو هغه وخت بيا د اجتهاد ضرورت پيدا کيږي ، البته د هغو اصولو او نصوصو د لارښوونې تر سيورې لاندې ، چې الله تعالى بيان کړي دي ، نه دا چې زمونږ د شخصي أغراضو او هوا وهوس تابع وي .

فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ [د النساء سورت ۵۹ آيت]

( که په کومه پيښه کې ستاسو ترمينځ شخړه پيښه شي ، نو د پريکړې واک الله جل جلاله او رسول الله صلى الله عليه وسلم ته پريږدئ )

د اجتهاد او استنباط لپاره هم اصول او قوانين ټاکل شويدي ، هغه ډير روښانه او څرګند دي ، هيڅ ابهام په کې نشته ، نه په کې څه کمزورتيا او بې ارزښتې ليدل کيږي ، خو هيچا ته هم دا اجازه نشته چې هغه خپل جوړ کړي قانون د الله جل جلاله شريعت په ځای په خلکو ومنی .

که چيرې څوک داسې قانون جوړ کړي ، چې د الله جل جلاله حاکميت پکې تر هر څه لوړ او لومړی وي ، ( ځکه چې د ټولو ارزښتونو منبع هماغه پاک ذات دی ، نه قوم ، نه ګوند او نه هم د انسانانو له ډلې نه څوک دا حق لري ) که چيرې کوم قانون چې د خلکو له خوا تصويب کيږي ، سرچينه يې د الله جل جلاله او رسول الله صلى الله عليه وسلم له کتاب نه وي ) نو په داسې صورت کې هغه د شريعت په حدودو کې شمارل کيږي ، خو دا حق هغه چاته نه ورکول کيږي ، چې د الله جل جلاله د قدرت او حاکميت په نامه غواړي ، د خپل قدرت او حاکميت زغ د خلکو پر څټ کيږي دي .

خپلې غوښتنې د الله جل جلاله د غوښتنو په نامه پر خلکو ور وتپي ، لکه هماغه ډول حکومت چې په اروپا کې نن د (Theocracy) يا " مقدس

سلطنت " په نامه یادیږي او هغوی یې د ناخوالو مزه څکلې ده ، دغه ډول حکومت په اسلام کې نه ځائیږي ، او هیڅوک له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه پرته دا حق نلري چې له خپله ځانه د الله جل جلاله په نامه لږ تر لږه کومه خبره وکړي ، څکه چې مونږ ته واضح او څرګند نصوص موجود دي ، چې الهي شریعت یې مونږ ته څلور خواوی ټاکلې دي .

"دین د ژوند لپاره دی " دا یوه داسې جمله ده ، چې ډیره غلطه او ناسمه معنی ، ځینې اخیستل شویده او خلک هم پرې سم ندي پوهول شوي ، په دې کې هیڅ شک نشته چې " دین د ژوند لپاره دی " خو د څه ډول ژوند لپاره ؟ دا دین د هغه ډول ژوند او واقعیتونو لپاره دی چې دغه دین یې په خپله د ودانولو بنسټ ږدي او د خپلو اصولو او کړنلارې له مخې یې لوړوي او وده ورکوي ، دغه ژوند له انساني فطرت سره اشنا دی او د انسان د ټولو فطري اړتیاوو پوره کوونکې دی .

له اړتیاوو نه مقصد هماغه اړتیاوې نه دي ، چې هر انسان یې په خپل تصور خپلې اړتیاوې ګڼي ، بلکې هغه اړتیاوې یوازې هغه هستی ټاکلی شي ، چې انسان یې هم پیدا کړیدی ، د ده او همدا رنګه د خپلو نورو مخلوقاتو له ټولو اړتیاوو نه په ښه توګه خبر دی .

أَلَا يَعْلَمُ مَنْ خَلَقَ وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ [د الملک سورت ۱۴ آیت ]

( ایا هغه ذات چې مخلوقات یې پیدا کړي دي له حاله یې خبر ندی ؟ هغه ډیر باریک بین او با خبره دی ) .

د دین وظیفه دا نه ده ، چې د ژوندانه د هر نظام د تائید او حقانیت د اثبات لپاره هلې ځلې وکړي ، د هغه لپاره د جواز سند پیدا کړي او داسې شرعي فتوی ورته برابره کړي ، چې هغه یې د یوې لوحې په توګه په خپله دروازه وځړوي .

دین د دې لپاره دی چې د ژوند واقعیتونه په خپل قالب او میتود برابر کړي ، او په خپله تله یې وتلي ، هغه واقعیتونه چې په کنده برابر وخیژي او له انساني او الهي معیارونو سره سم وي ، هغه خپل کړي او هغه چې سپک وخیژي اوله الهي او انساني معیارونو سره سمون ونه خوري ، هغه لیرې

وغورځوي ، څه چيرې د ژوند ټول نظام او واقعيتونه د دين له ميتود سره ضد واقع وي ، نو هغو له يوې مخې پاک کړي او د هغو پر ځاى نوې اصول او نوى ژوند دود کړي .

د دين دغه ډول جوړ کړى ژوند په حقيقت کې ريښتونى ژوند دى ، د هغې جملې مفهوم دا دى چې " اسلام د ژوندانه دين دى " په هغه جمله کې له دغه مفهوم نه پرته د بل مفهوم لټول يو بې ځايه او نا سم کار دى ، دا و له ژوند او د ژوند له واقعيتونو سره د اسلام چلند ، څرنګه چې اسلام د واقعيتونو دين دى ، نو دلته بايد يوه واقعيت ته پوره ځير شو ، دلته دا پوښتنه را پيدا کيږي ، چې ايا د بشريت خير او مصلحت په دې کې دى چې د خپل آر ( اصلي ) حقيقت او واقعيت پر اساس وده وکړي ؟

خو مونږ دلته بيا هماغه پوښتنه ګرانو لوستونکو ته را مخکې کوو چې ، اسلام په خپله کړيده او ځواب يې هم ورکړى دى .

انتم اعلم ام الله ؟ ! ( ستاسو پوهه ډيره ده که د الله تعالى ؟ )

والله يعلم وانتم لا تعلمون ( الله ډير پوه او عالم دى او تاسو نه پوهيږى ) ، الله جل جلاله چې الهي شريعت په کومه بڼه نازل کړيدى او په کومه بڼه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم مونږ ته راليږلى دى ، هغه په خپله بشرى مصالحوته پوره پوره پاملرنه کړيده .

ځکه له خالق نه څوک د خپل مخلوق په ښيګړو ښه ترا پوهيداى شي ؟ که چيرې کله کوم انسان په دې ګومان او وهم اخته شي ، چې د ده مصلحت د هغه قانون په پابندى کې نه دى ، چې الله تعالى د انسانانو لپاره غوره ګڼلى دى ، بلکه په خلاف ورزى کې دى ، نو لومړى خو دده اټکل او احساس په دغه برخه کې له يوه وهم او وسواس نه زيات نه دى .

ځکه الله جل جلاله فرمايي :

إِنْ يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَمَا تَهْوَى الْأَنْفُسُ وَلَقَدْ جَاءَهُمْ مِنْ رَبِّهِمُ الْهُدَى()أَمْ لِلْإِنسَانِ مَا تَمَنَّى()فَلِلَّهِ الْآخِرَةُ وَالْأُولَى [د نجم سورت ۲۳-۲۵ آيتونه]

( دغه خلک د خپل فاسد وهم او ګمان او نفسي غوښتنو پيروي کوي ، سره له دې چې د پروردګار له خوا نه دوى ته لارښوونه هم شويده ، ايا

انسان ته هغه څه چې زړه یې وغواړي په لاس ورغلی دی ؟ د دنیا او اخرت نیکې د الله جل جلاله په واک او اختیار کې ده )

او دویم دا چې : دی باید په پوره توګه په دی باور ولري چې د شریعت په هکله دغـه ډول شکمن دریـځ غوره کول د کفر انډول دی ، تاسو فکر وکړی چې آخر دا څنګه کیدای شی ، چې یو څوک دا اعلان وکړی ، چې د ده په فکر د ده خیر او ګټه د الهی شریعت په مخالفت کې ده ، نه په پیروی او اطاعت کې .

له دغـه ډول اعلان او اند دود ( طرز فکر ) سره بیا هم د دین پیرو ورته وویلی شی ، دغـه کسان نه یوازی دا چې د دین په پیروانو کې نه شمیرل کیږی ، بلکه د دین دښمنان هم دی .

## شپږم فصل

### د ژوند نړیوال فطري قانون

اسلام د فکر او عمل په ډګر کې د خپلې ګروهې مانۍ د الله جل جلاله د کاملې بندګۍ پر بنسټ ودانوي ، په عبادت ، عقیده ، ایمان ، سرښندنه او په تیره بیا د ژوند په ټولو اړخونو کې باید د الهي قانون او بندګۍ وړاندې په برابره توګه وځلیږي .

دا ځکه چې بندګي او عبودیت په کامله توګه یوازې د الله تعالی لپاره دي او په دغه هر اړخیزه بندګۍ د لا اله الا الله مفهوم ښه ترا تحقق موندلای شي ، څرنګه چې مونږ ته د الله جل جلاله د بندګۍ په برخه کې د پوهې او بصیرت وسیله حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دی ، نو تر لومړي توک وروسته د شهادت د کلمې د دویم توک منل هم د لومړي هغې د منلو نتیجه ده .

" محمد رسول الله " محمد د الله جل جلاله استازی دی " ، اسلام خپله مانۍ په دې توګه ودانوي چې د شهادت د کلمې دواړه توکه د اسلامي نظام د ټولنیز ژوندانه اصول وټاکي ، د اسلامي ایډیالوژۍ خطوطه انځور کړي او د هغې څرنګوالی روښانه کړي .

که چیرې اسلام د دغه ډول بې سارې اصولو پر بنسټ د خپلې ټولنې مانۍ ودانه کړي ، چې د تاریخ په ټولو نظامونو کې یې د مثبتو اړخونو درلودلو له امله ساری ونه لیدل شي ، نو په حقیقت کې به اسلام له هغه " مرکزي قانون " سره اړخ لګولی وي ، چې نه یوازې پر بشریت حاکم دی ، بلکه پر ټولو کائناتو هم حاکم دی ، هغه نظام چې له ټولې نړۍ نه یې غیږ راچاپیره کړې ده او په لمن کې یې رانغښتې ده .

### ټوله دنیا د یوه مرکزي قانون تابع ده

د اسلامي ایډیالوژۍ اساس پر دې ګروهه ولاړ دی ، چې د ټولې نړۍ خالق یوازې الله جل جلاله دی ، چې ټولو کائناتو ته یې د تخلیق ویاړ وربښلی دی ، د الله جل جلاله اراده په دې وه ، چې کائنات هست شي نو

هست شول ، بیا الله تعالی په خپل قدرت سره په کائناتو کې د فطرت داسی نوامیس خلق کړل ، چې د هغې پر اساس به هر څه په خپل فطری او حقیقی دود په پرله پسی او همیشنی توګه حرکت کوی .

د همدی نوامیسو له امله د پنځ ( طبیعت ) په ټولو کوچنیو او سترو برخو کې د حرکت یو رنګوالی ، تناسب او هم اهنګی لیدل کیږی او په کلی حرکت کې هم نظم ، ضبط او توازن لیدل کیدای شی .

إِنَّمَا قَوْلُنَا لِشَيْءٍ إِذَا أَرَدْنَاهُ أَنْ نَقُولَ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ [د نحل سورت ۴۰ آیت ]

کله چې د څه شی پیدا کول وغواړو نو له دی نه پرته زمونږ بله وینا نشته چې ورته ووایو ، وشه ! نو بیا کیږی .

وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ فَقَدَّرَهُ تَقْدِيرًا [د الفرقان سورت ۲۰ آیت ]

(هر څه یی پیدا کړل او بیا یی د هغوی لپاره د هغوی وړ ، اندازی وټاکلی )

د دغه کائناتو تر شا یوه اراده موجوده ده ، چې هغه اداره کوی ، یو قدرت او ځواک دی ، چې هغه ته حرکت ورکوی ، یو قانون دی چې هغه یی د نظم پابند کړی دی ، همدغه قدرت او ځواک د کائناتو په مختلفو برخو کې نظم وضبط ساتی او د هغوی حرکت تنظیموی .

د دی لپاره چې د هغوی ترمینځ ټکر رانشی او کوم خلل هم پکې پیدا نشی ، هیڅکله یی ترمینځ برخورد او بی نظمی پیښه نشی او د پرله پسی او منظم حرکت ترمینځ یی وقفه پیدا نشی ، دا حرکت به تر هغه وخته روان وی ، څو چې د الله جل جلاله اراده وی .

په داسی توګه چې دغه ټول کائنات په هغومره عظمت او لویې د الله جل جلاله د امر په وړاندی لاس پر نامه دی او کوچنی والی یی غوره کړیدی ، ان تردی چې د یوی شیبی لپاره هم ممکنه نده ، چې له دغې قاهری او غالبې او ضابطی نه سرغړونه وکړای شی او د هغوی د ټاکلی قانون پر خلاف حرکت وکړی .

د همدغې کامل اطاعت او فرمانبرداری له برکته کائنات په سمه توګه او سلامتیا په حرکت کې دی ، تر هغه وخته به په دغه پرله پسی او منظم

حرکت کې خلل او فساد پیدا نشی ، ترڅو چې د الله جل جلاله مشیت او ارادې د هغی د له مینځه وړلو پریکړه نه وی کړی .

إِنَّ رَبَّكُـــمُ اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوَى عَلَى الْعَرْشِ يُغْشِي اللَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهُ حَثِيثًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومَ مُسَخَّرَاتٍ بِأَمْرِهِ أَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْأَمْرُ تَبَارَكَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ [الا عراف : ۵۴ ]

( په حقیقت کې ستاسو پروردګار هغه ذات دی ، چې ځمکه او اسمانونه یی په شپږ ورځو کې پیدا کړل او بیا هغه پر عرش استوا وکړه چې شپه په ورځی سره پټوی او شپه په ډیره چټکې سره ورځ لټوی ، لمر سپوږمی او ستوری د هغه په امر تسخیر او پیدا شوی دی ، په دی پوه شی چې د خلقت حکم او فرمان یوازې د هغه لپاره دی ، دا د الله جل جلاله ستر برکت دی چې د ټولو نړیوالو ( جهانیانو ) پروردګار همغه دی )

## د انسان غیر ارادی برخی د فطرت د قوانینو تابع دی

انسان د کائناتو یو جز دی ، هغه قوانین چې د ده پر فطرت حاکم دی ، هغه د کائناتو له هغه مرکزی نظام نه بهر او مستثنی ندی ، چې پر ټولو کائناتو باندی یی مطلق حاکمیت روان دی ، لکه څنګه یی چې انسان ته دغه ویاړ وربښلی دی ، کائناتو ته هم الله جل جلاله د خلقت جامه ور اغوستی ده .

د انسان مـادی خلقت له خـاوری دی ، خـو الله جل جلاله دغی مـادی ( خاوری ) ته داسی خصوصیات وربښلی دی ، چې فضیلت یی تر خاورو زیات دی ، نو ځکه یی انسان تری پیدا کړ ، دغه خصوصیات او ځانګړتیاوی ، الله تعالی په یــوه ټاکلی اندازه هغه تــه وربښلی دی ، انسان د خپل جسمانی وجود د جوړښت د څرنګوالی له امله جبرا او قهـرا د پنځ ( طبیعت ) د قوانینو تابع او مطیع دی ، چې الله تعالی هغه مقرر کړیدی ، د هغو تخلیق د الله جل جلاله په مشیت او ارادی پوری اړه لری ، نه د ده په خوښی او رضا پوری ، یا د ده د مور او پلار په خوښی او رضا پوری .

د ده مور او پلار یوازې له یو بل سره په یو ځای کیدو قادر دي ، خو د هغه یوه ځاځکې اوبو په بدلون چې انساني وجود ترې مینځ ته راځي هیڅ قادر نه دي ، الله جل جلاله چې د زوکړې د مودې او زیږیدو لپاره کوم اصول ټاکلي دي ، انسان د هماغو له مخې پیدا کیږي ، له هماغې هوا نه تنفس کوي ، چې الله جل جلاله ورته پیدا کړیده ، په کوم مقدار او کیفیت چې الله جل جلاله ورته ټاکلي ده ، په هماغه اساس به یې کوي ، انسان د ادراک او احساس قوت لري .

درد یې متاثر کوي ، لوږه او تنده یې ځوروي ، خوراک او څښاک کوي ، لنډه دا چې که انسان وغواړي که ونه غواړي ، دی په ټول ژوند کې مکلف دی چې د فطرت د قوانینو او الهي نوامیسو پر اساس ژوند وکړي ، د ده اراده او اختیار په دې کې هیڅ دخل نه لري .

د پنځ له قوانینو نه د مطابقت په برخه کې د انسان او په کائناتو کې د ټولو ژوندیو او مړو موجوداتو ترمینځ هیڅ توپیر نشته ، ټولو د الله جل جلاله د مشیت ، ارادې او قدرت په مقابله کې بې له کوم قید او شرط نه د اطاعت او تسلیم سر ټیټ کړیدي .

هغه ذات چې کائناتو ته یې د تخلیق ویاړ وربښلی ، انسان یې پیدا کړی او هغه چې انسان یې د فطرت د هغو نوامیسو په اطاعت اړ کړیدی چې دا ټول کائنات یې مطیع او فرمانبردار دي ، همغه پاک او بې مثله ذات د انسان د ژوندانه د سمون لپاره هم یو شریعت مقرر کړیدی ، چې په هغې سره د خپل ارادي ژوندانه چارې هم سنبال کړای شي .

او هم یې له فطري ژوند سره هم اهنګي او انډول پیدا کړی ، نو د همدغه اعتبار له مخې دا شریعت ، د هغه نړیوال الهي قانون یوه برخه دد ، چې د انسان او په ټولنیز ډول د ټولو کائناتو پر فطرت فرمانروایي کوي او هغه د یوه منظم قانون تر سیورې لاندې اداره کوي .

د الله جل جلاله هره کلمه ، امر ونهي ، هره وعده او ژمنه ، هر قانون ، او هره لارښوونه د کائناتو د مرکزي قانون یوه برخه ده ، داسې نظم او ریښتونولي پکې موجوده ده ، لکه څنګه چې په هغو قوانینو کې موجوده

ده ، چې مونږ ورته د فطرت نواميس یا د الله جل جلاله د کائناتو قوانين وايو چې په خپل پوره فطري او ازلي صداقت په کائناتو کې جريان لري ، د پنځ د قوانينو ( نواميس فطرت ) په فرمانروايي کې د الله جل جلاله د مقرره حدودو او اندازو څرک له ورايه څرګند دي ، چې هغه پاک ذات د دغو قوانينو لپاره ټاکلي دي .

## الهي شريعت د پنځ له نواميسو سره هم اهنګي لري

د دې خبرې د اثبات لپاره تردې څرګند دليل نشته ، چې ووايو هغه شريعت چې الله جل جلاله د بشريت د ژوندانه د سمون لپاره وضع کړی دی ، په حقيقت کې يو " کائناتي شريعت " دی ، دا ځکه چې هغه د پنځ " طبيعت ، کائنات " له فطري او مرکزي قوانينو سره برابر او هم اهنګ دی .

ددغه حقيقت په نظر کې نيولو سره د الهي شريعت پيروي او متابعت د بشريت د ژوندانه نظام د سمون لپاره يو ستر ضرورت دی ، ځکه چې همدا يوازينی لاره ده چې د انسان او کائناتو ترمينځ پرې ( چې دې پکې ژوند کوي ) توافق او هم اهنګي پيدا کيدلای شي .

يوازې په دې برخه کې نه بلکه واقعيت دا دی چې د انسان په طبعي ژوند کې حاکم قوانين (Physical Laws) او د هغه د ارادي ژوند د اخلاقي قوانينو (Moral Laws) په برخه کې هم اهنګي او توازن د الهي شريعت د متابعت په نتيجه کې را پيدا کيدلای شي ، يوازې په همدې توګه د دننه او د ( بهر ) انسان ترمينځ يو والي او وحدت پيدا کيدلای شي .

دا انسان د پنځ دټولو قوانينو او په هغه کې د حاکم مرکزي قانون د څرنګوالي له پوهيدلو نه عاجز دی ، د کائناتو د قوانينو په څرنګوالي پوهيدل خو غټه خبره ده ، هغه خوار تر اوسه د هغو قوانينو په څرنګوالي هم نه پوهيږي ، چې ذاتا همدې په کې را ايسار دي ، او يو وينښته هومره انحراف هم ترينه نشي کولای .

دا د انسان هغه عجز ، کمزوري او نيمګړتيا ده ، چې د هغې له مخې انسان پردې قادر نه دی چې د خپل ژوند د سمون لپاره داسې شريعت وضع کړي ، چې د هغه تر انفاذ وروسته د انساني ژوند او کائناتو د حرکت

ترمينځ هر اړخيز توافق او برابرى خو لا څه کوى ، چې په خپله د ده د فطرت د پټو غوښتنو او ظاهرى ژوند دود ترمينځ هم اهنګى او توازن پيدا کړاى شى ، دغه قدرت او صلاحيت يوازى هغه ذات لرى ، چې د کائناتو خالق هم او د انسان پيدا کوونکې هم دى .

د کائناتو تدبير او انتظام يى هم په لاس کې دى او د انسانانو د ژوندانه د اړيکو او چارو سمبالوونکې هم دى ، ټول يى د هغه مرکزى قانون په لومه کې را ايسار کړيدى چې پخپله يى ورته غوره ګڼلى دى .

دا هغه حقايق او واقعيتونه وو ، چې سړى حتما د شريعت تابعيت او فرمانبردارى ته اړ باسى ، د دى لپاره چې له کائناتو سره يى مکمل موافقت پيدا شى ، د دغو قوانينو متابعت دومره لازم او ضرورى دى لکه څومره چې په نظرى او عقيدوى برخه کې د اسلام قيام او پاڅون .

د هر وګړى يا ټولى ژوند به تر هغه وخته د اسلام په نور منور نه وى ، تر هغى چې د الله تعالى د کاملى بندګى په اصولو روان نشى او د بندګى د ادا کولو پر هغه لاره لاړ نشى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم انسانانو ته ښودلى ده ، يا په بله وينا تر هغه چې د اسلام د لومړى رکن د دواړو توکونو ( لا اله الا الله محمد رسول الله ) اثرات يى د عملى ژوند په ډګ کې ونه ځليږى ، ژوند به تر هغه وخته پورى د اسلام په نور منور نه وى ، که انفرادى وى او که ټولنيز .

## د الهى شريعت متابعت ولى ضرورى دى ؟

د انسانى ژوند او کائناتو د قانون ترمينځ هر اړخيز توافق د بشريت لپاره سرا سر د خير او برکت منبع ده ، همدغه يوازينى لاره ده ، چې د بشريت ژوند پرى له شر او فساد نه خوندى پاتى کيدلاى شى ، که انسان غواړى چې له کائناتو سره په روغه جوړه ژوند تير کړى او په خپله هم په امن و امان کې واوسى ، نو له دى امله د ده لپاره له کائناتو سره توافق او هم اهنګى پيدا کول پکار دى .

پاتى شوه د کائناتو له خوا نه د انسان د مامون او خوندى ژوند مسئله ، هغه يوازى د انسان او کائناتو ترمينځ د حرکت په خپل مينځى سمون او يو

رنګي پوري اړه لري ، په همدې توګه د انسان او د ده د فطرت غوښتنو ترمينځ د امن امان او سلامتۍ خوندې ساتلو امکان هغه وخت موجوديدلای شي چې د انسان په ظاهري حرکت او د هغو د سمو فطري غوښتنو ترمينځ همنوايي موجوده وي .

ددې لپاره چې د انسان او فطرت ترمينځ تصادم او ټکر مينځ ته رانشي ، دا يوازې د الهي شريعت کمال دی چې په دې توګه د انسان د مادي ژوند او د هغه د فطري حقيقت په مينځ کې په ډېره اساني سره توافق او توازن پيدا کولای شي ، کله چې د انسان او فطرت ترمينځ د توازن او يو رنګي فضا پيدا شي ، نو په نتيجه کې د انسانانو له خپل مينځي اړيکو او د ژوند په عمومي هلو ځلو کې په خپله د مرستې او هم اهنګۍ روحيه پيدا کيږي .

ځکه کله چې انسان له فطرت سره د تعاون سلوک غوره کوي ، نو د دې په نتيجه کې د انساني ژوند او کائناتو ترمينځ مکمل توافق پيدا کيږي ، په انسان او کائناتو کې د يوه نظام او قانون حاکميت جاري کيږي ، په همدې توګه د انساني ژوند ټولنيز اړخ هم د يوه بل له بلوسې او تيرې نه خوندي پاتې کيږي ، په دې توګه بشري ټولنه د يوه کلي خير او سلامتيا له نعمت نه برخورداره کيږي .

تردې وروسته د کائناتو مختلف اسرار هم د هغه لپاره د اسرارو په حيث نه پاتې کيږي ، انسان د فطرت له پټو رازونو سره اشنا کيږي ، د کائناتو پټ قوتونه ورڅرګنديږي او د کائناتو په پراخه څنډه ( افق ) کې د پټو خزانو ځرک هم هغه ته لګيدای شي .

هغه دغه قوتونه او خزانې د الله جل جلاله د شريعت په لارښوونه د انسانيت د پوره نيکمرغۍ لپاره پکار اچوي او دغه ډول ټول کارونه يوازې د الله جل جلاله قانون په وسيله وده او پرمختګ کوي او خپل فطري تګ لوري تعقيبوي ، تر هغه چې د ټول بشريت لپاره د خير او نيکۍ ارمان تحقق ومومي ، البته په داسې ډول چې کوم ټکر او تصادم پيدا نشي ، ځکه چې د الله تعالی د شريعت په مقابل کې تل د بشر نفسي غوښتنې او هوسونه سر راپورته کوي ، په دې برخه کې الله تعالی فرمايي :

وَلَوْ اتَّبَعَ الْحَقُّ أَهْوَاءَهُمْ لَفَسَدَتْ السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ وَمَنْ فِيهِنَّ [د مؤمنون سورت ۷۱ آيت]

( که حق د هغوی د هيلو او غوښتنو پيروی وکړي ، نو پر ځمکه او اسمانونو کې چې څه موجود دي ، هغه به له فساد سره مخامخ شي )

## حق نه شنل ( تقسيم او تجزيه ) کيږي

لـه دی نـه څرګنده شوه چې د اسلامي نظريې له مخې حق يو وحدت دی ، هغـه حقيقت چې اسلام د خپلو اصولو او کړنلارې په عملي کولو د هغې د تنظيم لپاره راپورتـه شوی دی او هغـه حقيقت چې ځمکـه او اسمانونه پرې ټينګ دي او د دنيا او اخرت کار د هغې په واسطه د نيکې منزل ته رسيږي او سميږي ، يو دی ، همدغه وحدت او يو والي د دغه دين ( اسلام ) بنسټ دی .

پر همدی بنسټ د ځمکې او اسمان نظام دريدلی دی او د انسانانو د دنيوی او اخروی راکړې ورکړې چارې پرې سمون مومي ، د همدغه په برخه کې به انسانان د الله تعالی په مخکې ځواب وايي ، هغه څوک چې ترې سرغړاوی کوی ، هغه ته سزا هم ورکوی ، " حق " يو وحدت دی چې ويشل ( تجزيه ) يې يو ناممکن کار دی او د کائناتو هغه مرکزی قانون ته ويل کيږي ، چې الله تعالی د ټولو حالاتو د سمون لپاره جاری کړی دی او ټول مجبور دی چې د اطاعت لاسونه ورتـه پر سينه کيږدی ، د نړۍ ټول موجودات ساکښ دی ، که بې ساه يو يې هم د قدرت تر ساحې وتلی نه دی :

لَقَـدْ أَنزَلْـنَا إِلَيْكُمْ كِتَابًا فِيهِ ذِكْرُكُمْ أَفَلَا تَعْقِلُونَ()وَكَمْ قَصَمْنَا مِنْ قَرْيَةٍ كَانَتْ ظَالِمَةً وَأَنشَـأْنَا بَعْدَهَـا قَوْمًا آخَرِينَ()فَلَمَّا أَحَسُّوا بَأْسَنَا إِذَا هُمْ مِنْهَا يَرْكُضُونَ()لَا تَرْكُضُوا وَارْجِعُـوا إِلَـى مَـا أُتْرِفْـتُمْ فِـيهِ وَمَسَاكِنِكُمْ لَعَلَّكُمْ تُسْأَلُونَ()قَالُوا يَاوَيْلَنَا إِنَّا كُنَّا ظَـالِمِينَ()فَمَـا زَالَتْ تِلْكَ دَعْوَاهُمْ حَتَّى جَعَلْنَاهُمْ حَصِيدًا خَامِدِينَ()وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاءَ وَالْـأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لَاعِبِينَ()لَوْ أَرَدْنَا أَنْ نَتَّخِذَ لَهْوًا لَاتَّخَذْنَاهُ مِنْ لَدُنَّا إِنْ كُنَّا فَاعِلِينَ() بَـلْ نَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَى الْبَاطِلِ فَيَدْمَغُهُ فَإِذَا هُوَ زَاهِقٌ وَلَكُمْ الْوَيْلُ مِمَّا تَصِفُونَ()وَلَهُ مَنْ

فِــي السَّــمَاوَاتِ وَالْــأَرْضِ وَمَــنْ عِنْدَهُ لَا يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِهِ وَلَا يَسْتَحْسِرُونَ()
يُسَبِّحُونَ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ لَا يَفْتُرُونَ [د انبياء سورت ۱۰ - ۲۰ آيتونه ]

(اى خلكو ! مونږ تاسې ته داسې يو كتاب ليږلى دى چې په هغه كښې همداستاسې يادونه ده ،آيا تاسې نه پوهيږئ ؟ څومره ظالمې سيمې دي چې مونږ هغه ورانې ويجاړې كړې اولد هغو وروسته مو نور قومونه راپاڅول ، كله چې هغوته زمونږ عذاب څرګند شو نوهغو له هغه ځايه په تيښته لاس پورې كړ ، هغزي ته (وويل شول ) " مه تښتئ ورشئ خپلو همغو كورونو اودعياشى وسايلو ته چې تاسې پكښې بې غمه اوسيدلى ،ښائي چې له تاسې نه پوښتنه وشي " ، ويې ويل "هاى زمونږ بدمرغى ،بيشكه چې مونږ ظالمان وو" ، اوهغوى همدغه نارې وهلې تردې پورې چې مونږ هغوى غويل كړل ، دژوند يوبخرى قدرې په هغو كې پاتې نشو- مونږ دغه آسمان اوځمكه اوهر څه چې په دي كې دي دلو بې په ډول ندي پيداكړي ، كه مونږ څه دلوبو وسايل جوړول غوښتلى اوهمدغه زمونږ كړنچاره واى نوله خپل لوري به موكړي واى ، خومونږ پرباطل باندې دحق ګوزاركوو چې دهغه سرماتوي اوهغه ګوري محوه كيږي اوستاسې له پاره دهغو خبرو لامله تباهي ده چې تاسې يې جوړوئ ، په ځمكه او آسماننونو كې چې هرمخلوق دى دالله دى ، اوكومې پرښتې چې له هغو سره دي هغوى نه په لوئى كولوسره دهغه له بندګى نه سرغړوي اونه ستومانه كيږي ، شپه اوورځ دهغه پاكي بيانوي وقفه تكښې نه راولي ) .

## كائنات پرحق او حقيقت استوار دى

د انسان فطرت دغه " حقيقت " د خپل وجود په تل او ژورتيا كې احساسوى او ريښونوالي يى درک كوى ، له يوى خوا په خپله د انسان جوړښت او له بلى خوا د ده شا وخواته د بى پايه كائناتو منظم جوړښت او حركت ، هره شيبه د دى خبرى تصديق كوى چې كائنات پر " حق " ولاړ او استوار دى او همدغه د دغه نظام اصل جوهر دى ، دا له يوه داسى مركزى

او کلي قانون سره ارتباط لري چې ده ته یې ثبات او دوام وربښلی دی او د بشرژوند له فساد او تباهی نه ساتي .

په دې کائناتو کې هیڅ ډول زیان نه پیدا کیږي ، لارې یې سره بیلې نه دي او په توکونو کې یې تضاد نشته ، همدا رنګه دغه نظام د کوم تصادف له مخې ، روان ندی او نه د بخت وطالع د احسان مرهون دی او نه د یوه دقیق او منظم پلان نه پرته حرکت کوي .

د هر چا د هر دم خیاله فکر او هوس په لاسونو کې لوبڅی هم ندی ، بلکه د خپل دقیق ، منظم او سخت ګیره قانون له مخې په ټاکلې لاره سم سیده او منظم روان دی ، د اختلافاتو پیل د انسان او د فطرت ترمینځ له تصادم او ټکر څخه کیږي او دا هغه وخت پیښیږي چې انسان له هغه " حق " نه بې لارې او منحرف شي ، چې د ده د فطرت په تل کې پټ دی او نفسي غوښتنې پرده غلبه ومومي .

او بیا دی د خپل ژوندانه د سمون قانون د الله تعالی د ټاکلې شریعت پر ځای د خپلو خواهشاتو د شریعت له قانون نه اخلي او لکه څنګه چې دا ټول کائنات د الله جل جلاله د فرمان او قانون په مخکې لاس پر سینه دي د دې پر ځای د سرغړونې او سرکشۍ لار غوره کوي .

**له حق نه د بې لارې نتیجې :**

لکـه څـنګه چې د انسـان او د هغـه د فطرت او انسـان او کائـناتو ترمیـنځ اختلاف او بدوالي ( تضاد ) پیدا کیږي ، په همدې توګه دغه اختلاف ورو ، ورو زیاتـیږي او د وګـړو ، پرګـنو ، اولسـونو ، ملـتونو او مخـتلفو بشـري نژادونو ترمیـنځ د اختـلاف ښه غـوره کـوي ، د دې اختلاف نتیجه به دا وي چې د کائـناتو ټولې ګټورې زیرمې او خزانې د دې پر ځای چې د بشریت د خیر ، او ښـیګړو لـپاره پکـار واچـول شـي بـرعکس د هغـوی د تبـاهۍ او بربادۍ لپاره کارول کیږي .

له پورتنۍ تفصیل نه دا څرګندیږي چې د هغه واضح مطلب لپاره چې په نړۍ کې د الله تعالی د شریعت قیام او پاڅون ضروري دی ، هغه یوازې د آخرت لپاره توښه غونډول نه دي ، لکه څنګه چې صوفیان وایې :

ښه ده ښه ده دا دنيا     چې توښه ده د عقبا

دنيا او آخرت دوه مختلف څيزونه هم نه دي ، بلکه د يوه منزل دوه پړاوونه دي ، دواړه يو برابر حثيت او ارزښت لري او يو د بل بشپړوونکې دي ، د الله جل جلاله شريعت له يوې خوا نه په انسان کې ددغو دواړو پړاوونو ترمينځ توافق او برابري پيدا کوي او له بلې خوا نه د ټول بشريت د ژوند دود توافق له مرکزي قانون سره پيدا کوي ، له همدې امله که چيرې د کائناتو له مرکزي قانون سره توافق پيدا شي ، نو د هغې له برکته چې انسان ته کومه نيکمرغي ور په برخه کيږي ، هغه به يوازې د منزل د دويمې مرحلې " آخرت " لپاره پکار نه وي ، بلکه د منزل د لومړې مرحلې ( دنيا) لپاره به هم ډيره گټوره وي ، البته په آخرت کې به هغه د کمال او عروج پړاو ته رسيږي .

دا و د ټولو کائناتو او همدا رنگه د کائناتو د يوه توک ( انسان ) په برخه کې د اسلامي ايډيالوژي بنيادي تصور ، دغه تصور د خپل فطرت او اصليت له مخې له هغو ټولو تصوراتو سره بنيادي توپير لري ، چې تر اوسه په نړۍ کې دود دي ، همدغه علت دی ، چې هغه مسئوليتونه ، ذمه واري او فرايض ، چې دغه تصور يې له ځان سره راوړي د هغې څرک د دنيا په نورو تصوراتو او د ژوند په قوانينو کې نه ليدل کيږي .

د دغه تصور له مخې د الهي شريعت متابعت او پيروي په حقيقت کې د هغې اړتيا غوښتنه ده ، چې د انساني ژوند او کائناتو د ژوند ترمينځ او د هغه قانون ترمينځ ، چې په انساني فطرت او کائناتي فطرت حاکم دی کامل ارتباط او توافق موجود وي ، د دغې اړتيا يوه بله غوښتنه دا ده ، چې د کائناتو د مرکزي قانون او د انسانانو د ژوند سموونکې قانون "شريعت " ترمينځ هم پوره موافقت او مطابقت موجود وي .

همدا رنگه د الهي شريعت تر متابعت وروسته انسان لکه څنگه چې ښايي د الله جل جلاله د بندگۍ وظيفه سر ته رسولای شي ، لکه څنگه چې دا کائنات په صادقانه توگه يوازې د الله جل جلاله بندگي کوي ، بل هيڅ مخلوق د الله جل جلاله د بندگۍ وظايف داسې سر ته نشي رسولای ، د

هغه توافق او مطابقت اړتیا ته چې مونږ مخکې اشاره کړی ده ، د هغې اشاره مونږه د هغو خبرو اترو ترمینځ هم موندلای شو چې د حضرت ابراهیم علیه السلام د (مسلمان امت بابا) او نمرود ترمینځ هم شوی وي .

نمرود یو ظالم او تیری کوونکې حاکم و ، ځان یې د خپل هیواد د وګړو الله باله ، خو له دی سره دستور و ، سیارو او افلاکو دنیا د ده د قدرت له دایری نه وتلی وه ، کله چې حضرت ابراهیم علیه السلام د هغه په مخکې دا دلیل ووایه چې هغه ذات چې د ټولی نړۍ د مخلوقاتو د حکومت واکمن دی ، یوازی هماغه ذات دا حق لری ، چې د انسانانو پر ژوند هم تسلط او اقتدار (Sovereignty) ولری هغه په دی خبره حیران شو ، د دغه دلیل لپاره یی هیڅ ځواب نه درلوده ، په اسمانی کتاب قرآنکریم کې دا پیښه داسی راغلی ده .

" ایا تاسو د هغه چا په حال غور ندی کړی چې له ابراهیم علیه السلام سره یی په دی خبره جګړه کوله چې ابراهیم علیه السلام ورته وویل : زما الله جل جلاله د مخلوقاتو د ژوند او مرګ واک لری ، او هغه وویل چې : دا کار زه هم کولای شم .

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِي حَاجَّ إِبْرَاهِيمَ فِي رَبِّهِ أَنْ آتَاهُ اللَّهُ الْمُلْكَ إِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّيَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ قَالَ أَنَا أُحْيِي وَأُمِيتُ قَالَ إِبْرَاهِيمُ فَإِنَّ اللَّهَ يَأْتِي بِالشَّمْسِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَأْتِ بِهَا مِنَ الْمَغْرِبِ فَبُهِتَ الَّذِي كَفَرَ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ [د البقره سورت ۲۵۸ آیت]

(ابراهیم علیه السلام بیا ورته وویل: الله تعالی لمر له ختیځ نه راخیژوی ته یی له لویدیځ نه راوخیژوه ، هغه د حق منکر چې دا خبره واوریدله نو حیران شو ، الله تعالی ظالمانو ته لاربښوونه نه کوي) .

الله تعالی په دی برخه کې فرمایلی دی :

أَفَغَيْرَ دِينِ اللَّهِ يَبْغُونَ وَلَهُ أَسْلَمَ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ طَوْعًا وَكَرْهًا وَإِلَيْهِ يُرْجَعُونَ [د ال عمران سورت ۸۲ آیت]

( ایا دغه خلک د الله تعالی له دین نه پرته کومه بله لار غوره کوی ، په داسی حال کې چې د ځمکې او اسمانونو موجودات په خوښی او ناچاری د الله جل جلاله د امر او فرمان تابع دی او د همغه په لور به ټول ورګرځی ) .

# اوم فصل

## اسلام ریښتونی تمدن دی

### د اسلامي او جاهلي ټولنې اساسي توپیر :

اسلام یوازې دوه ډوله ټولنې پیژني یوه اسلامي ټولنه او بله جاهلي ټولنه ، اسلامي ټولنه هغه ده ، چې د مشرتابه واکې یې د اسلام په لاس کې وي ، د انسانانو پر ګروهه ، عبادت ، اخلاقو ، معاملاتو ، د حکومت د چارو او نورو قوانینو او همدا رنګه د ژوند په هر اړخ کې عملا د اســلام واک موجود وي ، جاهلي ټولنه هغه ده چې اســلام د ټولنې په عملي ژوند کې بې واکه وي .

نه د اسلام عقایدو او تصوراتو ته څوک په درنښت ګوري او نه اسلامي اوامر او نواهي څوک مني ، نه د اسلامي قوانینو او ضوابطو حکومت وي ، او نه پکې اسلامي لوړ او غوره اخلاق ، څه برترې لري .

اسلامي ټولنه هغه نه ده چې له یو څو انسانانو نه چې ( د مسلمان په نامه یادیږي ) جوړه شوې وي ، خو اسلامي شریعت هلته هیڅ قانوني او اجرایې ارزښت ونلري ، په داسې ټولنه کې که د لمونځ روژې او حج مراسم پر ځای هم شي ، بیا هم ورته اسلامي ټولنه نشو ویلای ، بلکه هغه به یوه داسې ټولنه وي چې د الله جل جلاله او رسول الله صلی الله علیه وسلم د احکامو او پریکړو نه پرته د خپلو نفسي غوښتونو تر اغیزې لاندې غواړي ، چې اسلام په یوه نوې بڼه رامینځ ته کړي او د مثال په توګه هغه د " ترقي غوښتونکې " اسلام په نامه ونوموي .

جاهلي ټولنه په هره بڼه راڅرګندیدلای شي ، چې ټولې بڼې یې له جاهلیت نه سر چینه اخلي ، کله هغه د یوې داســې ټولنې کمیس واغونـــدي ، چې د الله تعالی له وجـــود نـــه یو مخیزه سترګې پټوي او د بشــري تاریخ جدلي توجیه (Dialectal Interpretation) کوي او علمي سوسیالیزم (Scientific Socialism) د ژوندانــه د بنسټیز نظـــام په توګه مني .

کله د یوی داسی ټولنی په بڼه رابنکاره شی چې د الله جل جلاله له وجود نه بالکل انکار نه کوی ، خو د هغه خدایې ځواک یوازی په اسمانونو پوری محدود ګڼی ، د ځمکې په فرمانروایې کې د هغه خدایی له سره نه منی ، نه خدایی شریعت ته د ژوند د سموونکې قانون په توګه د انفاذ حق ورکوی او نه د الله جل جلاله له خوا لالهانده بشر ته د غوره کړای شوو ابدی او نه بدلیدونکو معیارونو پر اساس د ژوندانه حق ورکوی .

هغوی یوازی خلکو ته دا اجازه ورکوی ، چې په جوماتونو ، کلیساوو او نورو عبادت ځایونو کې د الله جل جلاله ستاینه او یادونـــه وکړی ، خو دا نشی زغملای ، چې خلک دی د ژوند پـه نـورو اړخونو کې هم د اسـلام د عملی تعلیماتو حکومت تـــه غاړه کیږدی ، نو له دی امله دغـــه ټولنی د الله جل جلاله پـــه ځمکه کې د الله جل جلاله له خـدایې نه باغی ګڼل کیدای شي .

ځکه چې هغوی د الله جل جلاله قوانینو ته په عملی ژوند کې څه ارزښت نه ورکوی ، په داسی حال کې چې الله تعالی صریحا فرمایلی دی :

وهو الذی فی السماء اله وفی الارض اله ( هماغه الله جل جلاله دی چې په ځمکه کې هم الله دی او په اسمان کې هم الله دی ) ، د دوی د دغه ډول عمل له مخی ټولنه د الله جل جلاله د هغه سپیڅلی نظام په تعریف کې نشی راتلای ، چې الله تعالی په لاندنیو آیتونو کې د دین قیم په نامه تعبیر کړیده .

إِنْ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ أَمَرَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ ذَلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ [د یوسف سورت ۸۴ آیت ]

( فرمانروایې یوازی هماغه پاک ذات لره ښایې ، د هغه فرمان دی ، چې له هغه نه پرته به د بل چا بندګی نه کوی ، همدغه دین قیم ( د ژونـد پاکه او سمه لار ده ) .

همدغـه عمـل ، هغـه ټولنیز عمل دی ، چې د هغی له امله دغه ټولنه هم د جاهلی ټولـنو پـه قطار کې دریږی ، که هغوی سل ځله هم د الله جل جلاله په شته والـی ایمـان راوړی او خلـک پـه جومـاتونو ، او کلیسـاوو کې د الله جل جلاله له عبادت نه ایسار نه کړی .

## يوازې د اسلامي ټولنه مهذبه ټولنه ده

د دغې څېړنې په پيل کې ، چې مونږ د اسلامي ټولنې کومه پېژندنه وکړه ، نو د هغې له مخې بې ځايه نه ده ، چې ووايو په حقيقت کې يوازې اسلامي ټولنه مهذبه ټولنه ده ، جاهلي ټولنه چې په هر رنګ او بڼه وي . بنيادي توګه به وروسته پاتې او نا مهذبه ټولنه وي ، پکار ده چې د دغه اجمال وضاحت وکړو .

يو ځل ما د خپل تر چاپ لاندې کتاب اعلان خپور کړ او د هغه نوم مې نحو مجتمع اسلامي متحضر ( د مهذبې اسلامي ټولنې په لور ايښې و) ، خو په بل اعلان کې مې له دغه نوم نه د مهذب کلمه لرې کړه او نوم مې پرې يوازې " اسلامي ټولنه " کېښوده .

دغه موضوع د يوه الجزايري ليکوال له نظره چې په فرانسوي ژبه ليکنې کوي ، تيره شوې وه ، هغه په دې برخه کې د تبصرې په لړ کې ليکلي وو چې د دغه بدلون انګيزه هغه روحي عمل دی ، چې له اسلام نه د دفاع او پلوۍ په وخت کې ذهن متاثره کوي ، نوموړي په دغه حالت خواشينې ښکاره کړې وه او ويلي يې وو ، چې دغه عمل د فکري کمزورۍ او خامۍ نښه ده ، چې ليکوال له اصلي ستونزې سره له يوه ريښتونې او عالمانه برخورد نه ايسار وي .

زه دغه الجزايري ليکوال معذور ګڼم ، زه په خپله هم پخوا د هغه هم فکره وم او کله چې ما د لومړي ځل لپاره پر دغې موضوع د څه ليکلو لپاره قلم راپورته کړ همداسې فکر مې کاوه ، لکه څنګه يې چې اوس دغه الجزايري کوي ، له کومې ستونزې سره چې اوس دی مخامخ دی .

هغه وخت زه هم ورسره مخامخ وم يعنې دا چې " تهذيب څـه ته وايي ؟ تر هغه وخته پورې لا زه له خپلو علمي او فکري کمزوريو نه خلاص شوی نه وم ، چې زما له روحي او ذهني جوړښت سره اخښل شوې وې ، د دغو کمزوريو علت دا و چې هغه وخت زما پر ذهن د لويديځو اثارو ، افکارو او تصوراتو ګرد پروت و چې زما د اسلامي احساس او شعور هينداره يې خيرنه کړې وه .

او په هغه وخت کې هم زما د څرګند اسلامي ذوق او مفکورې مخالف وو ، همدغو اساسي کمزوريو زما د فکر او ضمير لوحه خيرنه کړې وه او د هغو سپيڅلي اسلامي انځورونه يې مسخ کړي وو ، د تهذيب هغه تصور چې د لويديځ ، مفکر انځور کړی و زما سترګو ، سترګو ته به کيده ، زما پر ذهن يې توره پرده غوړلې وه ، زه يې د سپيڅلي او څرګند حقيقت په پوهيدلو کې بې وسې کړی وم .

خو وروسته بيا د الله جل جلاله په فضل د اسلام اصلي تصوير زما مخې ته راغی او دا راز راته څرګند شو ، چې اسلامي ټولنه په اصل کې مهذبه ټولنه ده ، نو کله چې ما د خپل کتاب پر نامه غور وکړ نو ماته په کې د " تهذيب " لفظ زايد ښکاره شو .

ځکه چې د هغه له شته والي نه په مفهوم کې زياتوالي او څرګند والي نه راځي ، بلکه دا لفظ به د کمزورې ويونکې پر ذهن او احساس د هماغه پردې فکرې ( لويديځ فکر ) سيورې وکړې چې زما پر ذهن هم شوې و ، چې زه يې د يوه سم نظر له لرلو نه بې برخې کړی وم .

اوس تر ځيړنې لاندې موضوع دا ده ، چې تهذيب څه ته وايې ؟ د دغه حقيقت څرګندول ضروري دي ، په کومه ټولنه کې چې حاکميت يوازې د الهي شريعت لپاره مخصوص کړای شوی وي او د دې عملي ثبوت دا دی ، چې د خلکو د ژوندانه چارې هم په عمل او هم په نظر کې د الهي قانون تابع وي ، نو يوازې په داسې ټولنه کې انسان د ځان په ځير انسان له مرئيتوب نه د پوره ازادي خوند څکلی شي ، د دغې کاملې او حقيقي ازادي نوم " انساني تهذيب " دی .

دا ځکه چې انساني تهذيب يوه داسې اساسي اداره غواړي چې د هغې په ټاکلو بريدونو کې انسان له کاملې او رينښتونې ازادي نه برخوردار وي او د ټولنې هر وګړی بې له کومې اړې او شرط نه په پوره ازادي د انساني شرف او فضيلت له ښيګړو نه برخه من وي .

په کومه ټولنه کې چې دا حال وي ، چې څوک له ځانه شريعت جوړوي او پر خلکو يې ورتپي او پاتې نور خلک مريان وي ، نو په داسې ټولنه کې

انسان د انسان په توګه له انساني ازادیو نه بې برخې وي ، له هغه شرافت او فضیلت نه هم ګټه نشي اخیستلی ، چې له انسانیت سره تړلی دی .

دلته په ضمني توګه باید دا ټکې هم روښانه کړو ، چې د قانون ساحه یوازې تر احکامو پورې محدوده نه ده ، لکه څنګه چې اوس د شریعت د لفظ په باره کې د خلکو په ذهن کې یو ډېر لنډ تنګ مفهوم ځای نیولی دی ، مختلفې نظریې ، اوامرو ، نواهي ، ژوند دودونه او دستورونه ، دا ټول د قانون په دایره کې راتلای شي په قانون سره تنظیمیدای شي او پر خلکو اغیزه کوی .

که د انسانانو یو مخصوص ټولی د الهی قانون دغه ټول میتودونه تر پښو لاندې کړی او داسی وانګیری ، چې په دغو مسایلو کې د الله جل جلاله قانون ته اړتیا نشته ، په خپله قانون جوړ کړی او د ټولنی نور خلک په هغو مقید وګڼی ، نو داسی ټولنی ته څوک ازاده ټولنه ویلای شی ؟ دا خو داسی ټولنه ده ، چې ځینی خلک په کې د ربوبیت مقام لری او نور خلک د هغوی د بندګی په مصیبت اخته دی ، له همدی امله دغی ټولنی ته وروسته پاتی ټولنه یا په اسلامي اصطلاح جاهلی ټولنه وایی .

یوازی اسلامي ټولنه دا ځانګړتیا لری ، چې د قدرت واګی به یی یوازی د الله جل جلاله په لاس کې وی ، په دی توګه انسان د خپلو هم نوعو د غلامی زولنی ماتوی او د الله جل جلاله د غلامی په دایره کې داخلیږی ، په همدی توګه د بشپړی ازادی له نعمت نه چې د وګړیز تهذیب اصل ښیګړه ده برخه من کیږی ، په دغه ډول ټولنه کې انسان د ریښتونی انسان فضیلت او شرف په نور چې الله تعالی ورته غوره کړیدی منور کیږی .

په دغه ټولنه کې انسان له یوی خوا نه د الله جل جلاله د نیابت په منصب محسور ( سرخروی ) کیږی او له بلی خوا نه ، هغه ته دا اعلان کیږی چې دوی د ډیر لوړ مقام او دریځ د لاسته راوړلو وړ دی ، چې په غوره ځای " ملاء اعلی " کې ورته ځای ټاکل شویدی .

## د اسلامي او جاهلي ټولنې جوهري خصوصيات

په کومه ټولنه کې چې د وګړو ترمينځ يې د اړيکو او مدنيت بنيادي جرړې عقيده ، نظـر او ژوند دود وي او د هغې منبع او ماخذ هم يـوازې الله جل جلاله وي او انسان ته هم د هغه د نيابت وياړ ور په برخه وي ، داسې نه وي چې د انسان په غاړه کې د ځمکنيو اربابانو د غلامۍ کړۍ پرته وي ، بلکه برعکس ، انسان يوازې د الله جل جلاله بنده وي .

نو هغه وخت يوه داسې سپېڅلې انساني ټولنه مينځ ته راتلای شي ، چې په هغه کې به ټولې انساني ځانګړتياوې د ځلنده لمر په توګه ځرګندې وي ، چې د انسان په روح او فکر کې په امانت ايښودل شويدي ، خو که د دې برعکس په ټولنه کې د انساني اړيکو بنسټ د رنګ ، نژاد ، قوم ، هيواد او داسې نورو اساساتو باندې ولاړ وي ، نو ښکاره خبره ده ، چې دغه اساسات به د زنځيرونو پشان وي او هيڅکله به د انسانانو لوړو ځانګړتياو ته د ځرګنديدو زمينه برابره نه شي .

انسان چې د رنګ ، نژاد ، قوم او وطن له ځنځيرونو نه خلاص نه وي ، هم د انسان په توګه ژوند کولای شي ، خو له روح او عقل نه پرته هغه د انسان په څير نشي اوسيدای ، پردې سربيره هغه کولای شي ، چې د خپلې ګروهې په برخه کې پخپله غور وکړي او په خپله ازاده اراده د هغې د بدلولو اختيار لري ، خو د خپل رنګ او نسل په بدلولو قادر نه دی او نه هغه د دې خبرې قدرت لري ، چې د ځان په برخه کې په کوم مخصوص قوم او وطن کې د زوکړې پريکړه وکړي .

نو له دې امله دا ثابته شوه هغه ټولنه چې د جوړښت بنسټ يې په يوه داسې خبره ايښودل شوی وي ، چې هلته هرڅه د هغوی په ازادۍ او خوښې پورې اړه لري ، هماغه ټولنه د تهذيب په نور منوره ده او له دې نه پرته هغه ټولنه ، چې وګړي يې له اسلامي او انساني مفکورې نه پرته پر کوم بل اساس راټول شوي وي ، هغه وروسته پاتې ټولنه ده يا په اسلامي اصطلاح جاهلي ټولنه ده .

يوازي اسلامي ټولنه دا امتياز لري چې د بنسټ ډېره يې پر ګروهه ولاړه ده او په هغې کې يوازي او يوازي ګروهه قوي سند کيداى شي ، تور ، سپين ، ژيړ ، عربي ، رومي ، فارسي ، حبشي او دغه ډول قومونه ، چې د ځمکې پر مخ ميشت دي په يوه صف کې يې دروي او په يوه امت کې يې راټولوي ، چې معبود به يې يوازي الله جل جلاله وي او يوازي به د هغه په مخکې د عجز او بندګي سر ټيټوي .

په دوى کې به د عزت او پت خاوند هغه وي ، چې متقي وي او له الله جل جلاله نه ويره ولري ، د هغوى ټول وګړي د قانون په مخکې يو برابر حيثيت لري ، هغه قانون چې الله جل جلاله د دوى د ژوند د سمون لپاره غوره کړيدى ، نه د دوى په څير کوم انسان چې د خپلو شخصي اغراضو او ګټو څرک يې په کې وځليږي .

په کومه ټولنه کې چې د انسان انسانيت له ډيرو لوړو اهدافو او معيارونو نه ګڼل کيږي او انساني خصوصيات پکې د عزت او درناوى وړ وي ، نو هماغه ټولنه مهذبه او متمدنه ټولنه ده ، که چيرې ماديت په هره بڼه چې وى ، له اساسي او لوړو معيارونو نه وګڼل شي .

پرته له دې نه چې هغه د نظريې په بڼه وي.، لکه څنګه چې د تاريخ د مارکسيستي نظـريې په اساس لوړ معيارونه ماده پرستي ده يا د مـادي پيدا وارو په رنګ کې لکه څنګه چې پـه امريکا ، اروپا او هغو ټولو ټولنو کې همدا حال دى ، چې مادي پيدا وار د ژوند اساسي بنسټ ګڼي ، او د هغې په وړاندې ټول انساني خصوصيات او معيارونـه په سولې ( دار ) خيژوي ، داسې ټولنې تـه وروسته پاتې يا په اسلامي اصطلاح جاهلي ټولنه ويل کيږي .

مهذبه ټولنه يعنې اسلامي ټولنه مادي ته په سپکاوي نه ګوري ، نه د فکر او نظر له مخې هغه بې ارزښته ګڼي او نه مادي پيداوارو ته په سرسري نظر ګوري ، د اسلام نظر دا دى ، په دغو کائناتو کې چې مونږ ژوند کوو ، مونږ پرې اثر کوو او ترينه متاثره کيږو له مادې نه جوړ شويدى ، اسلام مادي پيدا وار په دنيا کې د اسلامي خلافت اډا نه ( پښتوانه ) ګڼي .

فرق يوازې همدومره دی ، چې اسلامي ټولنه مادي ته دومره لوړ مقام او دريغ نه ورکوي ، چې معبود ترې جوړ کړي ، داسې چې د تقدس په درشل به يې د انسان ټول روحاني او عقلي خصوصيات او د انسانيت لوازم سر په سجده ږدي ، او يا د فرد ازادي او شرف ترې ځار کړي .

د کورنی نظام ، بنسټ او اساس د همدې لپاره ونړوي ، ټولنيز اخلاق او د ټولنې سپيڅلې اړيکې ترې ځار کړي ، لنډه دا چې ټول لوړ انساني فضايل ، پت ، عزت شرافت او .... چې وګړوا له " بشريت " پرې وياړي ، له خاورو سره خاورې کړي ، لکه څنګه چې په ټولو جاهلي ټولنو کې د مادي پيدا وارو د زياتوالې لپاره دغه ټول کارونه شوي دي او کوي يې .

که د ټولنې د چارو واګې د لوړو انساني معيارونو او د هغې پر بنسټ روزل شوو انساني اخلاقو په لاس کې وي ، نو بې له شکه به دغه ټولنه په رېښتونې بڼه د تهذيب او تمدن زانګو وي ، انساني معيارونه او اخلاق څه داسې څيزونه نه دي ، چې څوک پرې برلاسې نشي او نه د تاريخ د مادي تفسير او علمي سوسياليزم Scientific Socialism د داعيانو د نظر پر اساس د زمانې له بدلون سره هره ګړۍ بدلون او تغير ته چمتو دي .

چې په هيڅ حال کې پر خپل حال او خپل ځای استقرار نلري او له کوم مرکز سره په کومو مزو تړلې نه دي ، دا هغه انساني ځانګړتياوې دي ، چې د انساني ځانګړتياوو ريښې ( چې انسان پرې له حيوان نه توپير کيږي ) خړوبوي او د انسانانو په کتار کې دروي .

دغه اخلاقي معيارونه او ميتودونه ، چې انسان د حيواناتو له کتار نه راوباسي او د انسانانو په کتار کې يې دروي داسې نه دي ، چې په انسان کې هغو ځانګړتياوو او صفاتو ته وده ورکړي چې په انسان او حيوان کې سره شريک دي .

## د تمدن پيمانه

که د تهذيب مسئله په دې تله وتلل شي ، نو دا به د لمر په څير څرګنده شي ، چې هغه ټولې هڅې او هلې ځلې چې ترقي غوښتونکې او د علمي

سوسیالیزم پلویان یې کوي ، بې ګټې دي ، چې وایې د تهذیب او تمدن ، اخلاقي معیارونه ، تغیر او بدلون مني .

د تهذیب د مخکینې او پورتنې ځیرنې نه دا هم څرګنده شوه چې د " محیط " او " عرف " اصطلاحات په حقیقت کې د اخلاقي معیارونو ټاکونکي نه دي ، بلکه د متغیر محیط او عرف تر شاه یو نه بدلیدونکې پوخ معیار او میزان موجود دی ، چې دغه معیارونه ټاکې .

همدا رنګه باید ووایو چې د اخلاقي معیارونو لپاره په ټاکل شوو بریدونو کې د دې خبرې ځای نشته ، چې مونږ یو لړ اخلاقو ته زراعتي اخلاق یا فیوډالي اخلاق ووایو ، چې د هغې په مقابل کې " صنعتي اخلاق " او پانګوالي اخلاق راشي او یا هم څه سوسیالیستي اخلاق ، بورژوازي اخلاق او پرو لتاري اخلاق وي ، چې هغه هم بیا څه موده وروسته له مینځه لاړ شي ، ځکه چې د بدلیدونکې محیط او چاپیریال محصول دي .

د دغه سرسري او برسیرن ( سطحي ) ویش پر خلاف په اسلامي ټولنه کې انساني اخلاق وي ، چې په مقابل کې یې حیواني اخلاق موجود دي ، په اسلامي اصطلاح دا خبره مونږ داسې کولای شو ، چې اخلاق یوازې دوه ډوله لري : اسلامي اخلاق او معیارونه ، جاهلي اخلاق او معیارونه .

اسلامي اخلاق او معیارونه د انسان په نفس کې هغو خصوصیاتو ته وده ورکوي ، چې انسان پرې له حیوان نه توپیر کیږي ، اسلام په هغو ټولو ، ټولنو کې چې برې او حکومت یې ور په برخه شي ، د همدغه ډول اخلاقي معیارونو تخم شیندي او بیا د هغې په وده او روزنه کې ربړ او زیار ګالي ، چې وده وکړي او میوه ونیسي ، اسلام هڅه کوي چې د دغه ډول تخم نیالګیو ریښې او ولې ډیرې ژورې او کلکې شي ، چې د پیښو توپانونه یې بې ځایه نکړای شي .

دا مهمه نده چې دغه ټولنې د کرنې په پړاو کې وي که په صنعتي پړاو کې ، بدوي ټولنې وي او که درمو ساتلو اوشپنې په پړاو کې ، متمدنې ، شتمنې او استقرار لرونکې ټولنې وي او که خوارې او نیستمنې ټولنې وي ، اسلام په هر وخت کې هڅه کوي ، چې لوړو انساني ځانګړتیاوو ته وده

ورکړي ، او له اخلاقي پلوه حیوانیت ته د هغوی له ورنژدې کیدو نه مخنیوی کوی .

په حقیقت کې د اخلاقي معیارونو او اصولو په دنیا کې د برید لیکه له حیوانیت سره له ښکې نه پورته خواته ځي او د حیوانیت له ټیټې پوړۍ نه د انسانیت لوړی او غوره پوړی په لور حرکت کوی ، خو که چیری دغه برید لیکه سرچپه بنه غوره کړی او له پورته نه ښکته خواته لاړه شي ، سره له دی چې په ټولنه کې به مادی پرمختګ ( تهذیب ) موجود وی ، خو بیا هم ورته د تهذیب نوم نشو ورکولای ، ځکه چې دا به تنزل او ټیټوالي ، یا جاهلیت وی .

## د تمدن په پرمختګ کې د کورنی اهمیت

که چیری کورنی د ټولنی اساس او بنسټ وی او د کورنی اصول د ښځی او نر ترمینځ د کار د ویش پر اصولو ولاړ وی او هغه څوک چې د کوم کار فطری وړتیا او لیاقت لری او د هغی پر اساس خپل مسئولیتونه ښه ترسره کولای شی ، او هم د نوی نسل با مسئولیته پالنه او روزنه خپلو اصلی وظایفو نه وګڼی نو داسی ټولنی ته بی له شکه مهذبه ټولنه ویلای شو .

د کورنی دغه ډول نظام او جوړښت به ربنتیا هم د اسلامي ژوند دوډ تر سیوری لاندی داسی چاپیریال مینځ ته راوړلی شی ، چې هلته د انسانی لوړو معیارونو او انسانی اخلاقو غوټی وغوړیږی او نوره هم وده وکړی او نوی توکم ( نسل ) په خپلی تازګی او خوږلنی د ریښتونی ژوند له خوږو سره اشنا کړی .

دغه لوړ اخلاقي معیارونه د کورنی له غیږی نه پرته بل ځای کې په سمه او فطری توګه د حقیقت جامه نشی اغوستلای ، خو کله چې جنسی اړیکې او ازادی ، چې په اوسنی پیړۍ کې ورته " د ازادو جنسی اړیکو " نوم هم ورکوی زیاتی شی او د دی پر اساس په ټولنه کې یو ناروا او نا مشروع نسل مینځ ته راشي او د نر او ښځی ترمینځ اړیکې یوازی د نفسی غوښتنو جنسی تندی ، او حیوانی پاروونکو اصولو پر اساس ټینګی شی ، د کورنیو مسئولیتونو او فطری وړتیا او صلاحیتونو پر اساس د کار ویش نه وی .

د ښځې کار پوازې ، زينت ، ښکلا ، ناز او هڅول وي ، د نوي توکم له روزنې نه ، چې اساسي وظيفه يې هم دا ده لاس واخلي او يا په خپله د تولنيزو غوښتنو او اړتياوو پر اساس په کوم هوټل ، الوتکه او يا سمندري جهاز کې د ميلمه پالۍ دنده ( وظيفه ) غوره وګڼي او په دې توګه خپل ټول اهليت او صلاحيت د انسان جوړونې پر ځای د مادياتو په پيدا کولو او جوړولو کې په کار واچوي .

خکه چې د انسان جوړولو پر ځای هغې ته د مادياتو ګټل زيات ګټور ، پتمن او د ستاينې وړ کار ښکاري ، نو داسې ټولنه له انساني تمدن سره د پرتلې په وخت کې ډيره سپکه خيژي او يوه بيرته پاتې ټولنه ده يا په اسلامي اصطلاح جاهلي ټولنه او جاهلي زمانه ده .

د کورني سيستم د اړيکو بنياد او اساس د ښځې او نر ترمينځ يوه داسې اسلمي مسئله ده ، چې د ټولنې د ځانګړتياوو ( مشخصات او خصوصيات ) په ټاکلو کې غوڅ او پريکنده نقش لري ، د هماغو اصولو پر اساس د ټولنو په برخه کې مونږ دا پريکړه کولای شو ، چې کومه ټولنه وروسته پاتې ، کومه پرمختللې او مهذبه ، کومه جاهلي ده او کومه هم اسلامي ټولنه ده .

په هغو ټولنو کې ، چې حيواني اخلاق ، معيارونه حيواني جذبات او اصول حکومت کوي ، هغو ته هيڅکله هم مهذبې ټولنې نشي ويل کيدای ، که له صنعتي ، علمي او اقتصادي پلوه هر څومره پرمختللې هم وي ، دا هغه پيمانه ده چې د " انساني پرمختګ " د اندازې په ټاکلو کې هيڅ ډول تيروتنه ( سهوه ) او غلطي نه کوي .

## د لويديځ تمدن څرنګوالی

د اوسنې پيړۍ په جاهلي ټولنو کې د اخلاقو مفهوم دومره لنډ او تنګ شوی دی ، چې د دغه مفهوم له کړۍ نه د اخلاقو هر هغه اړخ بهر شويدی ، چې د انسان او حيوان ترمينځ په د توپير بريد ليکه وه ، په دغو ټولنو کې ناروا جنسي اړيکې خو لا څه کوي ان تردې چې د هم جنسو ترمينځ هم جنسي افعال اخلاقي نيمګړتيا او عيب نه ګڼل کيږي ، اخلاقي مفاهيم په

اقتصادي معاملو او کله کله په سیاست کې هم د اعتبار وړ ګڼل کیږي ، هغه هم د ګټو د خوندي ساتلو تر حده پورې نه له هغې نه زیات او نه کم .

د ساری په توګه د کرستن کیلر او برطانوي وزیر دفاع پروفیمو افتضاح په انګلیسي ټولنه کې د جنسي اړیکو له امله کومه د شرم او اهمیت وړ خبره نه وه ، دغه پیښه که د شرم وړ وه ، نو یوازې له دې پلوه وه ، چې کریستن کیلر په یوه وخت کې هم د پروفیمو محبوبه وه او هم یې د روسي سفارت له سمندري اتاشه سره د معاشقې اړیکې موجودې وې .

نو له دې امله د دغې ښکلې او کم عمره نجلې د اړیکو له امله د انګلستان د دفاع له وزیر سره دا ویره وه ، چې د برطانیې نظامي اسرار د روسانو لاسته ورنشي ، پردې سربیره دا هم ، چې نوموړي وزیر د پارلمان د غړو په مخکې د دغې پیښې په هکله درواغ وویل او هغه څرګند شول د همدغې پیښې په څیر د امریکا د سنا په مجلس کې هم یوه رسوایې مینځ ته راغله ، چې د امریکایې او انګریزي جاسوسانو ( څرو) او دولتي مامورینو د حیا سوزوونکو اعمالو له مخې یې پرده پورته کړله .

هغوی وتښتیدل او روسانو ته یې پناه ور وړه ، خو دا ټولې پیښې په هغو ټولنو کې له دې امله د تاسف او شرم وړ نه وې ، چې تر شا یې د هم جنسو ترمینځ د جنسي افعالو ناوړه ډرامه روانه وه ، بلکه یوازې له دې امله د تاسف او شرم وړ وې ، چې د امریکا دولتي اسرار پټکې د روسانو لاسته ورتلل .

په اوسنیو جاهلي ټولنو کې مونږ وینو چې د قلم خاوندان ، ادبیان ، او افسانه لیکونکې ، په ښکاره او څرګنده توګه په خپلو لیکنو کې پیغلو نجونو او واده شوو ښځو ته دا تبلیغ کوي ، چې د آزادو جنسي اړیکو درلودل کومه اخلاقي نیمګړتیا او عیب نه دی .

نیمګړتیا او عیب دا دی ، چې کومه نجلۍ له هلک سره او یا کوم هلک له نجلۍ سره د دوی په اصطلاح د ریښتوني مینې پر ځای دروغژنه مینه ولري او یو بل و دروهوي او دوستي یې پاکه نه وي !!!

دا هم ستر عیب او نیمګړتیا ده ، چې کومه پیغله تر پایه پورې خپل عفت وساتي او هغه یوازې د خپل خاوند حق وګڼي ، دا هم په هغو ټولنو کې

پرمختیا لپاره له هغو قوانینو نه ګټه واخلي او د ځمکې د بې بها خزانو او خوراک د بې پایه ذخیرو د پیدا کولو لپاره یې پکار اچوي .

چې الله جل جلاله د کائناتو په سینه کې پټ ساتلي دي او انسان ته یې دا قدرت ورکړیدی ، چې دغه پټ مهرونه تر هغه اندازې پورې ماتولای شي او پر اسرارو یې ځان پوهولی شي تر کومې اندازې چې د الهي نیابت د وظیفې د سر ته رسولو لپاره ضروري او لازم دي .

لنډه دا کله چې انسان په نړۍ کې د الله جل جلاله له عهد او میثاق سره سم د الهي خلافت توغ پورته کړي او د دغه خلافت تر سیورې لاندې د رزق خزانې را پیدا کړي ، اومه مواد په صنعتي موادو بدل کړي ، او ډول ډول صنعتي مواد مینځ ته راوړي او له هغو ټولو فني تجربو او علمي معلوماتو نه کار واخلي ، چې د بشري تاریخ ثمره ده ، هغه دغه ټول کارونه د یوه موحد او الله جل جلاله پرست انسان په توګه او د الله جل جلاله د ریښتوني خلیفه او ستایونکې په توګه سر ته رسوي .

کله چې یو انسان د ژوند په مادي او اخلاقي برخه کې دغه ډول سلوک او رویه ولري ، نو بې له شکه به دغه انسان د تهذیب له مخې لوړو پوړیو ته ورسیږي ، یوازې همدغه ټولنه د تهذیب لوړتیا پر بنسټ خپله مانۍ ودانولای شي ، یوازې مادي پرمختګ د اسلام له نظره تهذیب او تمدن نه دی .

مادي پرمختګ او جاهلیت د یوه بل منافي نه دي ، دا خبره هیڅ له امکانه لرې نه ده ، چې ټولنه د مادي پرمختګ لوړو پوړیو ته رسیدلې وي او له دې سره سره به پکې د جاهلیت دوره هم وي ، له همدې امله الله جل جلاله د قرآن کریم په ګنو ځایونو کې د جاهلیت د بیانولو په وخت کې د جاهلي ټولنو د مادي پرمختګونو بیان هم کړیدی ، په لاندنیو آیتونو کې یې مثالونه لیدلای شي .

أَتَبْنُونَ بِكُلِّ رِيعٍ آيَةً تَعْبَثُونَ() وَتَتَّخِذُونَ مَصَانِعَ لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُونَ() وَإِذَا بَطَشْتُم بَطَشْتُمْ جَبَّارِينَ() فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ () وَاتَّقُوا الَّذِي أَمَدَّكُم بِمَا

چې څلورو خواوو ته يې د ساتنې لپاره داسې ديوالونه موجود وي ، چې د اوسيدونکو اذهان يې په پوره توګه ارام ، او مطمئن وي او د جذباتو سمندر يې په پاروونکو شهواني تبليغاتو توپاني نشي .

د دغه ښوونځي بنسټ بايد د يوه داسې ستر مسئوليت د سر ته رسولو لپاره اېښودل شوي وي ، چې د وخت او مهال له شرايطو نه متاثر نه شي ، خو د هغې ټولنې د رېښو اوبه خور چې له ناپاکو تعليماتو او زهرجنو مشورو له چينې څخه وي او د اخلاقي معيارونو ساحه پکې دومره تنګه وي ، چې له ټولو جنسي ادابو نه خالي شي ، نو په داسې ټولنه کې د يوه انسان جوړوونکې ښوونځي د جوړونې او بنسټ ايښودنې لپاره هيڅ ځای نشته .

پورتني مسايل په خپله د دې خبرې ستر دلايل دي ، چې يوازې اسلامي اخلاق او معيارونه او اسلامي تعليمات د انسان د اخلاقي روزنې لپاره ګټور ثابتيدای شي او د پرمختګ د کوټلي او نه بدليدونکې پيمانې له مخې اسلام اصلي او رېښتوني تهذيب دی ، او اسلامي ټولنه د تهذيب اصلي زانګو ده .

## الله تعالی ستايونکې تمدن او مادي پرمختګ

کله چې انسان په نړۍ کې د الله جل جلاله خلافت په هر اړخيزه توګه پر ښنو ودروي او د هغه دغو ښنتو له مخې يوازې د الله جل جلاله بندګۍ ته ځان وقف کړي او له الله جل جلاله نه پرته د هر ډول بندګۍ څنځيرونه وشلوي ، يوازې د الله جل جلاله غوره کړی نظام په خپل ژوند کې عملي کړي ، او نور ټول غير الهي نظامونه په يو مخيزه توګه رد کړي او د بل هر قانون او شريعت له پيروۍ او منلو نه لاس واخلي او د خپل ژوند په هر اړخ کې د الله جل جلاله شريعت حاکم کړي .

په هغو اخلاقو او معيارونو عمل وکړي ، چې الله جل جلاله ته غوره دي او د تش په نوم اخلاقي معيارونو ديوالونه ونړوي ، له يوې خوا نه دغه ډول سلوک غوره کړي او له بلې خوا نه د هغو طبعي قوانينو پلټنه وکړي ، چې الله جل جـ له په مادي اسبابو کې په امانت اېښودلي دي او د ژوند د

تَعْلَمُونَ() أَمَدَّكُمْ بِأَنْعَامٍ وَبَنِينَ()وَجَنَّاتٍ وَعُيُونٍ()إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ [د الشعراء ۱۲۸ – ۱۳۵ آيتونه]

( دا ستاسو څه حال دی ، چې په هر لوړ ځای يوه بې ګټې او عبث يادګاري مانۍ جوړوی او ستر قصرونه جوړوی لکه چې تاسو د تل لپاره اوسی ، او کله چې مواخذه کوی نو ډيره ظالمانه مواخذه کوی ، څرنګه چې تاسو ظالمان يی نو له الله جل جلاله نه ووېرېږی او د هغه اطاعت وکړی او همدا رنګه له هغه ذات نه ووېرېږی چې له تاسو سـسره يی مرسته کړيـده ، تاسو سره يی د څارويو ، اولادونو ، باغونو او چينو پـه درکولو مرسته وکړه ، ورته ووايه زه ستاسو په برخه کې د قيامت له سخت عذاب نه په وېره کې يم ) .

أَتُتْرَكُونَ فِي مَا هَاهُنَا آمِنِينَ()فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ()وَزُرُوعٍ وَنَخْلٍ طَلْعُهَا هَضِيمٌ()وَتَنْحِتُونَ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا فَارِهِينَ()فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ()وَلَا تُطِيعُوا أَمْرَ الْمُسْرِفِينَ()الَّذِينَ يُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ وَلَا يُصْلِحُونَ [ الشعراء : ۱۴۶ - ۱۵۲ ]

( ايا تاسو به د دی تولو څيزونو ترمينځ چې دلته موجود دی همداسی په ډاډ ژوند وکړی ؟ په دغو باغونو او چينو کې ؟ په دغو کروندو او يا د خرما په باغونو کې ، چې غوټی يی پستی او نازکې دی ، تاسو په غرونو کې ځان ته پر تکلفه ودانی جوړی کړی دی او فکر کوی چې تل به پکې اوسی ، له الله جل جلاله نه ووېرېږی او زما د اطاعت او بندګی پـه لار روان شي ، د هغو مسرفو او تيری کوونکو خلکو او مشـرانو اطاعت مه کوی ، چې د الله جل جلاله په ځمکه کې فساد کوی او هيڅکله د خلکو ترمينځ د سولی او سمون لپاره اقدام نه کوی )

فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا بِهِ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ أَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ حَتَّى إِذَا فَرِحُوا بِمَا أُوتُوا أَخَذْنَاهُمْ بَغْتَةً فَإِذَا هُمْ مُبْلِسُونَ(٤٤)فَقُطِعَ دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِينَ ظَلَمُوا وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ [د الانعام ۴۳ - ۴۴آيتونه]

( کله چې هغوی ، هغه ټول نصيحتونه چې ورته شوی وو هير کړل مونږ هم د هر ډول نعمت نه دروازی ورته پرانيستلی ، تر هغی چې د هماغو

نعمتونو له امله چې ورکړې مو وو ، خوښ او مغروره شول ، نو بیا مو ناڅاپه هغوی د خپلو بدو اعمالو په سزا ورسول ، هغه وخت بیا خوار او نا امیده شول ، نو په دې توګه مو د ظالمانو بنیاد جرړې وایستلې ، ټوله ستاینه الله جل جلاله لره ده ، چې د نړیوالو پروردګار دی ) .

حَتَّى إِذَا أَخَذَتْ الْأَرْضُ زُخْرُفَهَا وَازَّيَّنَتْ وَظَنَّ أَهْلُهَا أَنَّهُمْ قَادِرُونَ عَلَيْهَا أَتَاهَا أَمْرُنَا لَيْلًا أَوْ نَهَارًا فَجَعَلْنَاهَا حَصِيدًا كَأَنْ لَمْ تَغْنَ بِالْأَمْسِ [یونس ۲۴ ]

( تر هغه وخته چې ځمکه سمسوره شي او له ښکلا نه د شنو کروندو په ګانه سینګار شي او د هغوی څښتنانو دا فکر وکړ ، چې اوس دوی له هغې نه په تصرف او ګټې اخیستو قادر دي ، ناڅاپه په شپه یا ورځ زمونږ حکم او فرمان راغی ، نو هغه مو د ریبل شوی کښت په څیر وچه دښته وګرځوله ، ته به وایې پرون هلته هیڅ نه وو ) .

خو لکه څنګه چې مونږ مخکې وویل ، اسلام د ما ی پرمختګ او مادي وسایلو مخالف نه دی او د هغو د اهمیت او ارزښت د کمولو په تکل کې هم نه دی ، بلکه الله جل جلاله د الهی نظام تر سیورې لاندې مادي پرمختګ ته د یوه نعمت حیثیت ورکوي او د اطاعت ، فرمانبرداری په صله کې انسان ته د دغه نعمت د ورکولو زیرې هم ورکوي :

فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا()يُرْسِلْ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا()وَيُمْدِدْكُمْ بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ وَيَجْعَلْ لَكُمْ جَنَّاتٍ وَيَجْعَلْ لَكُمْ أَنْهَارًا [د نوح سورت ۱۰ - ۱۲آیتونه ]

(نوح علیه السلام فرمایي : ما خپل قوم ته وویل ، له خپل پروردګار نه ښښنه وغواړئ ، بې له شکه هغه ډیر ښښونکی دی ، چې هماغه تاسو په پرله پسې توګه د رحمت بارانونه ورو ي او له تاسو سره به د اولادونو او شتو په درکولو کې مرسته وکړي ، تاسو ته به باغونه جوړ کړي او ویالې به رواني کړي ) .

وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ الْقُرَى آمَنُوا وَاتَّقَوْا لَفَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَرَكَاتٍ مِنْ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ وَلَكِنْ كَذَّبُوا فَأَخَذْنَاهُمْ بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ [د الاعراف سورت ۹۶ آیت ]

( که د کلیو خلکو ایمان راوړی وای تقوی او پاکې غوره کړې وای ، نو مونږ به له ځمکې او اسمان نه د برکتونو دروازې هغوی ته خلاصې کړې

وای ، خو هغوی درواغ وکړل ، نو له همدی امله مونږ له هغوی نه د ناروا ګټی له امله هغه څه واخیستل چې دوی ټولول ) .

مادی ګټی او پرمختګ د اسلام له نظره اصل او غایه نه ده ، اصل او غایه هغه تصور او عقیده ده ، چې د مادی پرمختګ او صنعت مانی یی پر بنسټ ودانیږی او د ژوند هغه معیارونه دی ، چې په ټولنه کې یې ارزښت او اهمیت پیدا کیږی او د مجموعی له عملی کیدو نه یی د انسانی تهذیب د ځانګړتیاوو اساسی خطوط جوړیږی .

## د اسلامي ټولنی د پیل او پرمختګ پنځیز ( فطري ) نظام

په اسلامي ټولنه کې د ازادی اساس او د هغی د بنسټ د ډبری ایښودنه په داسی ډول چې د غرو ترمینځ دی د یوه ارګان د غړو په څیر یو والی او نظم موجود وی ، دواړه هغه ښیګړی او غوره صفتونه دی ، چې اسلامي ټولنی ته یی داسي ځانګړی او غوره بڼه ورکړیده ، چې ساری یی نه لیدل کیږی ، هغه تیوری او نظریات چې په جاهلی ټولنو کې د پرمختګ لپاره ازمایل شویدی او د هغوی له پرمختیا یی فطرت سره اړخ لګوی په اسلامي ټولنه کې د تطبیق وړ ندی .

د اسلامي ټولنی مینځ ته راتګ او پاڅون د یوه حرکت د زیار او ستونزو نتیجه ده ، د حرکت دغه اصل به په دغه ټولنه کې تل موجود وی ، یوازې په همدی ټولنه کې دغه حرکت د هر وګړی دریځ ، ارزښت او مقام ټاکې او بیا د دغه ټاکل شوی ارزښت له مخی په ټولنه کې د هغه اصلی دنده او ټولنیز دریځ څرګندیدلای شي ، د هغه حرکت له بطن نه چې دغه ټولنه زوکړه کوی د هغه حرکت فکری او عملی ماخذ او منبع د انسانی چاپیریال له بریدونو نه بهر دی .

دغه حرکت په حقیقت کې د هغی ګروهی خوځنده انځور دی ، چې د الله جل جلاله له خوا نه پر انسان نازل شویدی ، انسان ته د پنځ ( طبیعت ) ژوند ، او انسانی تاریخ په برخه کې یو مخصوص تصور او نظر ورکوی ، د ژوند مقاصدو او معیارونو ته نوی مفهوم وربښی او د زیار او

ستونزو ګاللو ځانګړې لار ورښيي ، چې د دغـه تحريک له تولنيز مزاج سـره اړخ لګوي .

هغه لومړی محرک چې د تحريک د لمر څرک باعث شو د هغه د وړانګو مرکز انساني نفسونه نه وو ، او نه د مادي کائناتو کومه برخه د هغه د حرارت او ګرمی مرکز و ، بلکه لکه څنګه چې مونږ مخکې وويل د هغه محرک منبع او ماخذ له بشري نړۍ نه ماوراء قدرت او ځواک وو ، او همدغه هغه ځانګړې ښه والی دی ، چې اسلامي ټولنه او د هغې جوړوونکې اجزا له نورو ټولو ټولنو نه جلا کوي .

## د اسلامي پاڅون پنځير ( طبيعی ) پړاوونه او د هغه د کار کولو ځانګړی مقام :

دغه غير مادي عنصر د الهی تقدير او غيب له پردی نه مينځ ته راځي ، د هغه له رامينځ ته کيدو نه مخکې د انسان ذهن بيخی خالی وی او د هغه په پيل کيدو کې هم انسان لاس نه لری ، د همدغه غيبی عنصر په غوښتنه اسلامي تحريک د اسلامي ټولنې د تخم شيندلو لومړی ګام پورته کوي .

او له دی سره د هغه عنصر له خوا د " انسان جوړوني " عمليه پيل کيږي ، د يوه داسی انسان د جوړولو عمل پيل کيږي ، چې پر هغه ګروهه ايمان ولري ، چې د غيب له منبع نه القاء شويده او له يوی مخی د الهی تقدير په غوښتنه جاري شويده ، که چيري يو انسان هم پر دغه ګروهه ايمان راوړي ، نو اصولا د اسلامي ټولنی د بنسټ ډبره ايښودل کيږي .

کله چې دغه يوازينی انسان دغه ګروهه ومنی نو داسی دی نکوی چې هغه د خپل ذهن په ځرندی ( زير زمينی ) کې پټه وساتی ، بلکه د همدی ګروهی د مزاج او غوښتنی له مخی مکلف دی چې راپورته شي او هغه د نړۍ ګوټ ، ګوټ ته ورسوی .

دا ځکه چې ددی ګروهی د فطرت غوښتنه همداسی ده او د يوه فعال تحريک او نهضت خصوصيت او فطرت هم همداسی وی ، هغه لوړ ذات او قدرت چې د دغی ګروهی ډيوه يی د انسان په زړه کې روښانه کړيده هغه په دی ښه پوهيږی ، چې د دغی ډيوی وړانګی د زړه له کوره راوځی د انسان

او کائناتو په ذره ، ذره به خپل نقش ثبت کړي ، د ایمان هغه لومړی ځلنده پلوشي ، چې د هغې له برکته د زړه دنیا د ایمان په نور منوره شویده ، هغه به ضرور بهرنۍ دنیا ته هم راوځي او خپرې به شي .

د دغې ګروهې د ګروهمنو شمیر چې دریوو ته ورسیږي ، نو دغه عقیده هغوی ته وایې چې " تاسو اوس یوه ټولنه یی " یوه جلا اسلامي ټولنه ، او له هغې جاهلي ټولنې نه غوره او ممتازه ټولنه ، چې دغه ګروهه نه مني او د دغې ګروهې بنیادي اصولو تـه پکې په څه ارزښت او لوړوالي نه دي قایل ( هغه بنیادي اسلامي اصول چې مونږ مخکې ورته اشاره وکړه ) اوس اسلامي ټولنه عملا مینځ ته راغلې ده ، همدغه درې کسان به لس شي او د لسو له زیار او کړاو ، نه به سل ، زر ، او دولس زره شي ، په دې توګه به اسلامي ټولنه په پوره پوره توګه جوړه شي .

د تحریک د پرمختګ په دوران کې له جاهلیت سره شخړې او جګړې هم پیښیږي ، له یوې خـوا هغه نـوې جوړه شـوې ټولنه وي چې د ګروهې او تصوراتو له امله ، د ژونـد د معیارونو او تهذیبي اصولو له امله ، د خپل تنظیم او جلا مـوجودیت له امله ، له جاهلي ټولنې نه بیله شـوې وي او بل اړخ تـه جاهلي ټولنه وي ، چې له هغې نـه اسلامي ټولنه غـوره خلک ځانته راجذبوي .

دغه تحریک د پرمختګ په دې پړاو کې چې له پیل نه یې مشخص او ځانګړې هویت د ټولنې د جوړښت تر پړاو پورې څرګند دی ، خپل غړي په ښه توګه د اسلامي ازمیښت په تله تلي او هر وګړي ته په ټولنه کې هماغومره دریځ ، پوړی او وزن ورکوي ، چې څومره د اسلامي تلې او کانې په تول دروند ختلي وي ، د ټولنې له خوا په خپله د هغه په وړتیا او غوره والي اعتراف کیږي ، هغه ته دا ضرورت نه پیښیږي ، چې په خپله راولاړ شي د خپل اهلیت او وړتیا ثبوت وړاندې کړي او بیا هر چیرته دا مسئله اعلان هم کړي .

هغه عقیده او سپیڅلي معیارونه چې دي او دده ټولنه یې جوړه کړې ده ، هغه دې دیته اړ باسي ، چې له هغو سترګو نه خپل ځان پټ وساتي چې د

داسې وګړو په لټون کې وي ، چې کوم وړاو اهل سړی ته ستر مسئولیت ( د مسلمانانو چارې ) ور په غاړه کړي .

خو اسلامي تحریک چې د اسلامي ګروهې پنځیزه ( طبعي ) نتیجه ده ، او د همدغې ګروهې په ورشو کې د راټوکیدلې ټولنې پنځیز ( فطري ) جوهر دی ، هیڅکله دا اجازه نه ورکوي چې خپل فعال غړي د ګوشه نشینۍ نذر کړي ، ددغه تحریک هر وګړي ته پکار دي ، چې تل مصروف وي .

د هغه ټولنه باید تل ( سیمابي ) کیفیت ولري او د دغې ځواکمنې ( توانا ) ټولنې د تکمیل لپاره باید هر غړی دسپیلنی ، د داني په څیر ناکراره وي او له هغه جاهلیت سره دغره ووهي ، چې د ده پر چاپیریال مسلط دی ، ان تردې چې ځینې واړه اثرات یې د ده او د ده د ملګرو په نفس کې موجود دي ، نو له دې امله دغه جګړه او کشمکش یوه همیشنۍ جګړه ده ، د نبوي ارشاد مفهوم هم همدا دی چې فرمایي : جهاد به تر قیامته پورې جاري وي .

د خپل سفر په دوران کې چې تحریک له کومو لوړو ژورو نه تیریږي ، په حقیقت کې دا هم ځانته څرګند وي ، چې د دغې تحریکې ټولنې د هر غړي دریځ او د کار کیفیت څرنګه دی ، پر دې حقیقت باید هیڅکله هم سترګې پټې نشي ، چې د وګړو ، منصبونو او وظایفو ترمینځ مناسبت او وړتیا د تحریک د پرمختګ لپاره بیخي ضروري ده .

د اسلامي ټولنې د پیل ډول او د تکمیل دغه اسلوب دوه داسې څرګندې ځانګړتیاوې دي ، چې د هغې د موجودیت او ترکیب ، مزاج او بڼه ، نظام او د هغې د عملي کار لاره ، له نورو ټولو ټولنو نه بیلوي او هغې ته یو ځانګړی او غوره دریځ ورکوي .

تر دې مسئلې وروسته دغه پوښتنه فکر کوم له بحث نه بهر ده چې څوک وایي : په نورو ټولنیزو نظریاتو سره هم اسلامي ټولنه او هغه صفات او ځانګړتیاوې ، چې مونږ اوس بیان کړې مینځ ته راتلای شي ، یا په کوم تعلیمي نظام سره هم لاسته راتلای شي .

## اسلامي تمدن د بشريت ميراث دی

د تمدن د مخکينی تعريف له مخی اسلامي ټولنه يوازی د يوی مجردی تاريخي مرحلی نوم نه دی ، چې تيری خاطرې او افسانی راته بيان کړی ، بلکه اسلامي ټولنه هغه ټولنه ده ، چې تل د حال او ګاندی ( آينده ) د هوسايني او ارامتيا لپاره په هڅه او هاند کې ده .

يا په ساده وينا يوه داسی ژوند جوړوونکې ټولنه ده ، چې ټول انسانيت ترينه اوس هم ګټه اخيستلی شي او په آينده کې هم ، همدا رنګه د همدی ټولنی د جوړښت له امله د جاهليت د خوسا ډنډونو د ذلت له ژوند نه چې اوس پکې تر ستونی ډوب دی راوتلی شي ، د ذلت په دغو خوسا ډنډونو کې هغه قومونه هم په اخلاقي لحاظ سلګی وهی ، چې د صنعتی او مادی پرمختګونو په لحاظ د نورو د رهبری حيثيت لری او هغه ټولنی هم چې کمزوری ګڼل کيږي .

دغو معيارونو ته چې مونږ په سرسری توګه اشاره وکړه ټول انسانی معيارونه دی او بشريت تر اوسه پوری يوازی يو ځل په عملی توګه ليدلی دی او هغه د اسلامي تهذيب او تمدن دوره وه ، له اسلامي تهذيب نه زمونږ مطلب هغه تهذيب دی ، چې دغه معيارونه پکې د اتم په درجه په عملی توګه موجود وی ، هغه تمدن چې دغه معيارونه پکې نه وی که د اقتصادي او ساينسی پرمختګ له مخی يی هوايې بيړۍ په مريخ کې هم ګرځی ، هيڅکله اسلامي تهذيب نه دي .

دغه معيارونه تخيل نه دی ، چې څوک يی عملی کيدو ته هيله من ونه اوسی ، بلکه سر تر پايه علمی معيارونه دی او د حقيقت له دنيا سره اړيکې لری ، که څوک هر وخت د سمو اسلامي مفاهيمو او اصولو په رڼا کې د دغو معيارونو د عملی کولو هڅه وکړی ، او هغه په سمه توګه وپالی او خلک په هماغه دود وروزی نو په پوره يقين او باور سره دا ويلای شو ، چې په هر ماحول او چاپيريال کې عملی جامه ور اغوستلی شي ، که هلته د ژوند هر ډول نظام موجود وی او هغه ټولنه د صنعت او پرمختګ په هر پړاو کې وي .

او ولي دي نه وي ، ځکه چې دا اصول او معيارونه خو انساني ژوند په يوه اړخ کې هم له پرمختګ او ترقي نه ، نه يوازې دا چې نه ايساروي بلکه لا هڅه هم کوي ، چې د پرمختګ لارې ورته پرانيزي ، دا ځکه چې د اسلامي عقيدې فطرت همدا غوښتنه کوي ، چې په دې برخه کې له انسان سره مرسته وکړي ، د ژوند دغه معيارونه په هغو هيوادونو کې د يوه ليدونکې په توګه چپه خوله نشي پاتې کيدلی چې له اخلاقي پلوه د بې تهذيبي او بې شرمۍ په ډنډونو کې غوپې وهي .

دا ځکه چې دغه تهذيب او تمدن يو نړيوال تمدن دی او په هر ډول محيط او هر وخت ومهال کې وده کولای شي ، خو يوازې د هغو معيارونو پر بنسټ وده کولای شي ، چې د دغه نهضت خپل مشخص او غوره معيارونه دي ، د دغو معيارونو مادي تشکيلات او مظاهر هيڅ حد وحصر نه لري ، ځکه چې مادي تشکيلات په محيط او ماحول کې د هماغه محيط له صلاحيتونو او قوتونو نه چې هلته موجودوي ګټه اخلي ، هغه استعمالوي او وده ورکوي .

له پورتني توضيح نه دا څرګنده شوه ، چې اسلامي ټولنه د خپل جوړښت ، حجم ، پراختيا او د ژوند دود له نظره کوم جامد او نه بدليدونکې تاريخي انځور ندی ، خو سره له دې هم د اسلامي ټولنې وجود او تهذيب په اساسي اصولو کې لازما له ډيرو پخو ، نه بدليدونکو او د انساني تاريخ له څرګندو حقايقو نه جوړ شويدی ، د ژوند له هغو اسلامي معيارونو نه چې مونږ ورته ( تاريخي حقايق ) وايو ، زمونږ مطلب يوازې دا دی ، چې دغه حقايق د تاريخ په يوه مخصوص پړاو کې په عملي توګه موجود وو .

او انسان له هغو سره اشنا دی ، له تاريخي معيارونو او حقايقو نه مطلب دا نه دی ، چې دا د تاريخ محصول دی ، حقيقت دا دی ، چې دغه معيارونه د خپلې پنځيزې ( فطري ) ځانګړتيا له امله د کومې خاصې او ټاکلې زمانې سره تړلې ندي ، بلکه د هر وخت او زمان له شرايطو سره اړخ لګولی شي او دا سپيڅلي معيارونه انسانانو ته له هغې ازلي چينې نه

راغلي دي چې زباتي منبع لري او د مادي کائناتو او انسانانو له څواک او واک نه په بهرني ايماني دنيا پوري اړه لري .

د اسلامي تمدن مادي بڼي د وخت او محيط له غوښتنو سره بدليږي

اسلامي تهذيب د خپل مادي او ظاهري تنظيم لپاره ډول ، ډول بڼي غوره کولای شي ، خو د کومو اصولو پر بنسټ چې د دغه تمدن مانۍ ولاړه ده ، هغه بې له شکه دايمي نه بدليدونکې اصول دی ، دا ځکه چې دا اصول د دی تمدن ريښتوني او اساسي ستن ده .

هغه اصول دا دي : يوازې د يوه الله جل جلاله بندګی ، د توحيد د ګروهې پر اساس د انساني تولنې جوړونه ، پر ماديت باندې د انسانيت برې ، د انساني معيارونو وده او پرمختګ او د هغې په واسطه په انسان کې دننه د حيواني صفاتو مثبت بدلون ، د انساني صفاتو په پرمختګ کې د دغو اصولو کارونه ( استعمال ) د کورنۍ نظام درناوی ، د الهي تعليماتو لارښوونو او ژمنو پر بنياد په نړۍ کې د الله جل جلاله د خلافت قيام او د خلافت په ټولو سترو او کوچني مسئلو کې يوازې د الهي شريعت او د ژوند د قانون حاکميت ؟

مخکې مو وويل اسلامي تمدن د خپل مادي نظم او انتظام لپاره له هغو معيارونو نه کار اخلي ، چې عملا په کوم ماحول کې موجود وي ، له همدې امله د اسلامي تمدن مادي بڼې او خاکې سره له دې ، چې اساسا پر ابدي او نه بدليدونکو اصولو ولاړې دي بيا هم د ساينس ، اقتصاد او صنعت له پرمختګ سره په مختلفو اندازو او مرحلو کې متاثرې کيږي .

ځکه چې په فروعاتو کې بدلون راوستل يوه اړتيا ده ، دغه تبديلي په خپله د دې خبرې ضمانت کوي ، چې په اسلام کې دومره اهليت او نرمي شته چې په هر ډول محيط او هره سطحه کې د ژوند چارې په معموله توګه په خپل پنځيز ( فطري ) مسير روانولای شي .

د اسلامي تمدن په ظاهري او خارجي بڼو کې د نرمش او بدلون موجوديت پر اسلامي عقيده ( ګروهه ) باندې ، چې د دې تمدن منبع ده له بهر نه د

وخت او زمان د شرایطو مجبوریت نه ده تحمیل کړې ، بلکه دا په خپله د همدې دین او عقیدې د پنځ او مزاج غوښتنه ده .

البته دا خبره مو باید په یاد وي ، چې په کوم ځیز کې د نرمش او انعطاف موجودیت دا معنی نه لري ، چې هغه دې د اوبو په څیر د هر لوښي بڼه او رنګ غوره کړي ، په نرمش او انعطاف او د وخت او محیط غوښتنو ته ځواب ویل او د اوبو حالت غوره کولو کې ډیر توپیر موجود دي .

اسلام په منځني افریقا کې د لوڅو لپړو وحشي او ځنګلي خلکو ترمینځ د تمدن وړانګې خپرې کړلې او د هغې اثر دا و چې څومره به هغوی زیات د اسلام پر اصولو پوهیدل هماغومره به ورو ، ورو د هغوی ستر او پرده هم زیاتیدله ، چې په پای کې هغه لوڅ لپړ خلک د کالیو اغوستلو سره اشنا شول او د تهذیب او تمدن په دایره کې ننوتل ، دا ټول د اسلامي تعلیماتو او لارښوونو مثبت اثر و ، چې هغه وحشي او بدوي ذهنونه یې له حقایقو سره اشنا کړل .

انساني ذهنونه یې منور کړل ، او انسان ته یې دا وړتیا ور وبښله چې د کائناتو مادي خزانې او پټ اسرار ، رابرسیره کړي ، د همدغو ګټورو اصولو له امله و ، چې انسان د قبیلې او کورنۍ له محدود چاپیریال نه راووت او د امت او ملت پراخه چاپیریال ته ورننوت ، په سوړو او غارونو کې یې د لمر د ستایلو پر ځای د نړۍ د خالق او پروردګار بندګي غوره کړه ، نو که چیرې د دغو سترو بدلونونو او انقلابونو نوم تهذیب او تمدن نه وي ، نو بیا به تمدن او تهذیب د کومې بلا نوم وي ؟

دا د هغه خاص محیط تهذیب دی ، چې د هماغه ماحول په موجود و ، وسایلو او ذرایعو اعتماد او باور کوي ، که اسلام هر ډول محیط او ماحول ته ورمخه کړي نو هلته به خپل تهذیب ته هغه بڼه ورکړي ، چې د هغه ماحول د وسایلو او اسبابونو او همدا رنګه په هغه کې د سملاسي موجودو معیارونو او صلاحیتونو د کارونې او لا پرمختګ لپاره ضروري دي .

لنډه دا چې د اسلامي ژوند دود ، تر سیوری لاندې د اسلامي تهذیب پاڅون د صنعتي ، اقتصادي او علمي پرمختګ په کومو خاصو مراحلو

پوری اړه نه لری ، هر چیرته چې دغه تمدن ریښی وځغلوی ، د هغه ځای مادی وسایل به په خپله ګټه په سمه توګه وڅرخوی او پرمختګ به ورکړی .

د هغوی مقاصدو ته به لوړ او انسانی حیثیت او موقعیت ورکړی ، په هغه ځای کې چې دغه مادی وسایل او اسباب موجود نه وی هلته به یی دغه تمدن په خپله خلق کړی او د پرمختګ او ودی لپاره به یی زیار او ربړ وګالی ، خو په هر شکل او بڼه چې وی اسلامي تمدن به بیا هم له آره " اصلاً " پر خپلو مستقلو ، ابدی او نه بدلیدونکو اصولو ولاړ وی ، کله چې د دی تمدن په واسطه اسلامي ټولنه مینځ ته راشی ، د هغی ځانګړتیا ، مزاج ، او مخصوص تحریکي نظام به په خپل حال باقی وی ، هغه مزاج او تحریکي نظام چې د اسلامي ټولنی ترمینځ ته راتلو وروسته به له هماغی لومړی ورځی نه هغی ته د نورو ټولو جاهلی ټولنو په پرتله ، غوره او ممتازه خصوصیت وربښی : صبغة الله ومن احسن من الله صبغة !

## اتم فصل

# اسلام او ثقافت

د همدې کتاب په شپږم فصل کې مونږ ويلي وو ، چې د اسلام د لومړي رکن لومړی توک دا دی چې : مطلقه بندګي يوازې الله جل جلاله لره ښايي او د ( لا اله الا الله ) په ويلو د همدغه مفهوم شهادت ادا کيږي ، د دغه رکن دويم توک دا دی چې : د دغې بندګۍ د اصولو د تفصيل او څرنګوالي پوهيدلو لپاره بايد رسول الله صلی الله عليه وسلم ته رجوع وشي .

د " محمد رسول الله " په ويلو کې د همدغې مسئلې شهادت ته اشاره شوې ده ، د الله جل جلاله د مطلقه بندګۍ عملي ډول دا دی ، چې يوازې د الله جل جلاله ذات عقيدتا ، عملا او قانونا د معبود په توګه ومنل شي ، يو مسلمان هيڅکله دا عقيده نشي لرلای چې له الله جل جلاله نه پرته بل چاته هم د الله جل جلاله منصب ورکړي او نه کوم مسلمان دا تصور کولای شي ، چې له الله جل جلاله نه پرته د بل چا عبادت هم کيږي يا چاته د حاکميت اعلی مقام ورکول کيدای شي .

په تيرو پاڼو کې مو دا څرګنده کړه چې د بندګۍ ، عقيدې ، او عبادت سم مفهوم او موخه ( هدف ) څه ده ، تر څيړنې لاندې فصل کې به مونږ دا څرګنده کړو چې د حاکميت (Sovereignty) سم مفهوم څه دی او دغه مفهوم له ثقافت (Culture) سره څه اړيکې لري ؟

د الهي شريعت د کار ساحه :

د اسلامي نظريې له مخې د الله جل جلاله د حاکميت مفهوم يوازې همدا نه دی چې قانوني احکام يوازې له الله جل جلاله نه اخذ شي او بيا د ژوند په پيښو کې د پريکړو د صادرولو لپاره هماغو احکامو ته رجوع وشي ، په اسلام کې په خپله د " شريعت " مفهوم هم يوازې د قانوني احکامو په دايره کې محدود نه دی ، دا خو لا څـه کوی ، چې د حکمرانۍ د اصولي ضوابطو ، نظام او د هغه د مختلفو تشکيلاتو تر دايرې پـورې هم محـدود نه دی ، د شريعت پـه هکله لنډ تنګ تصور د اسـلامي نظـريې سمه ترجماني نشي کولای .

هغه څه چې اسلام الهی شریعت وایي ، هغه د هغو ټولو قوانینو حاوی دی ، الله تعالی جل جلاله د بشر د ژوندانه د تنظیم لپاره وضع کړی دی د فکر او نظر ضوابط هم پکې شامل دی او د حکومت اصول هم ، د اخلاقو او تمدن اصول هم په دې دایره کې کې راتلای شی او د معاملاتو " راکړه ، ورکړه " او علم او فن اصول هم له دې دایرې نه بهر نه دي .

لنډه دا چې الهی شریعت د انسانی فکر او نظر په ټولو زاویو محیط دی د الهی ذات په برخه کې د انسان تصور او نظر وی ، که د کائناتو په برخه کې د مادی دنیا په برخه کې ، د هغه نظر وی ، چې د انسان د مشاهدی او ادراک په ساحه کې راتلای شی او که د ماوراء د طبیعت حقایق وي .

چې د انسان له ادراک او احساس څخه بهر دی ، د ژوند تکوینی دایره وی ، که تشریعی ، د انسان د حقیقت او څرنګوالی پوښتنه وی او که په کائناتو کې په خپله د انسان د حیثیت او موجودیت څیړنه وی ، اسلامي شریعت د انسان د ژوند ، دغه ټولی برخی څیړی او رڼا پری اچوي .

په همدی توګه اسلامي شریعت د انسان د ژوند عملی برخه لکه سیاست ، ټولنه ، اقتصاد ، عدالت ( نیاو ) او د دغو معیارونو اساسی اصول ، هم نه یوازی دا چې له نظره نه غورځوی ، بلکه غواړی ، چې په دغو اصولو کې هم د الله جل جلاله د کاملی بندګی او اطاعت نور وځلیږی ، اسلام غواړی چې د دی ترڅنګ هغه قانونی احکام هم تر خپلو اصولو لاندی راولی ، چې د ژوندانه د دغو ټولو شعبو او برخو تنظیم ور په غاړه دی ، دا هغه څه دی ، چې نن سبا د ( شریعت ) په نوم یادیږی .

په داسی حال کې چې د شریعت دغه لنډ او مختصر مفهوم ، هیڅکله هغه پراخه مفهوم نشی افاده کولای ، چې اسلام په خپله ورته قایل دی .

د انسانی ژوند په اخلاقو او معاملاتو کې د شریعت ضوابط او اصول جاری دی ، او د هغو معیارونو او پیمانو په واسطه د شریعت اظهار او ښودنه کیږی ، چې په ټولنه کې عملا موجود شی او په ټولنیز ژوند کې د اشخاصو او څیزونو ارزښت او بیه وټاکي .

په همدې توګه دغه شريعت د علم او فن په ټولو برخو مسلط دی ، او په ټولو فکری ځيرنو او فنی سرګرميو کې يې اثار ليدل کيږی ، ځکه په پورتنيو ذکر شوو څيزونو کې هم مونږ همدا رنګه د الله جل جلاله لارښوونی او هدايت ته اړ يو .

لکه څنګه چې په هغه محدود او لنډ مفهوم او قانونی احکامو کې د الهی لارښوونو ته اړ او محتاج يو ، تر کوم ځايه پورې چې د حکومت او قانون په هکله د الله جل جلاله حاکميت ته د تسليميدو پوښتنه رامينځ ته کيږی ، هغه مونږ په تيرو بحثونو کې څرګنده کړيده .

او همدا رنګه اميد دی چې د اخلاقو ، معاملاتو ، او ټولنی په ټولو مسايلو کې به د الله جل جلاله د حاکميت ضرورت څرګند شوی وی ، ځکه چې په ټولنه کې د ټولو دود شوو معيارونو ، منلو او نه منلو پيمانی ، او د اخلاقو ، او معاملاتو ضوابط ، ټول له هغو تصوراتو نه سرچينه اخلی ، چې په هماغه ټولنه کې غالب وی او هغه تصورات هم له هغی عقيدی نه سرچينه اخلی ، چې الله جل جلاله خپلو بندګانو ته غوره ګڼلی ده .

خو سره له دی هم ، هغه خبره چې د عامو خلکو لپاره خو لا څه کوی ، چې د اسلامي ادبياتو د لوستونکو لپاره هم د اريانتيا وړ ده هغه دا ده ، چې په فنی او فکری ساحو کې هم بايد اسلامي تصور او ربانی منابع او ماخذ زمونږ مرجع او لارښود واوسی .

د هنر (Art) په موضوع باندی يو مستقل کتاب ليکل شويدی ، چې دغه موضوع يې پکې په دی ډول څيړلی ده : ټولی هنری څيړنی په حقيقت کې د انسان د تصوراتو او وجدان د انفعالاتو تعبير او تفسير دی ، د انسان په وجدان کې چې د ورځينی ژوند او هستی کوم انعکاس را پيدا کيږی ، هنر د هماغو عکاسی کوی ، يا په بله وينا د هنر مند د هنری اثارو په تخليق کې د ده د ټولنی تاثرات حتما ځليږی او همدا رنګه په ټولنه باندی د حاکم فکری نظام انعکاس هم په کې موجود وی .

دا ټول هغه کارونه دی ، چې نه يوازی دا چې اسلامي اصول او تصورات کنټرولوی ، بلکه د يوه مسلمان او مومن په زړه کې د همدغو اصولو او

معيارونو تخليق هم کوي ، ځکه چې اسلامي تصورات او افکار فطرتاً په ټولو کائناتو او شخصاً په انسان او د هغه د چاپيريال په ټولو اړخونو باندې محيط وي .

او د ژوندانه د دغو اړخونو چې له خپل خالق سره يې کومې اړيکې دي ، د هغو ځرګندونه او ښودنه هم کوي ، د هنر خصوصي موضوع د انسان حقيقت او په کائناتو کې د هغه دريځ دی ، د هغه د وجود مقصد ، فرايض ، او د ژوند حقيقي او ريښتوني معيارونه دي .

دغه ټول معيارونه د اسلامي اند دود " طرز فکر " ضروري توکونه دي ، ځکه چې اسلامي اند دود ، محض يو فکري قالب نه دی ، بلکه د يوه ژوندی ، فعال ، اغيزمن او محرک حقيقت نوم دی ، په هغو ټولو جذباتو او احساساتو اغيزمن اثر لري ، چې په انسان کې پيدا کيږي [١] .

د فکر او فن مسئله او د هغې اړوندول ( مربوطول ) له اسلام سره په دې توګه ، چې د علم په دغه برخه کې هم د الله جل جلاله د کاملې بندګۍ نور وځليږي ، د يوې مفصلې څيړنې غوښتنه کوي ، لکه څنګه چې مونږ د مخه وويل د اوسنی پيړۍ د زده کړه وال پاټکې ( طبقه ) لپاره او همدا رنګه د هغو مسلمانانو لپاره ، چې د الله جل جلاله په وحدانيت او قانون جوړونه ايمان لري ، دا بحث بالکل نوی او اريانوونکې دی .

## هغه علوم چې انسان يکې الهي وحي ته اړ دی :

مسلمانان په داسې مسايلو کې چې له عقيدې ، عبادت ، اخلاق او همدا رنګه د پنځ په هکله عمومي نظر ، د ورځينې ژوند معاملاتو ، معيارونو ، سياست او ټولنې ، د ژوند اصولو او قواعدو ، د انساني سرګرميو توجيه يا د انساني تاريخ له تعبير او تفسير سره اړه ولري دا حق نلري ، چې له الله

---

[١]- د ليکوال مقصد د ارټ Art په برخه کې د محمد قطب د " منهج الفن الاسلامی " نومې کتاب دی ، پورتنی مطلب له همدغه کتاب نه را اخيستل شويدی .

جل جلاله نه پرته د کومې بلې فکري منبع او مرجع په رڼا کې هغه تعبير او تفسير کړي او يا لارښوونه حاصل کړي .

په همدې توګه مسلمان بايد د دغه اصل پابند هم وي ، چې هغه دغه رڼا او لارښوونه له يوه داسې مسلمان څخه ترلاسه کړي ، چې د هغه په دين او تقوي پوره داډ او باور ولري او د هغه په عقيده او عمل کې دوه رنګي موجوده نه وي .

**هغه علوم چې انسان يکې الهي وحي ته اړ نه دی :**

مسلمانانو دا حق لري ، چې مجرد علوم لکه کيميا Chemistry فزيک Physicsبيولوژي Biology ستوري پيژندنه Astronomy طب Medicine ، صنعت Industry ، کرنه Agriculture ، اداره او تنظيم Adminstration ( يـوازې د فني اړخونو په لحاظ ) تکنالوژي د جګړې اصول ( د علمي ميتود له مخې ) او همدا رنګه نور علوم او فنون چې پـه ژونـدانه کې ورته اړتيا ليدل کيږي له مسلمان او نا مسلمان دواړو تـه زده کړي .

سره له دې چې اصلا خو بايد په دغه برخه کې اسلامي ټولنه پخپله هڅه وکړي ، چې په پورتنيو علومو کې اهل او وړ خلک ور وځي او د پرمختګ لپاره يې لار هواره کړي ، چې له هر څه نه په خپل کور پوره شي ، ځکه چې دا ټول علوم او فنون فرضي کفايي دي او په ټولنه کې د ځينو خلکو روزل په پورتنيو علومو کې يو ضروري کار دی ، که چيرې په يوه ټولنه کې ، د دغه ډول صلاحيتونو د پيدا کولو لپاره هڅه ونشي او داسې فضا هم مينځ ته رانشي ، چې د علم د ودې لپاره برابره وي .

نو ټولنه په مجموعي توګه ګناهګاره ده ، خو تر هغې چې يوه داسې فضا مينځ ته نه وي راغلې ، مسلمانان دا حق او اجازه لري ، چې دغه علوم له مسلمان او کافر دواړو نه هر چيرته چې وي ، زده يې کړي ، د مسلمان او نا مسلمان دواړو د څيړنو او تجربو له نتايجو نه ګټه واخلي .

همدا رنګه په ټولنه کې د نورو د زده کړې لپاره مسلمان او نا مسلمان دواړو ته دغه وظيفه ور وسپارلای شي ، ځکه چې دا مسايل په هغو امورو

کې شامل دي ، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغو په هکله فرمایلي دي : انتم اعلم بامور دنیا کم ( تاسو د خپلو دنیاوي کارونو په سمبالولو ډېر ښه پوهېږئ ) .

دغه علوم له هغو مسایلو سره تعلق نه لري ، چې د کائناتو او ژوند په برخه کې د مسلمان له عقیدې سره اړیکې لري ، یا له انسان او د هغه د تخلیق له مقصد سره ، د هغه د مکلفیتونو او مسئولیتونو سره او له کائناتو سره د هغه د اړیکو په څرنګوالي او له الله جل جلاله سره چې د کائناتو پیدا کوونکې دی ، د هغه د اړیکو په نوعیت او څرنګوالي باندې بحث او څېړنه وکړي ، د دغو علومو اړیکې د شریعت له هغو اصولو او ضوابطو سره هم نه دي ، چې د انساني ژوند د تنظیم لپاره دي .

له اخلاقو عباداتو ، دودونو ، روایاتو او د هغو معیارونو سره هم اړیکې نه لري ، چې په ټولنه کې ورته اهمیت او سیادت حاصل وي او په ټولنه کې خپله اغیزه ښندي ، له دې امله د دغو علومو په زده کړه کې له مسلمانانو سره دا ویره نشي پیدا کېدلای ، چې د هغوی د عقیدې په خرابوالي او کمزورتیا کې به اثر ولري او یا به بیا د جاهلیت لور ته تمایل پیدا کړي .

خو تر کومه چې د انسان په زیار او هڅې پورې اړه لري ، په انفرادي توګه وي او که په ډله ئیزه توګه ، د دغو هلو ځلو اړیکې په خپله له " انسان " سره وي او که د انساني تاریخ له نظریاتو سره او په همدې توګه تر کومه چې د کائناتو د ژوند په پیل او په خپله د انسان د پیل په تعبیر او توجیه پورې اړه لري ، نو څرنګه چې د دغو ټولو مسایلو تعلق له ماوراء طبیعت یعنی **Metaphysics** سره دي او که کیمیا ، فزیک ، طب او نورو سره نه دي ، له همدې امله د دوی اړیکې له هغو اصولو او ضوابطو سره دي ، چې د انسانانو د ژوند د تنظیم او سمون لپاره دي .

نو بې له شکه د هغوی اړیکې له عقیدې او اسلامي فکر سره موجودې دي ، له دې امله مسلمان دا اجازه نلري ، چې هغه دغه علوم هم له مسلمان نه پرته له بل چا نه زده کړي ، بلکه دغه علوم باید یوازې له هغه مسلمان نه زده کړای شي ، چې د هغه په عقیده او ایمان کامل اطمینان او باور

موجود وی او هغه کاملا په دی ډاډه وی ، چې دغه پوهاند په داسی مسایلو کې یوازی او یوازی د الله جل جلاله په لارښوونه روان دي .

له پورتنیو خبرو نه زمونږ اصلی هدف دا دی ، چې د مسلمان په احساس او شعور کې باید دا خبره په پوره توګه ځای ونیسی ، چې د ژوند ټول امور له عقیدی نه اخیستل شویدی او اړیکې ورسره لری ، دا په ښه توګه په یاد ولری چې په دغو کارونو کې د الهی وحی نه ګټه اخیستل د الله جل جلاله د بندګی لازمی او ضروری غوښتنه ده یا د هغه شهادت نتیجه ده ، چې په هغه کې دا اعلان شویدی ، چې له الله جل جلاله نه پرته بل معبود نشته او محمد د الله جل جلاله رسول دي .

البته په دی کې هیڅ قباحت نشته ، چې یو مسلمان عالم په دغه برخه کې د جاهلی څیړنو او تجاربو نتایج راوسپړی ، له دی امله نه چې له دغو تحقیقاتو نه د ځان لپاره د علومو په برخه کې کوم تصور پیدا کړی ، بلکه یوازی د دی خبری د څرګندونو لپاره ، چې جاهلیت څه انحرافات کړیدی او انسان دغه انحرافات څنګه سمولای او ورکولای شی او انسان د اسلامي ژوند دود د اصولو تر سیوری لاندی روزلای شي .

**په انسانی علومو د جاهلیت اغیزې :**

فلسفه ، د بشری تاریخ تعبیر ، سایکالوژی " په استثنا د هغو مشاهداتو او اختلافی نظریو چې له توجیه او تعبیر څخه بحث نه کوی " اخلاقي علوم ، مذهبی علوم ، او د مذاهبو پرتلیزه مطالعه ، ټولنیز او نور عمرانی علوم " له هغو مشاهداتو او د خپل لومړی لاس د معلومات د حاصلولو نه پرته یوازی هغه نتائج چې له دغو معلوماتو او مشاهداتو نه راچانې شویدی او هغه اساسی نظریات چې پر بنسټ یی ( دغه ) علوم مرتب شوی دی " په مجموعی توګه د دغو ټولو علومو نصب العین ، په پخوانی او اوسنی دوارو دورو کې له جاهلی عقایدو او خرافاتو نه نیغ په نیغه متاثر شویدي .

یا په بله وینا مانې یی د جاهلی خرافاتو او معتقداتو پر بنسټ ودانه شویده ، همدا علت دی چې له دغو علومو څخه زیاتره علوم په خپلو بنیادی اصولو کې له مذهب سره متصادم دی ، له مذهب سره بالعموم او له

اسلامي طرز فکر سره بالخصوص پټه او ښکاره دښمنی لری ، په بشری علومو کې پورتنی یاد شوی علمونه د انسان په ژوند کې دومره اهمیت نلری ، لکه څومره یی چې کیمیا ، فزیک ، استرانومی ، بیولوژی ، طب او نور علوم لری ، هغه هم په دی شرط چې دغه وروستی علوم یوازی تر عملی تجربو او د هغو نتایجو پوری مربوط شی او د فلسفیانه تاویلاتو او توجیهاتو مرحلی ( په هره بڼه چې وی ) پوری تجاوز ونکړی .

د مثال په توګه لکه څنګه چې د ارونیزم د بیولوژی د مشاهداتو او تجاربو څخه ناوړه استفاده وکړه او له خپلو جایزو حدودو نه یی بی له کوم دلیل او حجت څخه تجاوز وکړ او د خپلو جذباتو او احساساتو پر اساس یی دا نظریه وړاندی کړه ، چې د ژوند د پیل او پرمختګ لپاره د طبیعی دنیا له څواک نه پرته د کوم بل قدرت موجودیت منلو ته هیڅ ضرورت او اړتیا نشته ده .

مسلمان ته په دغو برخو کې د خپل پروردګار له خوا کره او باوری معلومات رالیږل شویدی ، دغه معلومات دومره لوړ پاخه او کره دی چې د هغی په پرتله انسانی معلومات ډیر د خنډا وړ ښکاری ، خو له دی سره سره بیا هم انسان په همدغو مسایلو کې مداخله کوی ، چې تعلق او اړیکې یی د الله جل جلاله له عقیدی او بندګی سره دی .

## ثقافت او صهیونیزم

دغه تعریف چې ثقافت یو انسانی میراث دی ، نه په کومی مخصوصی سیمی پوری اړه لری او نه په کوم مخصوص قوم او نژاد پوری او نه له کوم مخصوص مذهب سره څه اړیکې لری . دغه تعریف د ساینسی او فنی علومو او د هغوی د علمی تشریح له نظره سم دی ، په دی شرط چې مونږ د دغو علومو له بریدونو نه تجاوز ونکړو یعنی دا چې د دغو علومو فلسفیانه تعبیر **Metaphysical Interpretation** وکړو .

د انسان او انسان د ژوندانه غورځی پرځی او انسانی تاریخ په فلسفیانه تاویل کې را ایسار نه شو ، د فن او ادب او وجدانی تعبیراتو د مظاهرو تر حده فلسفیانه تاویلونو ته پاملرنه وکړو .

خو هغه نظریه چې د ثقافت برخه کې مونږ په پورته ډول بیان کړه ، په حقیقت کې د نړیوال صهیونیزم د رنګا رنګ چالونو له جملې نه دا هم یو چال دی ، د نړیوال صهیونیزم هدف له دغه ډول تعریفونو څخه دا دی ، چې د ټولو حدودو او قیودو کړی چې په سر کې یې د مذهب او عقېدی کړی راځي له مینځه یوسی .

تر هغې چې د صهیونیزم زهر د ټولې نړۍ په جسم کې چې نیم ځانه او خمار شوی دی په اسانی سره سرایت وکړی ، له دی وروسته به بیا یهودیان وکړلای شی ، چې په ټوله نړۍ کې خپلې شیطانی سرګرمی په پوره ازادی جاری وساتی .

د دغو سرګرمیو په سر کې د هغوی د پانګې او ګټې کاروبار دی ، غواړی چې د ټول بشریت د کړاوونو حاصل د هغو یهودی ادارو په جیبونو کې ور ولویږی چې د ( سود ) د ګټې پر اساس جوړی شوی دی او چلیږی .

د اسلام په نظر د دغو ټولو ساینسی او فنی علومو او د هغوی د عملی تجاربو تر شا دوه ډوله ثقافتونه موجود دی ، یو اسلامي ثقافت چې د اسلام د ژوندانه د قانون پر بنسټ ولاړ دی او دویم جاهلی ثقافت چې په ظاهره په مختلفو اصولو او میتودونو ولاړ دی .

خو په حقیقت کې د ټولو اساس او بنیاد یو دی او هغه انسانی فکر ته د " اله " د دریځ ورکولو داعیه ده ترڅو وکړلای شی د خپلې ادعا د اثبات په صورت کې الله جل جلاله د ټولو امورو د یواځینی مرجع او منبع په حیث رد کړی ، اسلامي طرز فکر او ثقافت د انسان په ټولو فکری او عملی سرګرمیو محیط دی او د هغه لمن له داسی اصولو ، قواعدو او ځانګړتیاوو نه ډکه ده ، چې نه یوازی د انسانی فکر د سرګرمیو د لا زیاتی ودی ضمانت کوی ، بلکه هغوی ته ابدی حیات او ښکلا هم وربښی .

د اروپا علوم د اسلامي دوری محصول دی :

له دغه حقیقت نه باید هیڅوک بی خبره پاتی نشی چې هغه تجربی علوم Empirical Sciences چې په اوسنی عصر کې د اروپا د تمدن روح ورته ویلای شو ، اصلی وطن یی اروپا نه ده ، بلکه د هغوی اصلی ټاټوبی

اندلس او د ختیځو اسلامي ممالکو اسلامي پوهنتونونه دي ، د دغو علومو بنیادي اصل د اسلام د هغو تعلیماتو او لارښوونو څخه اخیستل شویدی چې په هغو کې د پنځ او د هغه په سینه کې د زرګونو د فن شوو اسرارو په برخه کې څرګندي اشاري موجودي دي ، وروسته بیا په همدغه دول په اروپا کې یو مستقل او جلا علمي تحریک مینځ ته راغلی او ورو ، ورو یې د پرمختګ او تکمیل پړاوونه ووهل ، په دغه وخت کې د اسلامي نړۍ دا حال و ، چې ورځ په ورځ له اسلام څخه لرې کیدله ، چې د هغې په نتیجه کې د اسلامي نړۍ علمي نهضت په پیل کې ورو ، ورو د جمود او سهل انګاري ښکار شو او بیا ځور له مینځه ولاړ .

ددغه نهضت په له مینځه تللو کې مختلفو عواملو رول درلوده ، ځینې عوامل د همدغه وخت د اسلامي ټولنو په داخلي جوړښت پوري اړه لري او ځینې عوامل هم په هغو پرله پسې حملو او یرغلونو پوري اړه لري ، چې د صلیبي او صهیوني دنیا له خوا نه په اسلامي هیوادونو کیدلې .

اروپا چې له اسلامي نړۍ نه د تجربي علومو کومه زده کړه کړې وه ، د هغوی د اړیکو ریښې یې له اسلامي اصولو او اساساتو سره غوځې کړې او بالاخره هغه وخت چې اروپا د کلیسا یعنې الله بادشاهي Heavenly Kingdom د مظالمو ځنځیرونه وشلول نو د همدي الغا وتلغاو په دوره کې یې د تجربي علومو اړیکې هم له الهي هدایت سره بالکل وشلولې او هغه یې له دغو لارښوونو څخه بې برخې کړل[1] .

د اروپا فکري پانګه په مجموعي توګه په هر وخت او هر ځای کې د جاهلي فکر په څیر بالکل د یوه نوي څیز په توګه پاتې شویده ، چې د خپل فطرت او بنسټ له امله له اسلامي طرز فکر سره نه یوازې دا چې بیګانه او پردې وه ، بلکه بالکل ورسره متضاده هم وه ، تل به ورسره په ټکر کې وه .

نو له دې امله د یوه مسلمان وظیفه ده چې یوازې اسلامي طرز فکر او د ژوند اصول او قواعد د خپلو لارښوونو مرجع او منبع وګرځوی ، او یوازې د

---

[1]- وګورئ د " المستقبل لهذا الدین " نومې کتاب باب : الفصام النکد "

الهي تعليماتو په نور ځان منور کړي ، که چيرې په ده کې دومره فهم او درک موجود وي ، چې نيغ په نيغه په اسلامي اصولو وپوهيږي خو ډير ښه او که نه نو له کوم داسې مسلمان او موحد انسان څخه دې هغه زده کړي ، چې د هغه په عقيده ، تقوی او ايمان پوره باور ولري ، ترڅو په پوره ډاډ له هغه نه زده کړه وکړلای شي .

**په علم او د علم ذريعه کې بيلوالی سم نه دی :**

اسلام دغه نظريه چې علم جلا ځيز دی او د علم ذريعه جلا ، د هغو علومو په هکله نه منې چې د هغوی اړيکې د عقيدې له هغو تفصيلاتو سره دي ، چې د کائناتو او ژوند ، اخلاقي معيارونو ، دود و دستور ، انساني نفسونو او انساني زيار او هڅو سره ( مربوطو ) مسايلو کې د انسان په طرز فکر ، اغيزه کوي ، بې له شکه اسلام دومره پيرزوينه لري ، چې يو مسلمان ته دا اجازه ورکړي ، چې له يوه نا مسلمان او الله جل جلاله نه پيژندونکي څخه کيميا ، فزيک ، استرانومي ، طب ، صنعت ، کرنه ، او داسې نور علوم او فنون زده کړي .

هغه هم په داسې حالتو کې چې داسې کوم مسلمان پيدا نشي ، چې دغه علوم ده ته ورښيي ، نن ټول مسلمانان له همدغې ستونزې سره لاس په ګريوان دي ، او دا حال هم ځکه پيدا شويدی ، چې دغه مسلمانان له خپل دين او د هغه له ژوند دود نه ډير ليرې شويدي او د اسلام هغه اند دود ( طرز فکر ) يې هير کړی دی ، چې د الهي خلافت د غوښتنو د سر ته رسولو لپاره يې د علم د زده کړې په برخه کې وړاندې کړی وُ .

هغه نظريې چې د خلافت د امورو د پرمختګ لپاره د الهي منشاء د اصولو پر اساس بالکل ضروري وي ، په هر صورت د تجربي علومو په برخه کې اسلام مسلمانانو ته اجازه ورکوي ، چې له کوم نا مسلمان نه يې زده کړي ، خو اسلام هيڅکله هغه ته دا اجازه نه ورکوي ، چې د خپلې عقيدې اصول ، د خپل اسلامي ژوند دود اساسات ، د قران تفسير ، حديث د نبوي سيرت تشريح د تاريخ فلسفه ، د حرکت فلسفيانه تعبيرونه ، د خپلې ټولنې دودونه او دستورونه ، د خپل حکومت نظام ، د سياست کړنلار ، د خپل

فن او ادب محرکات ، له غیر اسلامي ماخذو څخه واخلی او یا یی له یوه داسی مسلمان څخه زده کړی ، چې د هغه عقیده د باور وړ نه وی او له الله جل جلاله نه ویره او تقوی هم ونه لری .

دا خبری تاسو سره هغه څوک کوی ، چې د هغه خپل عمر څلویښت کاله د کتابونو په لوستنه تیر کړی دی او په دغه ټول عمر کې د هغه ارزو همدا وه چې د بشر علم او څیړنو چې کوم نتایج په مختلفو برخو کې تهیه کړیدی ، هغه په غور او دقت مطالعه کړی .

ځینی برخی خو د دغو علومو داسی هم وی ، چې په هغو کې ده تخصص Specialize کړی و ، او په ځینو نورو برخو کې یی د خپلی فطری تندی د ماتولو لپاره څیړنی کړی وی د علم او پوهی دغی پانګی ته چې کله هغه د خپلی اصلی عقیدی تر سترګو لاندی په غـــور او بی طرفی وکتل نو هغه ځـــه چې پخوا هغه تـــه سره زر ښکاریدل ، هغو د کودړی هومـــره ارزښت هم نـــه درلوده .

هغـه تـه دا څرګنده شوه چې تر اوسه یی څه ویلی دی د عقیدی د خزانو په مقابلـه او پرتله کې نهایت خوار او بی ارزښته دی او همداسی هم باید وی ، هغـه په دی خبره پښیمانه نه دی چې د خپل ژوند څلویښت کاله یی پر څه تیر کړیدی ، ځکه چې په دغه وخت کې هغه د جاهلیت د ښامار ټول اسرار رالوڅ کړیدی .

هغـه د جاهلیت بی لاری د سر په سترګو لیدلی دی ، د جاهلیت علمی او تهذیـبی نیسـتی یـی لـیدلی ده ، د جاهلیـت رذیلانـه اعمـال ، پـو چـې ادعاګانی او شور و زوږ یی هم لیدلی دی ، د هغـوی له غرور او استکبار سره هم اشنا دی ، هغـه پـه دی متیقن او باوری دی چې یو مسلمان عالم ته پکار ندی چې له دوه متضادو ذریعو او وسیلو نه " الهی وسیله او ذریعه ، جاهلی وسیله او ذریعه " په یوه وخت کې استفاده وکړی .

خو سره له دی هم دا زما شخصی نظریه نه ده ، ځکه چې مسئله تردی ډیره لوړه او مهمه ده ، چې د هغی په هکله دی د شخصی نظریی پر اساس پریکړه وشی ، د الهی عدالت په تله کې چې دا مسئله څومره وزن لری د

هغې په پرتله د کوم مسلمان په شخصي نظريې د باور او نه باور کولو پوښتنه اصلاً مېنځ ته نه راځي .

دا خو د الله جل جلاله او رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمان دی او همدا فرمان به زمونږ ترمينځ حکم وی ، مونږ بايد په دې مسئله کې الله جل جلاله او رسول الله صلی الله عليه وسلم ته داسې رجوع وکړو ، لکه څنګه چې د مؤمنانو روش وی .

چې د خپل مينځې اړيکو د حل لپاره الله جل جلاله او د هغه رسول الله صلی الله عليه وسلم ته رجوع کوی ، د مسلمانانو په برخه کې چې نصارا او يهود کوم ناوړه نيتونه لری ، الله جل جلاله مونږ ته له هغې نه پرده پورته کړيده او فرمايلي يې دي :

وَدَّ كَثِيرٌ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَوْ يَرُدُّونَكُمْ مِنْ بَعْدِ إِيمَانِكُمْ كُفَّارًا حَسَدًا مِنْ عِنْدِ أَنْفُسِهِمْ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْحَقُّ فَاعْفُوا وَاصْفَحُوا حَتَّى يَأْتِيَ اللَّهُ بِأَمْرِهِ إِنَّ اللَّهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ [د البقره سورت ۱۰۹ آيت ]

( د نصارا او يهودو زياتره خلک غواړی چې په يوه نه يوه ډول تاسو له اسلام نه راوګرځوی او د کفر په لورې مو بوځي ، دا د خپل نفس د کينې او رخې له امله ، وروسته له هغه نه چې هغوی ته حق ښکاره شوی دی ، نو تاسو له عفوی او ښښنې نه کار واخلئ تر هغې چې الله جل جلاله خپله پريکړه نافذه کړی ، بې له شکه الله جل جلاله پر هر څه قدرت لری ) .

وَلَنْ تَرْضَى عَنْكَ الْيَهُودُ وَلَا النَّصَارَى حَتَّى تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ قُلْ إِنَّ هُدَى اللَّهِ هُوَ الْهُدَى وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَاءَهُمْ بَعْدَ الَّذِي جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ مَا لَكَ مِنَ اللَّهِ مِنْ وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ [د البقره سورت ۱۲۰آيت ]

( يهودان او نصارا به هيڅکله هم له تا نه خوشحاله نشي ترڅو تاسو د هغوی دين ونه منې ، په ډاګه يې ورتهووايه چې د الله جل جلاله لارښوونه تر ټولو غوره ده او که تاسو له دې وروسته چې پوه شوی ياست بيا هم د هغوی ( نصارې يهود ) د غوښتنو پيروی وکړه نو د الله تعالی له نيولو نه د خلاصې لپاره ستاسو دوست او مرستيال نشته ) .

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ تُطِيعُوا فَرِيقًا مِنْ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ يَرُدُّوكُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ كَافِرِينَ [د ال عمران سورت ۱۰۰آيت]

( اى مؤمنانو ! كه تاسو د اهل كتابو ( نصارا او يهود ) نه د كومى يوى ډلى خبره ومنله نو په دى پوه شى چې دوى به بيا تاسو د كفر په لورى بوځى ) .

د رسول الله صلى الله عليه وسلم مبارک ارشاد چې حافظ ابويعلى د حماد او شعبى په روايت له حضرت جابر رضى الله عنه نه رانقل كړيدى ، د قرآن كريم د آيتونو په تشريح او سپړنه ښه رڼا اچوى ، هغه مبارک صلى الله عليه وسلم فرمايلى دى :

لا تسئالوا اهل الكتاب عن شئ فانهم لن يهدو كم وقد ضلوا ، وانكم اما ان تصدقوا بباطل ، واما ان تكذبوا بحق ، وانه والله لو كان موسى حيا بين اظهر كم ما حل له الا ان يتبعنى .

( له نصارا او يهودو نه د هيڅ شى په باره كې پوښتنه مه كوى ، هغوى تاسو ته سمه لار نه درښيي ، هغوى په خپله لار وركه كړيده ، كه د هغوى مو ومنله ، يا به درباندى د كوم باطل تصديق وكړى او يا به درباندى كومه سمه خبره تكذيب كړى ) .

په الله جل جلاله سوګند دى كه موسى هم په تاسو كې اوس ژوندى واى نو هغه ته به هم زما له متابعت نه پرته د بلى لار غوره كول جايز نه واى " .

څرنګه چې الله جل جلاله مسلمانانو ته د نصارى او يهودو خطرناک او زيانمن تصميمونه د اسلام په هكله په څرګنده او واضحه توګه بيان كړيدى ، نو د دغو مباركو آيتونو له لوستلو نه وروسته كه بيا هم كوم مسلمان دا خوش باورى او خوشبينى لرى ، چې نصارا او يهود چې د اسلامي عقيدى او تاريخ په برخه كې كومه څيړنه كوى او يا د اسلامي ټولنى د قانون ، اسلامي سياست او اسلامي ژوند دود په هكله كوم نظر وركوى ، په هغى كې دى نيک نيتى موجوده وى او يا دى هم په هغى كې د مسلمانانو خير او ښيګړه موجوده وى .

یا هغوی په رښتیا دا نظر لري ، چې د اسلامي ژوند دود په کوم اړخ په مثبت ډول رڼا واچوي ، هغه خلک چې د الله تعالی د دغه څرګند اعلان او غوڅې پریکړې نه وروسته بیا هم د هغوی په برخه کې حسن نظر لري نو د هغوی په عقل او پوهه ماتم پکار دی .

په همدې توګه الله تعالی د هدایت او لارښوونې عمل په ځان پورې محدود کړیدی او فرمایي چې : قل ان هدی الله هو الهدی .

( ووایه چې یوازې د الله جل جلاله لار او هدایت ریښتونی لار او هدایت دی ) .

په پورتني ارشاد کې د هدایت او لارښوونې منبع ټاکل شویده چې یوازې او یوازې د الله تعالی د هدایت او لارښوونو یوازینۍ منبع ده ، مسلمان باید د خپل ژوند په ټولو ورو او سترو مسایلو کې ورته رجوع وکړي ، د الهي هدایت او لارښوونې نه له مخ ګرځولو څخه وروسته انسان ته له ګمراهۍ او سرګردانۍ نه پرته بل څه په لاس نشي ورتلای .

د یوه مسلمان په عقیده له الله جل جلاله نه پرته بله منبع له سره موجوده نه ده ، چې له هغې نه هدایت او لارښوونه ترلاسه شي ، په پورتني ذکر شوي آیت کې چې په دې ډول فرمایل شویدي :

د الله جل جلاله لارښوونه او هدایت په حقیقت کې ریښتونی هدایت دی ، نو د حصر له دغې صیغې نه یې مطلب د دې خبرې اثباتول دي چې د الهي وحې نه وروسته چې هر څه دي هغه ضلالت ، ګمراهي ، سرغړونه او څرګنده بد مرغي ده ، د آیت مفهوم دومره څرګند او ښکاره دی چې له سره په کې د شک او تاویل ځای نشته .

په قرآن کریم کې دا قطعي حکم هم راغلی دی چې له هغه سړي سره هیڅ ډول اړیکې مه ساتې چې د الله جل جلاله له ستاینې نه مخ اړوي او په ژوند کې یې یوازینی هدف د مال او شتو راغونډول وي ، قرآن د دغه ډول انسان په هکله دا څرګندونه هم کړیده چې :

هغه یوازې په ګومان او اټکل ایمان راوړی دی ، د علم او یقین هوا هیڅ پرې نه ده لګیدلې ، په داسې حال کې چې قرآن مسلمانان له ګومان او

اتكل نه ايسار كړيدى ، هغه څوک چې د ژوند په هكله يې نظر د دنيا د ظاهرى شان وشوكت په چورليځ ( محور ) چورليږى ، د قرآن په نظر هغه د علم د جوهر او نظر د روغوالى دواړو نعمتونو نه بې برخې دى .

الله جل جلاله فرمايلى دى :

فَأَعْرِضْ عَنْ مَنْ تَوَلَّى عَنْ ذِكْرِنَا وَلَمْ يُرِدْ إِلَّا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا()ذَلِكَ مَبْلَغُهُمْ مِنَ الْعِلْمِ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيلِهِ وَهُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ اهْتَدَى [د النجم سورت ۲۹ ۳۰ آيتونه ]

( ته هم اى رسوله ! له هغه چانه چې زمونږ له عبادت نه يې مخ ګرځولى دى او د دنياوى نعمتونو نه پرته د بل څه خواهش نه لرى مخ واړوه ، د هغوى د پوهې او علم انتها يوازى همدومره ده ، ستا پروردګار ښه پوهيږى په هغه چا چې د حق له لارى اووښتى وى او همدا رنګه په هغه چا چې د حق په سمه لار روان وى ) .

يَعْلَمُونَ ظَاهِرًا مِنَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَهُمْ عَنِ الْآخِرَةِ هُمْ غَافِلُونَ [د روم سورت ۶ آيت ]

(هغوى يوازى د دنيا په ظاهرى ژوند پوهيږى او له آخرت نه غافل دى ) .

يوازى هغه سړى ظاهر بين ، دنيا پرست او له حقيقى علم او پوهې نه بې خبره كيداى شى ، چې د الله جل جلاله له ياد نه غافل وى او يوازى د فانى دنيا د نعمتونو او خوښيو په لاسته راوړلو پسې سرګردانه وى ، د اوسنى پيړى د ټولو ساينس پوهانو او نورو فنى ماهرينو همدغه حال دى .

دغه خلک چې د كوم علم ، مخكښ دى ، هغه ، هغه علم نه دى ، چې يو مسلمان دى پرى باور وكړاى شى او بې له څنډه دى ترينه استفاده وكړى ، د دغه ډول علم په برخه كې مسلمان ته هم دومره اجازه شته چې د خالص علمى ضرورت تر حده ترينه ګټه واخلى .

د هغه نظريات او توجيهات چې د انسانى نفس او په ژوند پورى مربوطو مسايلو پورى اړه ولرى ، د اعتبار وړ ونه ګڼى ، ځكه چې د دوى علم هغه ډول علم هم نه دى چې قرآن كريم يې څو څو ځلې ستاينه كړيده او فرمايلى يې دى چې :

هل يستوي الذين يعلمون والذين لا يعلمون ( آيا پوهان او ناپوهان سره برابريدلای شي ؟ )

هغه څوک چې دغه ډول آيتونه له خپل سياق وسباق نه بيلوي او بې ځايه استدلال کوي ، چې دغه آيت د هر ډول علم په هکله برابر حکم لري په غلطه لار روان دی ، د علم په برخه کې غوځ او پريکړې بيان او د بيلښت امتيازي کرښه په لاندې مبارک آيت کې ښه ترا ځرګنده شويده .

أَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ آنَاءَ اللَّيْلِ سَاجِدًا وَقَائِمًا يَحْذَرُ الْآخِرَةَ وَيَرْجُو رَحْمَةَ رَبِّهِ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُولُو الْأَلْبَابِ [د الزمرسورت ۹ آيت]

( ايا هغه څوک چې شپه او ورځ د الله جل جلاله په عبادت او ستاينه په سجده او قيام تيروي او د آخرت له عذاب نه په ويره کې وي او له خپل رب نه د رحمت او ښښنې تمه او هيله لري ، ووايه ته ای زمونږ رسوله ، هغه خلک چې د پوهې او عقل خاوندان دي برابر دي له هغو خلکو سره چې له عقل او پوهې نه بې برخې دي ؟ بې له شکه پوه او عاقل خلک په دې حقيقت پوهيږي ) .

هغه بنده چې د شپو په تنهايې او چوپتيا کې الله جل جلاله ته په سجده پروت وي ، په قيام او سجده کې له خپل خالق سره راز ونياز کوي ، د آخرت له عذابه تل په ويره کې وي ، او د خپل رب د رحمت او ښښنې په هيله او تمه وي ، د الله جل جلاله د نور په وړانګو يې زړه منور وي ، په حقيقت کې همدی هغه نيکمرغه او خوشبخته انسان دی ، چې په ريښتونې توګه د علم په دولت کې ستره برخه لري او دا هغه علم دی ، چې په پورتني آيت کې ورته اشاره وشوه ، يعنې داسې علم چې انسان ته د الله تعالی جل جلاله په لور لارښوونه کوي ، د تقوی او فضيلت له نعمت څخه يې برخه من کوي ، دا هغه علم نه دی ، چې د انسان فطرت مسخ کوي او هغه د الحاد او کفر په کږه وږه لار روانوي .

د علم ساحه يوازې د عقايدو ، ديني فرايضو ، واجباتو ، احکامو او شرايعو تر علم پورې محدوده نه ده ، د علم دايره ډيره پراخه ده ، څومره چې

علم له عقایدو ، فرایضو او شرایعو سره اړیکې لري ، هماغومره اړیکې د فطرت له قوانینو او الهی خلافت د مصالحو او ګټو سره هم لري .

البته هغه علم چې د ایمان پر بنسټ نه وي ولاړ د هغه علم له تعریف نه بهر دی ، چې قرآن ورته اشاره کړیده او د هغه علم د پوهانو ستاینه یې کړیده ، د ایمان د اساساتو او هغو علومو ترمینځ چې د کائناتو او پنځ له قوانینو سره اړیکې لري لکه د استرانومي ، ( ستاره شناسی ) بیولوژی ، فزیک ، کیمیا ..... ، یوه کلکه رشته موجوده ده ، یاد شوي علوم هغه علوم دي چې د الله جل جلاله د موجودیت څرګند او ښکاره دلایل وړاندې کوي ، په دې شرط چې د انسان د بې لارې شوو غوښتونو تر اثر لاندې رانشي او هغه د الله تعالی جل جلاله له یاد او تصور څخه خالي نه کړي ، لکه څنګه چې په اروپا کې د علمي پرمختګ له پړاو سره دغه افسوسناکه پیښه مینځ ته راغلې وه .

په حقیقت کې د اروپا په تاریخ کې د دغې بې دینۍ علت د هغې وحشیانه دورې اعمال وو چې د پوهانو او تیرې کوونکې کلیسا ترمینځ په نهایت کرکجنه او زهرجنه فضا کې مینځ ته راغلل ، په نتیجه کې د اروپا علمي نهضت قصدا له الله جل جلاله نه د بیزارۍ په لار روان شو ، دغه تحریک د اروپا د خلکو د ژوند په هر اړخ ژور تاثیر وکړه ، او د اروپا د ټول فکري نظام مزاج یې رټ بدل کړ .

د دې نتیجه دا شوه چې د خلکو په زړونو کې نه یوازې د کلیسا او کلیسایي افکارو په هکله د کینې او دښمنۍ اور بل شو ، بلکه د کرکې او دښمنۍ د دغه اور لمبې په ټولنیزه توګه د هر ډول مذهب له تصوراتو او افکارو نه را چاپیرې شوې .

د دې په نتیجه کې چې د اروپا علمي تحریک څومره علمي پانګه نړیوالو ته په میراث پریښودله ، هماغومره یې ضد مذهبي پانګه هم نړۍ والو ته په سوغات پریښودله ، که هغه پانګه د ماوراء الطبیعه فلسفي په بڼه وه او که د هغې ترڅنګه د مجردو علمي څېړنو په بڼه چې په ظاهره له دین سره کوم سرو کار نه لري .

تاسو ته به دا څرګنده شوې وي ، چې د لویدیځ اند دود ، ( طرز فکر ) او نړۍ لید ( جهان بیني ) او بیا د علم په هر ډګر کې چې د هغو د کار پیل په کوم اساس شوی و د هغې تر شا د مذهب په هکله د هغوی په فکر کې زهرجن اثرات ، او له دښمنۍ ډک احساسات موجود وو ، نو له دې نه وروسته په دې خبره پوهیدل څه ګران کار نه دی ، چې د لویدیځ په فلسفه او افکارو کې ولې د اسلام په هکله له دښمنۍ نه ډک احساسات او جذبات موجود دي .

د اسلام په برخه کې دغه ډول کرکه او نفرت په ناځان خبرۍ توګه نه دی ، بلکه په شعوري ( ځان خبرۍ ) توګه دی او زیاتره وخت دغه ډول اعمال تر یوه منظم پلان لاندې سر ته رسیږي ، په دغه پلان کې هڅه کیږي ، چې لومړی د اسلامي عقایدو او تصوراتو د ماڼۍ بنسټ په شکمنو خبرو متزلزل او سست کړي او بیا ورو ورو هغه اساسات تحریف او ګډ وډ کړي .

چې اسلامي ټولنې ته له نورو ټولنو نه ځانګړې او امتیازي خصوصیت وربښي ، په دغو ناپاکو سازشونو له پوهیدو نه وروسته هم که مونږ د اسلامي علومو په تدریس کې د لویدیځ د ښوونې او روزنې د میتود په پلونو پل ږدو ، نو له دې نه به زیاته د شرم او ننګ خبره نه وي .

ځکه دا داسې ګناه ده چې د ښښلو وړ نه ده ، څرنګه چې مونږ په ساینسي علومو او تکنالوجۍ کې دیته اړ یو چې له لویدیځو منابعو نه ګټه واخلو نو پکار دا ده چې په دغه برخه کې ډیر پام وکړو او هغه علوم د فلسفي اثراتو له سیورې نه لرې وساتو دا ځکه چې د همدغو علومو فلسفیانه اثرات دي ، چې په عمومي توګه له مذهب او خصوصي توګه له اسلام سره ضد واقع شویدي او ډیر معمولي اثر یې هم د اسلامي ګروهې د سپیڅلې چینې د رڼو اوبو د خړولو لپاره کافي دی [1] .

---

[1]- وګوری ، " المستقبل لهذا الدین " نومې اثر د " الفصام الکند " باب .

## نهم فصل

# د مسلمانٌ قوميت

## د مسلمانانو د ټولنيز تنظيم بنسټ

په هغه بختوره ورځ چې اسلام د نوی او متحرکې ايډيالوژی سره د بشريت د يو والی او تنظيم لپاره نازل شو او انسانانو ته يی د اخلاقو او ژوند دود نوی معيارونه او دودونه وښودل او د دغو اخلاقي معيارونو د حاصلولو نوی لاری چارې يی هم ور وښودی ، پـه هماغه نيکمرغه ورځ يی انسانانو تـه د خپل مينځی اړيکو د لا سمون لپاره هم نـوی افکار او نظريات وښښل .

اسلام د خپل نزول په ورځ له نوو غوښتنو او ارمانونو سره نړۍ ته راغی او بشر ته يې د نوی ژوند او اصولو " چې د نيکمرغی په لوری يې روانول " زيری ورکړ ، دا يې هم ورته وښودله چې اسلام غواړی همدغه نوی اصول او قوانين د ټولنی د فساد او تباهی د له منځه وړلو لپاره عملی کړی ، هغه لاری چې دغه اصول او معيارونه پری تحقق مومی روښانه کړي .

اسلام د دی لپاره نازل شو چې د انسان او د هغه د رب اړيکې سره برابری کړی ، انسان په دی پوه کړی چې د کائناتو خالق هغه واحده او ټول واکه هستی ده ، چې د هغه د پت او عزت له درشل نه بايد انسان د خپل ژوند د امر او نهی ټول اصول او قوانين زده کړی .

ځکه چې همدی لا شريکه ذات هغه ته د هستی خلعت او د ژوند پانګه وربښلی ده ، په خپلو ټولنيزو اړيکو ، کې هم بايد د همدغه بی ساری ذات اصول او قوانين نافذ وګڼی ، ځکه دی په دی پوهيږی چې راپورته شوی هم د همده په اراده دی او بيرته به هم د همده په لور ورځی .

اسلام راغی او انسان ته يې د لهجی په پوره قوت او صراحت وويل : د الله جل جلاله په نظر د انسانانو د يو والی مزی ايکې يو دی ، که په دغه مزی سره ټول انسانان وتړل شول ، نو د هغی په مقابله کې د وينی مودت او الفت نور مزی ډير سست او پرسمن دي .

لَا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ يُوَادُّونَ مَنْ حَادَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَوْ كَانُوا آبَاءَهُمْ أَوْ أَبْنَاءَهُمْ أَوْ إِخْوَانَهُمْ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ [ مجادله : ۲۲ ]

( هيڅکله به داسې خلک پيدا نکړې چې پر الله جل جلاله او د قيامت په ورځ ايمان ولري او د الله جل جلاله او رسول الله صلّى الله عليه وسلم له دښمنانو سره دوستي وکړي ، که څه هم هغه دښمنان د دوی پلرونه ، زامن يا ورونه او د خپلې قبيلې خلک وي )

ځکه چې اسلام يوازې يو حزب پيژنې او هغه هم د الله جل جلاله حـزب دی ، هيڅکله تعدد نه منې ، پرته له دغه حزبه نور ټول حزبونه شيطاني او طاغوتي دي .

الَّذِينَ آمَنُوا يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ كَفَرُوا يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ الطَّاغُوتِ فَقَاتِلُوا أَوْلِيَاءَ الشَّيْطَانِ إِنَّ كَيْدَ الشَّيْطَانِ كَانَ ضَعِيفًا [د النساء سورت ۷۶ آيت ]

( هغـو چې ايمان راوړی دی د الله جل جلاله په لار کې جهاد کوی او هغو چې نه دی راوړی ، هغه د طاغوت په لاره کې جګړه کوی ، نو ای مؤمنانو د شـيطان له دوسـتانو سره جګړه وکړی او باور ولری چې د شيطان چلونه ډير کمزوری دی ) .

الله جل جلاله ته د رسيدلو ايکې يوه لاره ده ، نوری لاری سړی بی لاری کوی .

وَأَنَّ هَٰذَا صِرَاطِي مُسْتَقِيمًا فَاتَّبِعُوهُ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَنْ سَبِيلِهِ [د انعام سورت ۱۵۳ آيت ]

( همدغـه زمـا سـمه لار ده چې بـايد پری لاړ شی ، په نورو لارو مه ځی چې ستاسو د بيلوالی او تفرقی سبب ګرځی ) .

د انسـانانو د ژونـد لـپاره يوازی يو نظام حق دی او هغه هم اسلام دی ، له دی نه پرته چې نور څومره نظامونه دی هغه ټول جاهلی نظامونه دی .

أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ حُكْمًا لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ [د المائده سورت ۵۰ آيت ]

( ايا ( سره د دې دومره كامل قانون او محكمو اسماني اصولو ) بيا هم د جاهليت د وخت د احكامو غوښتنه كوي ؟ كوم حكم به د الله جل جلاله له حكم نه د يقين خاوندانو ته ښه وي ) .

په نړۍ كې يوازې يو ډول قانون او شريعت جايز او واجب الاطاعت دى ، چې هغه هم د الله جل جلاله شريعت او قانون دى ، له هغه پرته چې څومره قوانين دي هغه د هوا ، او هوس له مخې جوړ شويدي .

ثُمَّ جَعَلْنَاكَ عَلَى شَرِيعَةٍ مِنَ الْأَمْرِ فَاتَّبِعْهَا وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ [د جاثيه سورت ۱۸ آيت ]

( اى رسوله مونږ ته د دين په برخه كې په يوه پاكه لار ( شريعت ) روان كړې ، چې د الله جل جلاله په هماغه لاره لاړ شى هيڅكله د نا پوهو خلكو غوښتنى مه منه ، چې نه پوهيږي ) .

په دنيا كې " حق " يوازې يو دى چې په هغه كې تعدد او تنوع محال دى ، له حق نه پرته چې هر څه دي هغه ضلالت او ګمراهي ده .

فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ إِلَّا الضَّلَالُ فَأَنَّى تُصْرَفُونَ [د يونس سورت ۳۲ آيت ]

( د حق له وينا نه وروسته نور له ګمراهى او ضلالت نه پرته څه پاتې كيږي ؟آخر تاسو چيرته ځئ ؟ )

په نړۍ كې يوازې يوى سيمى ته دار الاسلام ويل كيداى شي چې هلته اسلامي حكومت وي ، د الهى شريعت حاكم وي ، د الله تعالى د ټاكلو حدود و درناوى پكې وشى ، هلته چې مسلمانان په ګډه سره د اسلامي حكومت چارې سمبالوي .

له دې نه پرته چې څومره سيمى موجودى دي ، هغه دي دار الحرب تر حكم لاندې راځي ، له دار الحرب سره يو مسلمان دوه ډوله سلوك اختيارولاى شي : جګړه يا دامن تر تړون لاندې سوله ، هغه ځاى چې اسلام هلته حاكم نه وي او د الله جل جلاله شريعت د ټولو جاهلى قوانينو ځاى ونه نيسي ، له اسلام سره هيڅ مناسبت نه لري ، د مسلمانانو او هغه خلكو ترمينځ هيڅ ډول يو والى او دوستى موجوده نه وي .

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ آوَوا وَنَصَرُوا أُوْلَئِكَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يُهَاجِرُوا مَا لَكُمْ مِنْ وَلَايَتِهِمْ مِنْ شَيْءٍ حَتَّى يُهَاجِرُوا وَإِنْ اسْتَنصَرُوكُمْ فِي الدِّينِ فَعَلَيْكُمْ النَّصْرُ إِلَّا عَلَى قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِيثَاقٌ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ()وَالَّذِينَ كَفَرُوا بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ إِلَّا تَفْعَلُوهُ تَكُنْ فِتْنَةٌ فِي الْأَرْضِ وَفَسَادٌ كَبِيرٌ()وَالَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ آوَوا وَنَصَرُوا أُوْلَئِكَ هُمْ الْمُؤْمِنُونَ حَقًّا لَهُمْ مَغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ()وَالَّذِينَ آمَنُوا مِنْ بَعْدُ وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا مَعَكُمْ فَأُوْلَئِكَ مِنْكُمْ [د الانفال سورت ۷۲ - ۷۵ آيت]

( هغه چا چې په الله جل جلاله ايمان راوړ او له خپل وطن نه يې هجرت وکړ ، أو د الله جل جلاله په لار کې يې مالي او ځاني هڅه او سربښندنه وکړه او هغو چې مهاجرينو ته پناه ورکړه او مرسته يې ورسره وکړه ، هغوی د يو بل دوستان دي ، هغه چا چې ايمان راوړی دی خو هجرت يې نه دی کړی ، تاسو هيڅکله د هغوی دوستان او پلويان مه اوسی ، تر هغه چې هجرت وکړی ، خو که له تاسو نه يې مرسته وغوښتله د دين په کار کې نو په تاسو لازم ده چې مرسته ورسره وکړی ، خو په داسی صورت نه چې د هغه قوم سره دښمنی ته ملا وتړی چې تاسو ورسره د سولی تړون کړی دي او په دی پوه شی چې هغه څه ( نيک او بد ) چې تاسو کوی الله جل جلاله په هغی خبر دی ، څکه هغه چا چې له حق نه انکار کړی دی او کفر يې غوره کړی دی ، په هغو کې هم ځينی له ځينو سره دوستی او مرسته کوی ، او که تاسو مسلمانان په هغه څه چې الله جل جلاله درته حکم کوی عمل ونه کړی ، پوه شی چې د نړۍ پر مخ به ډيری ستری فتنی او فسادونه را پيدا شی .

هغه چا چې ايمان راوړی دی او هجرت يی کړيدی ، د الله جل جلاله په لار کې يی ربړ ګاللی او سربښندنه يی کړيده او هم هغه چا چې مهاجرينو ته پناه ورکړيده او مرسته يی ورسره کړيده ، هغوی په ريښتونی او حقيقی توګه مؤمنان دی ، د الله جل جلاله بښنه او د جنت رزق د هغوی لپاره دی ، هغه چا چې ايمان راوړ او له تاسو نه يې وروسته هجرت وکړ او له تاسو سره

یی څنګ په څنګ د الله جل جلاله په لار کې جهاد وکړ ، هغه هم ستاسو مؤمنانو له جملې څخه دی ) .

اسلام له دغه ډول بشپړې او پریکنده ( قاطع ) پریکړې سره د هدایت او لارښوونې مشال په لاس دنیا ته راغی ، انسان یی له خاورې او ځمکې سره د پیوستګی او د وینې او غوښې د سکون له زولانو نه خلاص کړ او لوړ انسانی دریځ یی ورکړ .

د اسلام له نظره مسلمان هیڅ وطن نه لري ، او که لري یی نو یوازې هغه سیمه د ده اصلی تاټوبی او وطن دی چې هلته د اسلام د ازادی ښوونکې شریعت رپی " بیرغ " په رپاوی ، او د اوسیدونکو ترمینځ یی اړیکې د الله جل جلاله د اصولو پر بنسټ ولاړې وی ، د اسلام له نظره مسلمان هیڅ قوم پورې اړوند ( مربوطه ) ندی ، او که دی نو یوازې هغه قوم دی چې د اسلامي ګروهی تر توغ لاندې په دار الاسلام کې استوګن دي ، د اسلام له نظره مسلمان خپل او خپلوان نلري ، او که لري یی نو هغه یی خپلوان دی چې د ګروهی غوښتنو پر اساس مینځ ته راغی چې له دی وروسته بیا دده او د ده د دینی ملګرو ترمینځ یوه نهایت کلکه رشته او پیوند چې د خپلوی له رشتی او پیوند نه څو ګرایه مضبوطه او کلک دی مینځ ته راغی .

د مسلمان پلار ، مور ، ورور ، خور ، ښځه او کورنی تر هغه وخته د ده خپلوان نشی ګڼل کیدای ، ترڅو د دوی ترمینځ هغه رشته او پیوند مینځ ته رانشی ، چې له الله جل جلاله سره پری اړوند ( مربوطه ) کیږی .

چې وروسته بیا د دغی خدایې رشتی او پیوند پر اساس د دوی ترمینځ د وینی او توکم پر اساس د خپلوی مزی هم ښه ترا ټینګیدای شی .

يَاأَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَاءً وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ [د النساء سورت ۱ آیت ]

( ای خلکو ! له خپل رب څخه وویریږی چې تاسو یې له یوه نفس نه پیدا کړی یې او د هماغه نفس نه یی د هغه جوړه ( ښځه ) پیدا کړه او له دغو

دوارو نه یې ډیرې ښځې او نارینه په دنیا کې خواره کړل ، او هغه الله جل جلاله نه وویرېږې چې هغه یو بل ته واسطه کوی او خپل حق غواړې)

دغه خدایې رشته او پیوند یا د مذهب اختلاف د دی مانع نه دی ، چې یو مسلمان دی له خپل مور او پلار یا نورو خپلوانو سره راشه درشه نه کوی ، البته تر هغه وخته پورې چې د ده خپلوان د اسلام د دښمنانو په صف کې نه وی دریدلی ، خو که چیرې د ده مور او پلار یا نور خپلوان د اسلام په مخالفه جبهه کې ودریدل او له کفارو سره یې په څرګنده مرسته او خواخوږی لاس پورې کړ ، نو په داسې پیښه کې د مسلمان د خپلوی تولی اړیکې او له یو بل سره د نیک برخورد مسئولیتونه له منځه ځی ، په دی برخه کې حضرت عبدالله چې د عبدالله بن ابی ( د مکې منافقینو رئیس ) زوی و مونږ ته یو روښانه او بې سارې مثال پریښې دی .

ابن جریر له ابن زیاد نه روایت کوی چې : رسول الله صلی الله علیه وسلم د الله جل جلاله درود او سلامتیا دوی په هغه او د هغه په کورنۍ ، د عبدالله بن ابی زوی حضرت عبدالله ځانته راوغوښته او ورته وی فرمایل : تا ته څرګنده ده چې ستا پلار څه ویلی دی ؟

عبدالله عرض وکړ ، ای رسوله زما مور او پلار دی له تانه ځار وی ، هغه څه ویلی دی ؟

رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمایل : ستا پلار ویلی دی څنګه چې مونږ مدینې ته ور ورسیږو نو د عزت او پت خاوند به ذلیل او بې پته کسان په خوارې او ذلت له مدینې نه وباسی .

حضرت عبدالله وویل :

وَالَّذِيــنَ تَــبَوَّءُوا الــدَّارَ وَالْإِيمَانَ مِنْ قَبْلِهِمْ يُحِبُّونَ مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ وَلَا يَجِـــدُونَ فِي صُدُورِهِمْ حَاجَةً مِمَّا أُوتُوا وَيُؤْثِرُونَ عَلَى أَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ وَمَنْ يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ() وَالَّذِينَ جَاءُوا مِنْ بَعْدِهِمْ يَقُولُونَ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا الَّذِينَ سَبَقُونَا بِالْإِيمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِي قُلُوبِنَا غِلًّا لِلَّذِينَ آمَنُوا رَبَّنَا إِنَّكَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ [حشر: ۹-۱۰]

( د انصارو هغه ټولی چې د مهاجرینو له هجرت نه مخکې په مدینه کې اوسیدل او ایمان یې راوړی و ، هغوی له مهاجرینو سره دوستي او مینه کوله او په زړه کې به یې هیڅ نه تیریدل ، د هغو مرستو په وجه چې مهاجرینو سره به یې کولی ، که څه هم دوی به هم ورته اړ وو ، په هر څه کې به یې مهاجرین تر ځان مستحق ګڼل ، هر چا چې خپل ځان د بخل او حرص له زولانو نه خلاص کړ بی له شکه دغه ډول انسان د دنیا د نیکو خلکو څخه دی ، او هغه څوک چې وروسته له مهاجرو او انصارو ور اغلل هغوی د الله تعالی جل جلاله په دربار کې دعا کوی چې ای پروردګاره مونږ او زمونږ دینی ورونه چې له مونږ نه یې مخکې ایمان راوړی دی وبښه ، زمونږ زړونه د مؤمنانو په هکله له کینی او رخی نه پاک که ، ای خدایه ! بی له شکه ته په خپلو بندګانو ډیر مهربان او رؤف یی ) .

## په هر وخت کې د یو والی او تفریق اساس عقیده وه :

الله تعالی په خپل کتاب " قرآن " کې مسلمانانو ته د تیرو غوره انبیاو ډیری روښانه کیسی او مثالونه بیان کړیدی ، د الله جل جلاله دغو غوره انبیاء و په وخت کې د ایمان ډیوی روښانه کړیدی او تل به کله چې د ایمان أو ګروهي مزی ټینګ شی .

نو که بیا د خپلوی رشتی د چا ترمینځ موجودی هم نه وی ، ټول مؤمنان سره ورونه وی ، د دوی ترمینځ هغه پخه رشته مینځ ته راځی ، چې له هغوی نه یو قالب او یو ځان جوړوی ، الله جل جلاله فرمایې : انما المؤمنون اخوة ، ( ټول مؤمنان سره ورونه دی ) ، په دغه لنډه وینا کې حصر هم شته او تاکید هم .

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ آوَوا وَّنَصَرُوا أُوْلَئِكَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ [انفال : ۷۲]

( هغه چا چې ایمان راوړی دی او هغه چا چې د الله جل جلاله په لار کې هجرت کړیدی او د الله جل جلاله په لار کې یې په سر ومال جهاد کړیدی او

هغه ځا چې مهاجرینو ته پناه ورکړې او مرسته یې ورسره کړېده هغوی په حقیقت کې د یو بل (ولی) دی .

دغه دوستی ، سرپرستی او هغه ولایت چې په دې آیت کې ذکر شویدی ، په یوه نسل او یوې دورې پورې مربوطه نه دی ، بلکه تر ډېرو راتلونکو نسلونو پورې هم منتقل کیدای شي ، د مسلمان امت وروستی نسل لومړني سره او لومړنی نه وروستي سره د دوستۍ ، سرپرستۍ ، موٗدت ، ولایت په رشتو پیوند وي چې د یوه بل ژوند ته پوره پاملرنه وکړي ، دغه د وفادارۍ ، غم شریکۍ ، مهربانۍ ، صله رحم او شفقت پاکه او سپیڅلې رشته به د دوی ترمینځ له ازله تر ابده موجوده وي .

وَالَّذِينَ تَبَوَّءُوا الدَّارَ وَالْإِيمَانَ مِنْ قَبْلِهِمْ يُحِبُّونَ مَنْ هَاجَرَ

( [ او هغه د هغو خلکو لپاره هم دی ] چې د دغو مهاجرینو له راتګ نه مخکې یې ایمان راوړی په دارلهجرت کې استوګن وو . دوی له هغو خلکو سره مینه کوي چې دوی ته یې هجرت کړی دی)

په الله جل جلاله دې زما سوګند وي ، تر هغې چې د الله جل جلاله رسول الله صلی الله علیه وسلم اجازه ونکړي ، د مدینې سیورې به هم نور ستا نصیب نه شي او نه به هیڅکله هم په مدینه کې پناه واخیستلای شي .

دا بې زوې ، چې خپل زوی توره په لاس ولاړ ولیده نو چیغې یې کړې :

ای د خزرج قومه ! ګورۍ چې زما زوی ما له خپل کوره ایساروي .

ای د خزرج کهوله ! ګورۍ چې زما زوی ما خپل کور ته نه پرېږدي ...

هغه دوه ځلې دا نارې وکړې .

خو حضرت عبدالله ورته وویل : په الله جل جلاله سوګند چې هر څومره شور و زوږ وکړې کور ته به دې پرې نږدم ، مګر د الله جل جلاله د رسول په اجازه .

په دغه شور و زوږ د اوس او خزرج قبیلو ځینې خلک راټول شول او له هغه سره یې په دې برخه کې خبرې وکړې ، د پلار سپارښتن یې پرې وکړ ، خو حضرت عبدالله په خپله خبره ټینګ ولاړ و ، او ویل یې چې ، ترڅو د الله جل جلاله د رسول الله صلی الله علیه وسلم حکم نه وي تر هغې به یې کور ته پرې نږدم .

له دې امله څو کسه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم حضور ته ورغلل او له دغې پیښې نه یې خبر کړ ، هغه مبارک چې پوه شو نو وی فرمایل : عبدالله ته ورشی او ورته ووایې چې خپل پلار له کوره مه ایساروه " .

هغه خلک عبدالله ته راغلل او د هغه مبارک صلی الله علیه وسلم له پیغام نه یې خبر کړ ، حضرت عبدالله وویل : که د الله جل جلاله د رسول الله صلی الله علیه وسلم حکم وی ، نو دی کور ته تلای شی .

( ای د الله رسوله ! په الله جل جلاله سوګند چې هغه رښتیا ویلی دی ، ځکه دا خبره د همده په برخه کې سمه ده زما دی په الله جل جلاله سوګند وی چې تاسو ای د الله رسوله ! پتمن او عزتمن یاست او هغه بی پته او بی عزته دی .

یا رسول الله صلی الله علیه وسلم په الله جل جلاله سوګند چې مدینی ته ستاسو د راتګ په وخت د یثرب ټولو خلکو ته دا څرګنده ده چې له ما نه زیات هیڅوک هم د خپل پلار خبره نه اوری او اوس که د یثرب خلک له هغه څه نه چې ده ویلی خبر شی بی له شکه به یې مړ کړی ، په داسی حال کې چې تاسو پوهیږی اوس له ما نه زیات هیڅوک هم زما له پلار سره دومره کینه نلری .

نو که د الله تعالی او رسول الله صلی الله علیه وسلم خوښی په دی کې وی ، چې زه د خپل پلار سر هغوی ته وړاندی کړم ، نو اجازه راکړه چې ورشم او سر یې ستاسو حضور ته راوړم ، ځکه ویریږم چې دا ویـار د بل چا پـه برخـه نشی .

هغه وخت به زما په زړه کې د پلار د مینی له امله د کوم مسلمان ورور پـه هکله کینه او رخـه پیدا شی ، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفـرمایل : داسی مه کوه ! خو سره له دی هم کله چې مسلمانان مدینی ته را ورسیدل .

عبدالله ، د عبدالله بن ابی زوی د خپل پلار د کور په لوری لاړ ، د کور دوره په مخکې ودریده توره یی له تیکې راویستله او پوښتنه یی ترینه وکړه

، هغه ته وې چې ويلي دې و که مديني ته را ورسيدل نو د عزت او پت خاوندان به بې پته او ذليل کسان په خوارۍ او ذلت له مدينې نه بهر کړي ؟
په الله جل جلاله سوګند دې چې ته ناپوهه يې او يا دې ځان په ناپوهۍ وهلی دی ، په داسې حال کې چې پوهيږې عزت او درناوی ستا د ايمان او عقيدې د قافلې په سر کې روان وو ، په دغو مثالونو کې الله تعالی جل جلاله څرګنده کړيده چې د هر نبي په نظر د خپلوی اصل رشته د اسلام او عقيدې رشته ده ، د دې په مقابل کې نورې رشتې او خپلوي په هيڅ ډول ګټورې نشي ثابتيدلای .

وَنَادَى نُوحٌ رَبَّهُ فَقَالَ رَبِّ إِنَّ ابْنِي مِنْ أَهْلِي وَإِنَّ وَعْدَكَ الْحَقُّ وَأَنْتَ أَحْكَمُ الْحَاكِمِينَ() قَالَ يَانُوحُ إِنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَهْلِكَ إِنَّهُ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ فَلَا تَسْأَلْنِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ إِنِّي أَعِظُكَ أَنْ تَكُونَ مِنَ الْجَاهِلِينَ() قَالَ رَبِّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ أَنْ أَسْأَلَكَ مَا لَيْسَ لِي بِهِ عِلْمٌ وَإِلَّا تَغْفِرْ لِي وَتَرْحَمْنِي أَكُنْ مِنَ الْخَاسِرِينَ[د هود سورت ۴۵ - ۴۷ آيت ]

( نوح عليه السلام خپل رب ته نارې کړې او وې ويل : اې ربه ! زما زوی زما له کورنۍ دی او ستا وعده ريښتونې ده ، ته تر ټولو حاکمانو ښه او غوره حاکم يې ، په ځواب کې ورته وفرمايل شول : اې نوح ! هغه ستا له کورنۍ نه نه دی ، هغو خو يو نا صالح عمل کړيدی ، نو له دې امله ته د هغې خبرې غوښتنه له ما نه مه کوه ، چې په حقيقت يې پوهه نه يې ، زه تا ته نصيحت کوم چې ځان جاهلانو ته مه ورته کوه ، نوح عليه السلام سمدستي عرض وکړ : اې زما ربه ! زه ستا نه پناه غواړم د هغه څه په برخه کې چې زه يې له تا نه غواړم ، خو په حقيقت يې نه پوهيږم ، که ته مې ونه ښښې او رحم راباندې ونه کړې نو زه به تباه او برباد شم )

وَإِذِ ابْتَلَى إِبْرَاهِيمَ رَبُّهُ بِكَلِمَاتٍ فَأَتَمَّهُنَّ قَالَ إِنِّي جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ إِمَامًا قَالَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِي قَالَ لَا يَنَالُ عَهْدِي الظَّالِمِينَ [د البقره سورت ۱۲۴ آيت ]

( ياد کړه هغه وخت چې ابراهيم عليه السلام خپل رب په څو خبرو وازمايه او هغه په کې بريالی شو ، نو الله جل جلاله ورته وفرمايل : " زه تا د

ټولو خلکو امام او پیشوا کوم " ابراهیم عرض وکړ ، ای ربه همدغه ژمنه زما له ځوځات سره هم ده ؟ ځواب ورکړ شو ، زمونږ له ژمنی ظالمانو او تیری کوونکو ته ګته نشی رسیدای)

وَإِذْ قَـالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ اجْعَلْ هَذَا بَلَدًا آمِنًا وَارْزُقْ أَهْلَهُ مِنَ الثَّمَرَاتِ مَنْ آمَنَ مِنْهُمْ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ قَالَ وَمَنْ كَفَرَ فَأُمَتِّعُهُ قَلِيلًا ثُمَّ أَضْطَرُّهُ إِلَى عَذَابِ النَّارِ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ [د البقره سورت ۱۲۴ آیت]

( کله چې ابراهیم علیه السلام دعا وکړه : ای زما ربه ، له دغه ښار نه د سولې او امن ښار جوړ کړه او هغو اوسیدونکو ته یې چې په الله جل جلاله او اخرت ایمان لري د هر ډول میوو روزي ورکړه ، الله تعالی وفرمایل : هغه څوک چې په الله جل جلاله او آخرت ایمان نه لري ، زه د څو ورځنی ژوند وسایل او روزي هغوی ته هم ورکوم ، خو په پای کې به یې جهنم ته ولیږم او هغه ډیر بد ځای دی ) .

کله چې حضرت ابراهیم علیه السلام د خپل پلار او کورنی ټینګار په کفر باندې ولیده ، نو له هغوی نه یې ځان ګوښه کړ او وی فرمایل :

وَأَعْتَزِلُكُمْ وَمَا تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ وَأَدْعُو رَبِّي عَسَى أَلَّا أَكُونَ بِدُعَاءِ رَبِّي شَقِيًّ ( زه له تاسو سره خپلې اړیکې پریکوم او همدا رنګه له هغو موجوداتو سره چې تاسو ورته د الله تعالی جل جلاله په ځای رجوع کړیده ، زه به خپل رب ته رجوع وکړم او هیله لرم چې د خپل رب په رجوع کې به نا مراده نشم ) .

الله جل جلاله د حضرت ابراهیم علیه السلام او د هغه د قوم د یادونو په ترڅ کې د مؤمنانو لپاره ځنې خاصې یادونې هم کړیدي ، چې مؤمنان باید په هماغه لار ولاړ شي .

الله تعالی جل جلاله فرمایي : .

قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِي إِبْرَاهِيمَ وَالَّذِينَ مَعَهُ إِذْ قَالُوا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَآءُ مِنْكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَالْبَغْضَاءُ أَبَدًا حَتَّى تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَحْدَهُ [د ممتحنه سورت ۴ آیت]

( بې له شکه تاسو ته ابراهيم عليه السلام او د هغه ملګرې ښه مثال دي ، کله چې هغوی خپل قوم ته په ډاګه وويل : چې مونږ له تاسو او له هغه چا نه چې تاسو يې پرستش او ستاينه کوی بيزاره يو ، له الله جل جلاله نه پرته چې د هر څه عبادت کوی مونږ يې له سره نه منو ، زمونږ او ستاسو ترمينځ د تل لپاره څرګنده ميرځی ( دښمنی ) پيل شويده ، تر هغه پوری چې تاسو يوازی په يوه الله جل جلاله ايمان نه وی راوړی ) .

هغه لوړ همته او ځوان ورونه چې د اصحاب کهف په نامه يادېږی ، هغوی د دين او عقيدی په لاره کې د خپلو خپلوانو ، د کورنی له غړو ، پانګی او شتو ، هر څه سره الله پامانی وکړه او له خپل قوم نه يی ځانونه ګوښه کړل ، هغوی چې له خپل وطن نه هجرت وکړ يوازی د ايمان متاع ورسره موجوده وه ، له هماغی معنوی توښی سره د الله جل جلاله په حضور کې ودريدل ، چې د هماغه دين او ايمان پر بنسټ د يوه الله جل جلاله بندګی او عبادت وکړای شی .

إِنَّهُـــمْ فِتْيَةٌ آمَنُوا بِرَبِّهِمْ وَزِدْنَاهُمْ هُدًى()وَرَبَطْنَا عَلَى قُلُوبِهِمْ إِذْ قَامُوا فَقَالُوا رَبُّـــنَا رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ لَنْ نَدْعُوَ مِنْ دُونِهِ إِلَهًا لَقَدْ قُلْنَا إِذًا شَطَطًا() هَؤُلَاءِ قَوْمُنَا اتَّخَذُوا مِنْ دُونِهِ آلِهَةً لَوْلَا يَأْتُونَ عَلَيْهِمْ بِسُلْطَانٍ بَيِّنٍ فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ افْتَرَى عَلَى اللَّهِ كَذِبًا() وَإِذْ اعْتَزَلْتُمُوهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ إِلَّا اللَّهَ فَأْوُوا إِلَى الْكَهْفِ يَنشُرْ لَكُمْ رَبُّكُمْ مِنْ رَحْمَتِهِ وَيُهَيِّئْ لَكُمْ مِنْ أَمْرِكُمْ مِرفَقًا [د الكهف سورت ۱۳-۱۶ آيتونه ]

( هغوی څو ځوانان وو ، چې پر الله جل جلاله يی ايمان راوړی و او مونږ هغوی ته په لارښوونه کې ترقی او پرمختګ ور په برخه کړ ، مونږ د هغوی زړونه هغه وخت محکم کړل ، چې هغوی راپورته شول او اعلان يی وکړ چې زمونږ رب يوازی هغه دی ، چې د ځمکو او اسمانونو رب هم دی ، مونږ به هغه هيڅکله پری نهږدو او د بل معبود ستاينه به ونه کړو ، که چيری مونږ داسی وکړل ، نو بالکل به مو بی ځايه کار کړی وی ، " بيا هغوی وويل " دا زمونږ قوم دی چې د کائناتو د الله جل جلاله بندګی يې پريښی ده او بل الله

یی ځان ته جوړ کړیدی ، دغه خلک د خپلې ګروهی د ربښتونوالی لپاره ولی کوم دلیل نه راوړی ؟ له هغه چا نــه به نــور ستر ظالم او تیری کوونکې څوک وی چې په الله جل جلاله باندی په درواغو تور لګوی ؟ نو څرنګه چې تاسو اوس له دوی سره او همدا رنګه د دوی د غیر الله له معبودانو سره اړیکې شلولی دی نو لاړ شی په پلانی غار کې پناه واخلی ، ستاسو رب به د خپل رحمت لمن پــه تاسو وغوړوی او ستاسو د کار سر و سامان به برابر کړی ) .

د حضرت نوح علیه السلام او حضرت لوط علیه السلام د میرمنو یادونه هم په قرآن کې شویده ، د دوی او د دوی د میرمنو ترمینځ بیلتون یوازی په همدی خبره راغلی دی ، چې د میرمنو ګروهه یی د خاوندانو له ګروهی نه بیله وه ، د هغوی ګروهه د شرک په ایرو لړل شوی وه .

ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا لِلَّذِينَ كَفَرُوا امْرَأَةَ نُوحٍ وَامْرَأَةَ لُوطٍ كَانَتَا تَحْتَ عَبْدَيْنِ مِنْ عِبَادِنَا صَالِحَيْنِ فَخَانَتَاهُمَا فَلَمْ يُغْنِيَا عَنْهُمَا مِنَ اللَّهِ شَيْئًا وَقِيلَ ادْخُلَا النَّارَ مَعَ الدَّاخِلِينَ [د تحریم سورت ۱۰ آیت]

( د کافرانو د عبرت لپاره الله جل جلاله د نوح علیه السلام او لوط علیه السلام د میرمنو مثال ورکړیدی ، دغه دواړه ښځی زمونږ د ډیرو بندګانو له جملې نه د دوه بندګانو په نکاح وی ، دغو دواړو له هغوی سره خیانت وکړ ، خو د الله جل جلاله له مواخذی نه د هغوی خاوندانو خلاصی نه کړای شوی او د دواړو ښځو په هکله دا حکم راغی چې ځی لاړی شی له نورو خلکو سره تاسو هم دوزخ ته ننوځی ) .

د دی ترڅنګ د جابر او سر غړوونکې حاکم فرعون د میرمنی مثال هم بیان شویدی او د مسلمانانو لپاره د نمونی په توګه وړاندی شویدی .

وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا لِلَّذِينَ آمَنُوا امْرَأَةَ فِرْعَوْنَ إِذْ قَالَتْ رَبِّ ابْنِ لِي عِنْدَكَ بَيْتًا فِــي الْجَنَّةِ وَنَجِّنِي مِنْ فِرْعَوْنَ وَعَمَلِهِ وَنَجِّنِي مِنَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ [د تحریم سورت ۱۱ آیت]

( مسلمانانو ته د پند او نصیحت لپاره الله جل جلاله د فرعون د میرمنی مثال بیانوی ، کله چې هغی دعا وکړله ، ای زما پروردګاره ! ماته په جنت کې له ځان سره یو کور ودان کړه ، ما له فرعون او د هغه له بدو اعمالو نه خلاصه کړه او ما له ظالمو او تیری کوونکو خلکو نه هم وژغوره ) .

په همدی توګه قرآن د هر ډول رشتو او خپلویو په برخه کې ډیر مثالونه بیان کړیدی ، د نوح علیه السلام په کیسه کې د پلار ولیـ رشته موجوده ده ، د ابراهیم علیه السلام په کیسه کې د زوی او وطن د رشتی او اړیکو مثال بیان شویدی ، د اصحاب کهف په کیسه کې د خپلوانو ، قبیلی ، ورونړو ، وطن او قوم یو جامع مثال وړاندی شویدی ، د حضرت نوح علیه السلام او لوط علیه السلام او فرعون په کیسو کې د نر او ښځی د ازدواجی اړیکو مثالونه وړاندی شویدی .

خو د قرآن له نظره د خپلوی دا ټولی رشتی هغه وخت بی ارزښته او کمزوری ګڼل کیږی ، حتی چوری شلیږی ، چې د ګروهی د ازلی او ابدی اړیکو مزی یی سره وشلیږی .

## د هاشمی رسول د قوم د جوړښت اساس :

مونږ مخکې د الله جل جلاله د غوره بندګانو او ټولی ( انبیاؤ ) د اړیکو او تعلقاتو مثالونه او د ګروهی له مخی د هغی سپیڅلی انځور وړاندی کړ ، اوس غواړو چې د منځنی امت ( امت وسطه ) د خلکو په هکله هم په دغه برخه کې خیړنه وکړو .

د الله جل جلاله د عقیدی په رڼا کې د منځنی پوړی خلکو هم په خپل وار په پورتنی مسئله کې د یادولو وړ مثالونه پریښی دی ، دغه خلک هم د هماغی الله لاری لارویان دی ، چې الله جل جلاله د مؤمنانو لپاره له ازله انتخاب او غوره کړی وه ، په دغو خلکو کې هم تاسو لیدلای شی چې کله د ایمان رشته او مزی د دوی ترمینځ شلیږی .

یا په بله وینا کله چې د یوه انسان او بل انسان ترمینځ لومړنی رشته او مزی ( د ایمان او عقیدی ) وشلیږی نو د یوی قبیلی او یوی کورنی خلک

سره جلا جلا اوسيږي ، او په مختلفو ډلو سره ويشل کيږي ، الله جل جلاله د ريښتينو مؤمنانو د ستاينې په ترڅ کې فرمايي :

لَا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ يُوَادُّونَ مَنْ حَادَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَوْ كَـــانُوا آبَاءَهُمْ أَوْ أَبْنَاءَهُمْ أَوْ إِخْوَانَهُمْ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ أُولَئِكَ كَتَبَ فِي قُلُوبِهِمُ الْإِيمَـــانَ وَأَيَّدَهُمْ بِرُوحٍ مِنْهُ وَيُدْخِلُهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِـــيهَا رَضِـــيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ أُولَئِكَ حِزْبُ اللَّهِ أَلَا إِنَّ حِزْبَ اللَّهِ هُمُ الْمُفْلِحُونَ [د مجادله سورت ۲۲آيت]

( پيدا به نه کړې داسې خلک چې په الله جل جلاله !او آخرت هم ايمان ولري او له هغو خلکو سره دوستي وکړي چې د الله جل جلاله او د هغه د رسول دښمنان وي ، که څه هم دغه خلک د دوی پلرونه ، ورونه ، زامن يا د خپلې قبيلې خلک وي ، اهل ايمان هغه خلک دي چې الله جل جلاله ايمان د هغوی په زړونو کې نقش کړيدی او له غيبي برکته يې د هغوی مرسته کړې ده ، هغه به دوی داسې باغونو تــه داخل کړي ، چې د اوبو نهرونه پکې روان دي ، دوی به په هغه کې تل اوسيږي ، الله جل جلاله بــه له دوی نــه خوښ وي او دوی به له الله جل جلاله نــه دغــه ډله د الله جل جلاله ډله ( لښکر ) ده او خبر اوسې چې پــه يقين سره بــه د همدغې ډلې خلک د خير او فلاح څښتنان شي ) .

مونږ وينو چې د اسلام په تاريخ کې بې ساري مثالونه د عقيدوي رشتې او خپلوۍ د ځلانده تاثيراتو په برخه کې موجود دي ، له يوی خوا د محمد صلی الله عليه وسلم خپل تره ابو لهب او د خپلې قبيلې د سرې عمرو بن هشـام ( ابو جهل ) سره د وينې او قوميت مزې شليږي او له بلې خوا د مکې مهاجرين د خپلو خپلوانو په مقابل کې د بدر په جګړه کې توره په لاس دريږي .

په مکـه کـې د همدغـو مهاجرينو او د يـثرب د انصـارو پـه مينـځ کـې د ګروهی نـه شليدونکې مزی ټينګيږي او هغوی د يوه بل سکني ورونه کيږي ، داسې ورورۍ چې ساری يې د وينې او توکم ( نژاد ) په رشتو او خپلويو کې هم نه ليدل کيږي ، د خپلوۍ دغې رشتې د مسلمانانو ترمينځ يوه نوی

وروروليي پيدا کړه ، په دغې ورورولي کې عرب هم ګډون او برخه لري او غير عرب هم .

د روم صهيب هم پکې برخه لري ، د حبشي بلال او د فارس سلمان هم ، د دوی ترمينځ د قبيلوی امتيازونو ديوالونه نړيږي ، په اصل و نسب باندې وياړ له مينځه ځي ، د وطن او قوميت شعارونه کمزوري کيږي ، او د الله جل جلاله ، پيغمبر هغو ټولو ته په خطاب کې فرمايي :

۱ - دعوهـــا فانهـــا منتنه ( لـه دغـو بې ځايه وياړونو نه لاس واخلی دا خوسا شوی او بوين اجساد دي ) .

۲ - ليس منا من دعا الى عصبية وليس منا من قاتل على عصبية وليس منا من مات على عصبيه " هغه څوک چې جاهلي عصبيت ته خلک رابولي هغه زمونږ نه دی ، هغه څوک چې د عصبيت ( قومي او نژادي وياړونه ) لپاره جګړه کوي هغه هم زمونږ نه دی او هغه څوک چې په عصبيت مري هغه هم زمونږ له ډلې نه نه دی .

## دار الاسلام او دار الحرب

لنډه دا چې د دغو وروستو او کمزورو عصبيتونو دوره ختمه شوله ، د نسبي تعصب او وياړونو مردار او خوسا شوي جسد دفن شو ، د نژادي او نسلي امتيازاتو او لوړتيا جاهلي شعار تر پښنو لاندې له خاورو سره برابر شو ، د قومي افتخاراتو او وياړونو توغ راښکته کړای شو او نوم و نښان يې ورک کړای شو .

انسان د ټولو ټولنيزو قيودونه لکه قوم ، نژاد ، وطن ، نه ازاد شو ، د نړۍ په معطر بڼ کې يې د ازادۍ هوسا ژوند غوره کړ ، له همدغې ورځې نه د مسلمان وطن هم له جغرافيای پولو او بريدونو نه ازاد شو ، ټول دار الاسلام د هغه خوږ وطن شو .

هغه وطن چې هلته د ايمان او عقيدې حکمراني وی او يوازې د الهی شريعت توغ پکې رپيږي ، همدغه وطن د مسلمان د پناه اخيستلو ځای شو ، د ساتنې لپاره يې تل ملا تړلې ولاړ وو ، د پردو له بلوسی نه يې د خپل

باغ د ساتنې لپاره خپل ځان نذر کړ ، د هغه د پراختیا او پرمختیا لپاره یې د شهادت سور کفن واغوسته .

دار الاسلام د هر هغه سړي وطن دی ، چې د اسلام او الله جل جلاله د بندګۍ کړی یې په غاړه کې پرته وي ، او اسلامي شریعت د خپل ژوند د ازادۍ ببنسونکې قانون په توګه منی .

هغـه ځوک هم له دی پناه ګاه نه ګټه اخیستلای شی ، چې مسلمان نه وی خو اسلامي شریعت یې د حکومت د یوازینی قانون په توګه منلی وی ، لکه څنګه چې د هغو اهل کتابو مسئله ده ، چې په دار الاسلام کې استوګن دی ، خو هغـه سیمه چې د اسلام د حکومت توغ پکې په رپا نـه وی او الهـی شریعت د حکومت یوازینی قانون نـه وی ، هغـه د مسـلمان لـپاره او د دار الاسلام د اوسیدونکې متعهد ذمی لپاره د دار الحرب حیثیت لری .

مسلمان باید تل هغه ته توره په لاس ولاړ وی ، که څه هم هغه د ده د زوکړې وطن وی او یا یې د نسب او خپلوی اړیکې ورسره موجودی وی یا د ده پانګه او شته هلته موجود وی او یا یې هم نوری مادی ګټی هلته خوندی وی .

رسول الله صلی الله علیه وسلم د مکې پر خلاف توره راپورته کړه ، که څه هم مکـه د هغـه پلارنـی او د زوکړې وطـن وه هماغلـته یـی د خـپلی کورنـی غـړی او نـور خـپلوان اوسـیدل ، د هغـه مـبارک صـلی الله علـیه وسـلم او اصحابو ، کورونه مال او شته هم هلته وو .

چې د هجرت په وخت کې یی پریښی وو ، خو سره له دی هم مکه تر هغه وخته پوری د الله جل جلاله د پیغمبر او د هغه د یارانو لپاره دار الاسلام نه وه تر هغـه چې هلـته د اسلام تـوغ پورتـه نشـو او محمـدی غـوره شریعت د حاکمیت پر مسند تکیه ونکړه .

د ژونـد دغـه ډول بـی ساری تصور او معیارونو ته اسلام وایې اسلام د څو شـعرونو او نظمونـو مجموعه نه ده او نه مذهبی سرودونه دی ، چې یوازې د هغـو تکرارول مطلب وی ، نه په کومه ځانګړی سیمه کې ( چې د اسلام نوم یـی د اعـلان پـه دود پـه تنـدی لـیکل شـوی وی او یـا تش د اسلام په نامه

یادیږی ) تر پیدا کیدو وروسته په خپله د اسلامي اصولو له عملی کولو نه پرته چاته د مسلمان خطاب کیدای شی ، نه اسلام چاته په وراثت رسیږی ، چې څوک په مسلمانه کورنی کې پیدا شو ، نو ضرور به مسلمان وی ، د ده په مسلمانی کې د ده خپل اعمال د اعتبار وړ دی :

فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا [النساء سورت ۶۵ آيت]

( ای محمده ستا په رب می دی قسم وی ، دوی هیڅکله هم مؤمنان کیدلای نشی تر هغی چې د خپل مینځی اختلافاتو د اوارولو لپاره تا د حکم په حیث ونه منی او بیا ستا په پریکړه د زړه تنګوالی او خفګان احساس ونکړی ، بلکه په خوښی یی ومنی ).

یوازی دیته اسلام ویلای شو او یوازی هماغه سیمه دار الاسلام ده ، چې هلته د اسلام حکومت وی چې دا د وطن ، توکم ( نژاد ) نسب ، وینی او قبیلوی خپلوی او ورورۍ تر حدودو او بریدونو ډیر لوړ او عالی دی .

## د اسلامي هیواد ، د ساتنی اصلی محرک :

د اسلام په راتګ د انسان روح د مرئیتوب له هغو ځنځیرونو نه خلاص شو ، چې دی یی د ځمکې په ذلت پورې تړلی و د روح په ازادی سره انسان د دی وړ کیږی ، چې د ایمان په پراخه افق کې یی فکر ونظر د الوتلو وړ شی ، د وینی او نسب ځمکنی زولنی ماتی شوی ، انسانان په ایمانی مزو سره وتړل شول ، د خپلی خاوری ځمکې او تاتوبی له قید او بند نه هم ازاد شول .

ځکه اسلام هغوی ته وښوده چې ستاسو وطن د نړۍ کومه ټاکل شوی جغرافیای سیمه نده چې د جلا والی په صورت کې یی په مینه کې ساندی ووهی او یا یی د ساتنی لپاره په سر لوبی وکړی .

د مسلمان قومیت چې په هغی سره پیژندل کیدای شی د کوم حکومت له خوا ټاکل شوی ملیت او یا قومیت ندی ، د مسلمان ورور ولی ، چې تر سیوری لاندی یی پناه اخلی او د هغی لپاره جګړی کوی ، مرګ قبلوی ، د وینی او یا مورنی او پلارنی رشتی له مخی نه ده جوړه شوی ، د مسلمان

توغ چې دی پرې ویاړي او لوړ ساتل یې د سر په بیه هم ارزانه ګڼي د کوم خاص قوم توغ نه دي .

د مسلمان سوبه او برې چې دی ورته تل لیواله وي او په سوبمن کیدو یې الله جل جلاله ته د شکر سجده ادا کوي ، یوازې او یوازې کومه پوځي غلبه او سوبه نده ، بلکه هغه د حق سوبه ده چې الله جل جلاله په قرآن کې داسې بیان کړیده :

إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ وَالْفَتْحُ()وَرَأَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُونَ فِي دِينِ اللَّهِ أَفْوَاجًا()فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ إِنَّهُ كَانَ تَوَّابًا [سوره النصر]

( کله چې د الله جل جلاله له خوا مرسته او سوبه راشي ، نو خلک به وويني چې ډله ، ډله د الله جل جلاله دین ته داخليږي ، نو ته د خپل الله جل جلاله ستاینه او تسبيح وکړه ، له هغه نه بښنه وغواړه بې له شکه هغه توبه منونکې دي ) .

دغه برې او سوبه یوازې د ایمان تر توغ لاندې ترلاسه کیدای شي ، د کومې بلې جنډې عصبیت په دې کې نشي ګډیدلای ، دا جهاد یوازې د الله جل جلاله د دین د نصرت او اسماني شریعت د سر لوړې لپاره کیږي ، نه د کومې بلې ګټې او مقصد لپاره .

دا جهاد د هغه دار الاسلام نه د دفاع لپاره کيږي ، چې ځانګړتیاوې یې مونږ مخکې بیان کړې ، په دغه دفاع او ساتنه کې د وطني او قومي تصوراتو او معیارونو ځای نشته ، تر سوبې وروسته د سوبمن پوځ د پاملرنې وړ ټکي یوازې او یوازې د ولجې او غنيمت مال لاسته راوړل نه وي او نه دا جګړه د کوم دنیاوي شهرت او نامه د ګټلو لپاره کیږي ، د دې جګړې مقصد لکه څنګه چې یې نوم پاک دی مقدس جهاد Holy War ) هماغه ډول یې هدف هم پاک او سپیڅلی دی د الله جل جلاله رضا .

د الله تعالی د رضا حاصلول او د هغه تسبيح او استغفار د دغې جګړې اصلي مقصد دی ، دغه جګړه د وطني حمیت او قومي غیرت او عصبیت پر بنسټ هم نه ده ولاړه ، او نه یې د کورنۍ او مال او شتو ساتنه اصلي هدف دی ، که څیرې د کورنۍ او قبیلې ساتنې جذبه پر دې اصولو ولاړه وي ،

چې د هغوی دین او ایمان لـه فتنې او ازه‌یښت نـه بچ پاتې شي دا هیڅ باک ندي .

له حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه نه روایت دی چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه چا پوښتنه وکړه ، څوک چې د زړورتیا د ښودلو لپاره جګړه کوي ، بل د غیرت لپاره جګړه کوي او دریم د ریا او ځان ښودنې لپاره جګړه کوي ، له دوی نه څوک د الله جل جلاله په لار کې جګړه کوي ؟

رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ځواب ورکړ : هغه څوک چې یوازې د دې لپاره جګړه کوي چې یوازې د الله جل جلاله کلمه لوړه شي یوازې هماغه سړی د الله جل جلاله په لار کې جګړه کوي .

د شهادت لوړه پوړۍ یوازې د هغې جګړې په نتیجه کې لاسته راځي چې یوازې د الله جل جلاله لپاره وي ، د نورو مقاصدو لپاره چې جګړه او صف ارایي کیږي ، په هغو کې دغه لوړه مرتبه نشي ترلاسه کیدای ، هغه هیواد چې د مسلمان له عقیدې سره په جګړه بوخت وي ، د دیني فرایضو په سر ته رسولو کې خنډونه پیښوي ، او د شریعت له متابعت نه خلک ایساروي ، هغه هیواد د مسلمان لپاره دار الحرب دی ، که څه هم د ده خپلوان ، عزیزان ، ځمکه او پانګه پکې وي ، د ده سوداګرۍ او خوښۍ ورپورې تړلې وي .

د دې په مقابله کې هره هغه سیمه چې د مسلمان د ګروهې ډیوه پکې روښانه وي ، د الله جل جلاله په شریعت عمل پکې جاري وي ، هغې ته دار الاسلام ویل کیږي ، که څه هم په دې سیمه کې د مسلمان کورنۍ او نور خپلوان ، قوم ، تجارت او مادي ګټې نه وي .

وطن په اسلامي اصطلاح ، د هغې سیمې نوم دی ، چې په هغې کې د اسلامي عقیدې حکومت موجود وي او د اسلام د ټولنیز ژوندانه قانون ، پکې نافذوي ، الهي شریعت پکې تر نورو ټولو اصولو او قوانینو غوره وګڼل شي ، او عمل پرې وشي .

بې له شکه د وطن دغه تعریف او مفهوم د انسان له رتبې او مقام سره برابر دی ، په همدې توګه قومیت هم د اسلامي اصطلاح له نظره له عقیدې او د ژوندانه له اسلامي قانون نه عبارت دی ، د انسانیت له

شرف ، فضل ، او کرامت سره هم چې کوم تعریف مناسبت او وړتیا لري ، هغه د قومیت همدغه تعریف دی چې اسلام کړېدی .

قومي او نژادي شعارونه د جاهلیت د کرغیړنې ایډیالوژۍ تعفن دی د قوم ، قبیلې ، نژاد ، ژبې ، رنګ او وطن عصبیت او دعوت نه یوازې دا چې تنګ نظري ، لنډ اندي او پوچ مغزي ده ، بلکه دغه شعارونه د بشریت د وروسته پاتې والي او وحشت د وخت یادګارونه دي ، دغه جاهلي عصبیت په هغو وختونو کې پر انسانانو باندې مسلطه و چې بشر له فکري او روحي پلوه له زوال او انحطاط سره مخامخ و .

رسول الله صلی الله علیه وسلم دغه شعارونه په " خوسا او متعفنو " شعارونو تعبیر کړي دي ، یعنې داسې مرداري چې تر اوسه یې هم دوړې خیژي ، د انسان نفیس ذوق اغیزمن کوي او د کراهت او کرکې احساس ترې کوي .

کله چې یهودو ، دا ادعا وکړله چې مونږ د نسل او نژاد له مخې د الله جل جلاله غوره او محبوب قوم یو نو الله تعالی د دوی د بې ځایه ادعا د تردید لپاره وفرمایل چې د هر قـوم ، هر نژاد او نسل د خلکو لپاره د تاریخ پـه هر پړاو کې یو پر بل د شرافت او فضیلت معیار یوازې او یوازې پر الله جل جلاله او د هغه کاملې بندګۍ ته ټاره کېښودل دي ، بل هیڅ معیار نشته .

وَقَالُوا كُونُوا هُودًا أَوْ نَصَارَى تَهْتَدُواقُلْ بَلْ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ() قُولُوا آمَنَّا بِاللَّهِ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْنَا وَمَا أُنزِلَ إِلَى إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ وَمَا أُوتِيَ مُوسَى وَعِيسَى وَمَا أُوتِيَ النَّبِيُّونَ مِن رَّبِّهِمْ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ() فَإِنْ آمَنُوا بِمِثْلِ مَا آمَنتُم بِهِ فَقَدِ اهْتَدَوا وَّإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا هُمْ فِي شِقَاقٍ فَسَيَكْفِيكَهُمُ اللَّهُ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ() صِبْغَةَ اللَّهِ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ صِبْغَةً وَنَحْنُ لَهُ عَابِدُونَ [ د البقره سورت ۱۳۵ - ۱۳۷ آیتونه ]

( یهودان وایې چې یهود شی نو سمه لار به پیدا کړی ، عیسویان وایې چې : د عیسی علیه السلام دین ومنی نو هله به لارښوونه درته وشی ، هغوی ته ووایه ، دا یوه هم مه منی ، ټولې لارې پرېږدی او د ابراهیم علیه

السلام لاره غوره کړی ، چې حنیف و او د مشرکانو له ډلی نه وو ، مسلمانانو ! ورته ووایې چې : مونږ ایمان راوړی دی پر الله جل جلاله باندی او په هغه هدایت او لارښوونه چې په ابراهیم علیه السلام ، اسمعیل علیه السلام ، اسحاق علیه السلام ، یعقوب علیه السلام ، او د یعقوب علیه السلام پر اولاده باندی نازل شوی و او همدا رنگه هغه هدایت او لارښوونه چې موسی علیه السلام او عیسی علیه السلام او نورو پیغمبرانو ته د هغوی د الله تعالی له خوا نه شوی وه ، مونږ د دوی په مینځ کې هیڅ توپیر نه کوو ، مونږ مسلمان یو ، نو که چیری بیا هغوی داسی ایمان راوړ لکه څنگه چې تاسو راوړی دی نو هغوی ته به هدایت شوی وی او که چیرې یی ایمان را نه وړ نو څرگنده خبره ده چې هغوی په بی ایمانی اخته شویدی ، نو له دی امله ډاډه اوسی چې په مقابله کې الله تعالی ستاسو د ساتنی او ملاتړ لپاره بس دی ، هغه هر څه اوری او پر هر څه پوهیږی ، د الله جل جلاله روش غوره کړی د هغه له روش نه به بل ښه روش د چا وی ؟ او مونږ د هغه بندگان یو) .

د الله تعالی غوره او محبوب قوم په حقیقت کې هماغه " مسلمان امت " دی چې د قوم ، نژاد ، ژبی او وطن له مغایرت سره سره بیا هم د الله جل جلاله تر ویاړلی توغ لاندی راټولیږی او د الله جل جلاله د کلمی د لوړ والی لپاره د جاهلیت په مقابله کې یو موټی کیږی :

كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ [دآل عمران سورت ۱۱۰ آیت]

(تاسو هغه نیک او غوره ټولی یی چې د بشر د لارښوونی او سمون لپاره میدان ته راوستل شوی یاست ، تاسو خلکو ته د نیکې کولو امر کوی ، له بدی نه یې ایساروی ، او پر الله تعالی ایمان لری) .

دا هغه الله پرست امت دی چې مخکښ یی د عربو د درنی کورنی د سترگو تور حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه و ، د حبشی بلال رضی الله عنه ، د روم صهیب رضی الله عنه او د فارس سلمان رضی الله عنه د دغه اسمان ځلنده ستوری وو ، د دغه امت د قومیت بنسټ ... د توحید عقیده

... ده ، دار الاسلام د دوی وطن دی . د ... الله پاک جل جلاله حاکمیت ...
د دوی غوزه او امتیازی شعار دی ، او... قرآن ... د دوی ژوند دود ، دی .

## د وطن او قوم عصبیتونه د توحید منافی دی :

د وطن ، قومیت او خپلوی دغه پاک او سپیڅلی تصور باید د حق د لاری تلونکو پر زړونو په پوره ډول انځور شی ، داسی چې د هغوی په زړه ، دماغ او د وجود په رګ رګ کې یی د جاهلیت د شک او شبهی د انځور لپاره له سره ځای پاتی نه شی ، او د خفی شرک د اثراتو دوره هم باید پری ونه غورځیږی .

نه یوازی د خفی شرک له ایرو نه باید پاک وی ، بلکه له هر ډول شرک نه باید د دغه تصور د سپیڅلی چینی رڼې اوبه پاکې وی لکه د وطن پالنی شرک ، نژاد پالنی شرک ، قوم پالنی شرک ، د دنیاوی ګټو پالنی شرک ، لنډه دا چې له دی ټولو نه باید پاک وی .

د شرک دغه ټول ډولونه الله تعالی په یوه ایت کې راټول کړیدی او د ټلی په یوه پله کې یی اچولی دی ، د ایمان او د هغه غوښتنی یی په بله پله کې ، بیا یی انسان ته دا اجازه ورکړیده چې هره پله غوره ګڼی .

قُلْ إِنْ كَانَ آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ وَإِخْوَانُكُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ وَأَمْوَالٌ اقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسَاكِنُ تَرْضَوْنَهَا أَحَبَّ إِلَيْكُمْ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَجِهَادٍ فِي سَبِيلِهِ فَتَرَبَّصُوا حَتَّى يَأْتِيَ اللَّهُ بِأَمْرِهِ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ [د التوبه سورت ۲۴ آیت]

( ای نبی ورته ووایه ! چې که ستاسو پلرونه ، زامن ، ورونه ، ښځی ، خپل او خپلوان ، او هغه شته چې تاسو ګټلی دی او ستاسو هغه تجارت او کاروبار چې له زیانمن کیدو یی تاسو ویره لری ، ستاسو کور چې ډیر مو خوښ دی ، تاسو ته د الله تعالی په لار کې له جهاد کولو نه ډیر ګران وی ، نو انتظار وکړی تر هغه وخته چې الله تعالی خپله پریکړه تاسو ته څرګنده کړی ، الله جل جلاله فاسقو خلکو ته لارښوونه نه کوی ) .

د حق د لاری د لارویانو او اسلامي نهضت د توغ اوچتوونکو په زړونو کې باید د اسلام د حقانیت ، ریښتینولی ، دار الحرب او دار الاسلام د

تعریف او څرنګوالی په هکله هیڅ ډول شک او شبه موجوده نه وي ، په حقیقت کې همدغه شکونه او شبهې د کمزورو خلکو په اسلامي تصور ، یقین او باور په سختو شرایطو کې ډاکه غورځوي ، نو له دې امله یې باید له ځانه لرې وساتو .

که نه نو دا خبره خو د لمر په څیر څرګنده ده ، چې په هغه هیواد کې چې اسلامي نظام او اسلامي شریعت حاکم نه وي هغه هیواد له اسلام او مسلمانانو سره هیڅ اړیکې نه لري او نه د اسلامي هیوادونو په لړ کې راتلای شي ، دا خبره هم څیړنې او سپړنې ته اړه نلري ، چې هیڅ داسې هیواد ته د دار الاسلام خطاب نشي کیدای ، چې په هغه کې د اسلام غوره او منل شوي ژوند دود او قانون د اقتدار په څوکې نه وي ناست ، په دغه ډول چاپیریال کې اسلام ته خو لا پریږده چې د کفر خواته نژدې کیږي ، په کوم ځای کې چې اسلام نه وي هلته به ضرور د جاهلیت قوانین دود وي ، د حقې لارې نه تر مخ ګرځولو وروسته به له ضلالت او ګمراهۍ نه پرته نور هیڅ په برخه نشي ؟

## لسم فصل

# ژور بدلون ته اړتيا

## اسلام په څه ډول خلکو ته وښيو

کله چې مونږ خلکو ته د اسلام ريښتونې څيره ښيو ، نو که زمونږ اوريدونکې مسلمانان وي او که غير مسلمان ، يو بديهي حقيقت مو بايد له نظره ونه غورځيږي ، دا هغه حقيقت دى ، چې په خپله د اسلام د مزاج او ( فطرت ) د غوښتنو له مخې مينځ ته راغلى دى ، د اسلامي تاريخ په زرينو پاڼو کې د هغې د اثبات لپاره پريمانه دلايل موجود دي ، په لنډو الفاظو کې دغه حقيقت داسې انځورولاى شو :

اسلام چې د ژوند او کائناتو د حقيقت کوم انځور او تصور مونږ ته راکړى دى ، هغه ډيرى غوره او امتيازي ځانګړتياوى لرى ، له دغې منبع نه چې د انسانانو د ژوند دود ، " طرز زندګى " کوم نظام اخيستل شويدى ، هغه هم له خپلو ټولو سترو او کوچنيو توکونو سره ، بشپړ او مستقل نظام دى او له ځانګړو امتيازاتو نه برخه من دى ، د ژوند او کائناتو د حقيقت او واقعيت د بيانولو له مخى ، دغه بشپړ تصور په بنيادى توګه له هغو ټولو جاهلى تصوراتو سره بډوالى ( ضديت ) لرى ، چې په لرغونى زمانه کې دود وو او که د اوسنى زمانى په نوى جاهليت کې دود دى .

کيداى شى چې دغه اسلامي تصور کله نا کله په ځينو ، ضمنى او سطحى جزئياتو او تفصيلاتو کې له جاهلى تصوراتو سره سمون وخورى ، خو تر کومى اندازى چې په هغو کلى اصولو پورى اړه لرى ، چې دغه جزئى او سطحى معلومات ترى اخيستل شويدى ، نو هغه د اوسنى پيړۍ او لرغونى زمانى له جاهلى تصوراتو ، افکارو او نظرياتو سره هر اړخيز بدلون او توپير لرى چې په انسانى تاريخ کې تر اوسه پورى دود او د پرمختګ په حال کې دى .

له همدې امله د اسلام تر ټولو لومړی کار دا دی ، چې يوه داسې بې ساری ټولنه جوړه کړي چې د اسلامي تصور هر کلي او جزئي توک په کې د لمر په څير ځلنده وي ، او د ټولو اسلامي قوانينو عملي تفسير وي ، داسې نظام وي ، چې د الله جل جلاله د غوره کړي شوي ژوند دود ، کامل انځور وي ، ځکه چې الله جل جلاله مسلمان امت د همدې لپاره راپورته کړيدی ، چې د الهي غوره کړي شوي ژوند دود ، ترجماني وکړي او هغه نړۍ والو ته د عمل په ژبه وړاندې کړي .

الله جل جلاله فرمايي :

كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ [د ال عمران سورت ۱۱۰آيت]

( تاسو هغه غوره ډله ياست چې د انسانانو د لارښوونې لپاره راپورته کړای شوې ياست ، تاسو خلکو ته د نيکې کولو حکم کوی او له بدو نه يې ايساروی او په الله جل جلاله ايمان لری ) .

الَّذِينَ إِنْ مَكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ أَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ [د الحج سورت ۴۰ آيت]

( دا هغه خلک دي ، چې که مونږ په ځمکه کې واک او ځواک ورکړ ، دوی به لمونځونه کوی ، زکات به ورکوی ، خلکو ته به په نيکې کولو حکم کوی او له بدو به يې ايساروی ) .

د اسلام له شان سره دا نه ښايي ، چې د نړۍ له واکمنو جاهلي تصوراتو او افکارو سره روغه جوړه او سازش وکړي يا له جاهلي نظامونو او جاهلي قوانينو سره د ګډ ژوند د اصولو پر اساس معامله وکړي ، دغه ډول کمزوري دريځ اسلام په هغه وخت کې هم نه وه غوره کړی ، چې د نړۍ په تورتم او جاهلي افق کې يې نوې سترګې پرانيستلې وی ، نه به اوس دغه ډول دريځ غوره کړي او نه په ګانده (آينده) کې دا هيله شته ، چې دغه ډول دريځ به غوره کړي ، جاهليت چې د تاريخ له هر پړاو سره اړيکې لري ، هغه جاهليت دی .

جاهلیت په حقیقت کې د الله تعالی له بندګی نه سرغړونه او د رالیږل شوی غوره نظام نه بغاوت دی - جاهلیت د الله جل جلاله نه پیژندونکو اشخاصو او منابعو د ژوند دود ، قوانینو ، قواعدو ، اصولو ، عاداتو ، او معیارونو د راخیستلو نوم دی ، د جاهلیت برعکس اسلام د الله جل جلاله په دربار کې د تواضع او بندګی نوم دي .

آسلام د کومی مخصوصی تاریخی مرحلی لپاره خاص کړای شوی ندی ، بلکه د بشر لپاره په هره دوره او هر حالت کې ګتور دی ، د اسلام کړنلاره او مشن د جاهلیت له تیارو نه د انسانانو را ایستل دی او د اسلام د هدایت په نور منور کول دی .

په زیاتو څرګندو الفاظو جاهلیت دا دی چې انسان د ځان په څیر انسانانو مرئیتوب کړی یعنی ځینی انسانان ځان لوړ او زور ور وګڼی او د نورو انسانانو لپاره د الله جل جلاله د مشیت په خلاف قوانین جوړ کړی او په دی نه پوهیږی چې د قانون اختیارات په څه ډول او تر کوم حده استعمالیدای شی .

اسلام دا دی چې ټول خلک د یوه الله جل جلاله بندګی وکړی ، د خپلو ټولو تصوراتو ، عقایدو ، قوانینو ، شرایعو ، د ژوند دودونو ، او رد او قبول معیارونه د الله جل جلاله احکام وګڼی ، مخلوق له بندګی نه ازاد شي او په بشپړه توګه ځان د الله جل جلاله بندګی ته نذر کړی .

په حقیقت کې دا په خپله د اسلام د فطرت غوښتنه ده ، او د اسلام له هغه عمل نه څرګندیږی ، چې په نړۍ کې یی عملا سر ته رسولی دی ، یا غواړی چې سر ته یی ورسوی ، همدغه حقیقت باید مونږ هغو ټولو انسانانو ته ، چې مونږ یې اسلام ته رابلو ، مسلمان وی که نا مسلمان په یوه ډول واضح او څرګند کړو .

## د اسلام او جاهلیت ترمینځ سوله نشی کیدی :

اسلام له جاهلیت سره هیڅ ډول روغه جوړه نشی کولای ، که د فکر او نظر روغه جوړه وی او که په فکر او نظر باندی د مرتب شوو قوانینو مسئله وی ، خبره څرګنده ده ، یا به اسلام وی یا جاهلیت .

دریمه بڼه چې نیم به اسلام وی او نیم به جاهلیت ، دغه د وروری ویش د اسلامي اصولو له خوا مردود دی ، په دغه برخه کې د اسلام دریځ بالکل روښانه دی ، اسلام وایې : حق نه تجزیه کیږی ، که حق نه وی باطل به وی ، د حق او باطل ګډون ، امتزاج او ګډ ژوند محال دی .

حکم به یا د الله جل جلاله وی او یا د جاهلیت ، یا به د الله جل جلاله د شریعت توغ په رپاوی ، یا به د جاهلیت د شخصی هوا او هوس نغاری وهل کیږی ، دغه حقیقت ته قرآن هم اشاره کړیده :

وَأَنْ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ وَاحْذَرْهُمْ أَنْ يَفْتِنُوكَ عَنْ بَعْضِ مَا أَنزَلَ اللَّهُ إِلَيْكَ [د المایده سورت ۴۹ آیت]

( نو ای محمده! صلی الله علیه وسلم ته د الله جل جلاله د نازل کړي قانون سره سمه د ې خلکو د چارو فیصله وکړه او د هغو د خواهشاتو پیروي مکوه، پام کوهع یچ دا خلک تا په فتنه کې ونه چوي یوه ذره قدرې دي هم له هغه هدایت نه اووښتې ونه مومي چې الله جل جلاله تاته درلېږلی دی ) .

فَلِذَلِكَ فَادْعُ وَاسْتَقِمْ كَمَا أُمِرْتَ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ [ د شوری : ۱۵ ]

( نو همدی خواته بلنه ورکړه او پر هغی ثابت اوسی لکه څنګه چې تاسو ته حکم شویدی او د هغوی د نفسی غوښتنو پیروی مه کوی ) .

فَإِنْ لَمْ يَسْتَجِيبُوا لَكَ فَاعْلَمْ أَنَّمَا يَتَّبِعُونَ أَهْوَاءَهُمْ وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّنْ اتَّبَعَ هَوَاهُ بِغَيْرِ هُدًى مِنْ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ [د القصص : ۵۰]

( او که چیری ستاسو غوښتنو ته مثبت ځواب درنکړی نو پوه شی چې دا خلک د خپلو خواهشاتو مریان دی ، له هغه سړی نه به زیات ګناهګار او ګمراه څوک وی ، چې د خپلو غوښتنو پیروی کوی او د الله تعالی د هدایت او لارښوونی پرواه نه کوی ، بی له شکه ظالمان د الله تعالی له هدایت او لارښوونی نه بی برخی دی ) .

ثُمَّ جَعَلْنَاكَ عَلَى شَرِيعَةٍ مِنَ الْأَمْرِ فَاتَّبِعْهَا وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ() إِنَّهُمْ لَنْ يُغْنُوا عَنكَ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا وَإِنَّ الظَّالِمِينَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ وَاللَّهُ وَلِيُّ الْمُتَّقِينَ [د الجاثیه سورت ۱۸ آیت]

( ای محمده ! مونږ ته د دین په مسئله کې په یوه سپیڅلی او ښکاره لار ( شریعت ) روان کړی یی ، نو لهذا ته په هماغه لار لاړ شه د هغو خلکو د غوښتنو مطابعت مه کوه چې علم نه لری ، له الله جل جلاله سره به د مخامخ کیدو په وخت کې دا خلک ستا هیڅ په کار نشی ، ظالمان د یوه بل ملګری وی ، او الله جل جلاله د پرهیزګارانو دوست دی ) .

أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ حُكْمًا لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ [د المائده سورت ۵۰ آیت]

( نو ایا دوی بیرته د جاهلیت فیصلی او حکمونه غواړی ، په داسی حال کې چې هغه خلک چې په الله تعالی یقین او باور لری د هغوی په نزد له الله تعالی نه پرته بل ښه فیصله کوونکې او حکم نشته دی ) .

لـه پورتنـیو ایـاتونو نـه پـه ډاګـه څرګـندیږی چـې یـوازی همـدا دوه لاری موجـودی دی ، دریمـه لار هـیڅ نشـته ، یـا خو به د الله جل جلاله او د هغه د رسول الله صلی الله علیـه وسـلم دعـوت او بلنـی ته غـاړه ږدی او یا به په بل صـورت د خپل نفس د خواهشاتو پیروی ، یا به د الله جل جلاله پریکړه منی او یا به هم جاهلیت ته سر ټیټوی .

کـه چیری د الله جل جلاله رالیږل شوی قوانین د پریکړو اساس ونه ګرځی ، نو په ښکاره توګه د الله جل جلاله له احکامو نه سرغړونه ده ، د کتاب الله د پورتـنی سـپیڅلی او څرګـند بـیان نـه وروسـته نـور د بحـث او مجـادلی او کومی پلمی لپاره ځای نه پاتی کیږی .

## د اسلام کړنلار:

د اسلام هدف او مقصد څرګند دی ، د اسلام لومړی وظیفه په نړۍ کې دا ده ، چې جاهلیت د انسانی رهبری او قیادت له منصب نه بی برخی کړی ، او د چارو واګی په پخل لاس کې واخلی ، خپلی ځانګړی ژوند دود ، چې

د جلا، غوره او مستقلو اوصافو لرونکې دی ، نافذ کړي ، له دغې صالحې رهبرۍ او قیادت نه د هغه مطلب د انسان ښیګړه ده چې دغه ښیګړه یوازې الله جل جلاله ته د انسان په بندګۍ او د کائناتو او انسان ترمینځ د حرکت له هم اهنګۍ او توافق نه پیدا کیږي .

مقصد یې دا دی چې انسان په ریښتونې توګه د انسانیت هغه لوړ معنوی مقام ترلاسه کړي چې الله جل جلاله ورته غوره کړیدی ، د نفسي خواهشاتو او بې ځایه غوښتنو له لومې څخه یې وژغوري دا هغه حقیقت دی ، چې حضرت ربیع بن عامر د فارسي پوځ سر لښکر رستم ته بیان کړی و .

رستم پوښتنه کړې وه چې : تاسو دلته د څه لپاره راغلي یاست ؟

ربیع ورته ویلي وو چې : الله جل جلاله مونږ د دې لپاره رالیږلي یو چې انسانان د انسانانو له بندګۍ او مرئیتوب نه وژغورو ، او د یوه الله جل جلاله د بندګۍ په ویاړلې صف کې یې ودرو ، د دنیا پرستۍ له مصیبت نه یې خلاص کړو او د دنیا او آخرت له نعمتونو نه یې غولۍ ډکه کړو ، د انساني ادیانو له ظلم او تیریو نه یې خلاص کړو او د اسلام د عدل تر سیورې لاندې یې په یوه منظم صف کې ودرو .

اسلام د انسانانو د نفسي غوښتنو د تائید او توثیق لپاره نه دی راغلی ، هغه چې انسان یې د مختلفو نظریاتو او تخیلاتو په بڼه کې د ډول ډول دودونو او رواجونو تر پردې لاندې اظهاروي .

د اسلام په پیل کې هم همداسې ناوړه دودونه او رواجونه موجود و او اوس هم د لویدیځ او ختیځ په انسانانو د نفسي خواهشاتو د غوښتنو سلطنت ، او بادشاهي ده ، اسلام د نفسي غوښتنو د بادشاهۍ د کا واکه ستنو د محکمولو لپاره نه دی راغلی .

بلکـه د دې لـپاره راغلـی دی ، چـې هغـه د دغـه ډول ټولـو تصـوراتو ، قوانینـو ، دودو او رواجونـو ورسته کمبله ټولـه کړي ، او د هغې پر ځای د خپلو ځانګړو بنیادي اصولو پر بنسټ د انساني نوې ژوند ماڼۍ ودانه کړي ، یوه نوې دنیا تخلیق کړي .

د ژوند یوه نوې نقشه او طرح جوړه کړي ، چې بنسټ او چورلیځ ( محور ) به يې اسلام وي .

**له جاهلیت سره د اسلام جزوي مشابهت** :

ځینې وختونه داسې کیږي چې د اسلام ځینې جزوي اړخونه د هغه جاهلیت د ژوند له ځینو اړخونو سره ورته والی لري ، چې خلک عملا ورسره لاس په ګریوان وي ، خو د دې مطلب دا نه دی چې د جاهلیت ځینې اجزا او توکونه به په اسلام کې هم موجود وي ، دا هسې یوه اتفاقي خبره ده چې په ځینې سطحي او سرسري امورو او فروعاتو کې د اسلام او جاهلیت ترمینځ ورته والی موجود دی .

که نه نو دواړه بیلې بیلې ونې دي ، او د دواړو ریښې او ولې له مختلفو چینو نه خړوبیږي ، تنې او شاخونه يې هم بیل دي ، لکه تر دې نه لا زيات توپیر د هغوی ترمینځ موجود دی ، یوه هغه د رحمت ونه ده ، چې د الله جل جلاله په حکمت راټوکیدلې ده او پالنه يې شویده ، او بله هغه د خباثت ونه ده ، چې د انساني ناروا غوښتنو په ښوره ځمکه کې رالویه شویده .

وَالْبَلَدُ الطَّيِّبُ يَخْرُجُ نَبَاتُهُ بِإِذْنِ رَبِّهِ وَالَّذِي خَبُثَ لَا يَخْرُجُ إِلَّا نَكِدًا [د الاعراف سورت ۵۸ آیت ]

( هغه ځمکه چې ښه وي هغه د خپل الله جل جلاله په حکم ښه میوه او دانه کوي او هغه ځمکه چې خرابه وي په هغې کې له ناقصو پیداوارو نه پرته بل څه نه رازرغونیږي ) .

جاهلیت یوه خوسا او ورسته ماده ده ، که د لرغوني زماني وي او که د اوسني زماني ، د جاهلیت د خبث او فساد ظاهري بڼه په مختلفو زمانو کې په مختلفو بڼو راڅرګندیږي ، خو د هغې اصلي ریښه یوه ده ، لنډ اندې انسانان تل د جاهلیت په ګڼو بڼو تیروځي او د خپلو نفسي خواهشاتو له لومې نه د وتلو متره او هوډ پکې نه وي ، یا د څو نفرو ، طبقو ، قومونو او نسلونو ، خود غرضي او ګټې د هغې اصلي ماخذ او منبع وي .

زیاتره د خود غرضي او شخصي ګټو تر دوړو لاندې ، د عدل او انصاف ، حق او صداقت ، خیر او اصلاح غوښتنې او مفاهیم پټ شي ، خو د الله جل

جلاله د سپيڅلي شريعت تيره توره د دغه ډول ټول مفاسدو ريښې غوڅوي ، د انسان لپاره يو داسې قانون رامينځ ته کوي ، چې انسان پکې د لاسوهنې حق نه لري ، ان تردې چې څوک دا شک هم پرې نشي کولاى .

چې په دې قانون کې به د انساني جهالت ايرې ګډې وي ، يا به د انساني هوا وهوس او اغراضو په دوړو د دغې سپيڅلي اسماني چينې اوبه خړې شوې وي ، يا به د کوم خود غرضه انساني ټولي د شخصي ګټو نه ځار شوې وي او د بې اعتدالي شوم سيورې به پرې شوې وي .

د الله جل جلاله رالیږل شوې ژوند دود ، او انسانانو د اختراع کړې نظرئې ترمينځ بنيادې او جوهرې توپير موجود دې ، نو له همدې امله د يوه نظام او قانون تر سيورې لاندې د دواړو يو ځاى کول محاله خبره ده او هيڅکله هم په دوی کې توافق نشي پيدا کيدلاى .

له همدې امله د داسې يوه ژوند دود د جوړولو لپاره هڅې هم بې ګټې دي ، چې نيم له اسلام نه اخيستل شوې وي او نيم له جاهليت نه ، ځکه دا شرک دې او الله جل جلاله به شرک هيڅکله ونه بښې ، په همدې توګه الله جل جلاله د خپلې نازل کړې نظريې ترڅنګ د بلې نظريې موجوديت او يا ګډون نه منې .

د دغو دواړو اعمالو ارتکاب جرم دې ، او دا دواړه جرمونه الله جل جلاله ته يو ډول حيثيت لري ، په حقيقت کې دواړه د يوه ذهن محصول دي .

**ساو " خالص " اسلام ته بلنه :**

کله چې مونږ خلک اسلامي ګروهې او اسلامي ژوند دود ته رابولو او د خلکو د پرګنو ترمينځ اسلامي تبليغ کوو ، نو د اسلام په هکله بايد دغه حقيقت زمونږ په ذهن کې په داسې ډول انځور او نقش شوې وي ، لکه د کاڼي کرښه ، د دې لپاره چې د اسلام د اظهار او اعلان په وخت کې نه زمونږ ، ژبه ، تږ ، تړې شي او نه د کوم شرم احساس وکړو .

ځکه په داسې صورت کې به خلک په مونږ شک وکړې او په بد ګوماني به راته ګورې ، هغوی بايد مونږ په پوره قوی منطق او استدلال په دې خبره

پوه کړو چې که چیرې هغوی د اسلام په درشل کې د الله جل جلاله د بندګی ویاړ ترلاسه کړی ، نو د هغوی ژوند په یوه مخیزه مثبت بدلون ومومی .

د هغوی کړه وړه ، اصول او قوانین به ټول بدل شی ، د دغو بدلونونو له برکته به اسلام دوی ته دنیاوی او اخروی خیر او ښیګړی ور په برخه کړی ، چې اټکل به یې د دوی له تصور نه پورته وی ، د دوی په افکارو او نظریاتو کې به سمون راشی او د ژوندانه د چارو معیارونه به یې لوړ شي .

په پای کې به هغوی ته هغه مقام او دریځ ور په برخه شی ، چې د انسانیت له ستر نامه سره وړوی ، د جاهلی تیتې ژوند په کومه ناولتیا چې اوس دوی ککړ دی هغه به چوره ترینه لری شی .

اسلام د دغه ستر انقلاب او بدلون نه وروسته مسلمانان د علومو او څیړنو له هغو برخو نه نه محروموی ، چې د مشاهدی او تجربی پر بنسټ یی مانی ولاړه ده ، نه یوازی دا چې څوک به په دغه برخه کې له څیړنی او تحقیق نه ایسار نه کړی ، بلکه د دغو علومو د لا پر مختګ لپاره به پوهان وهڅوی او هغوی سره به د هر ډول اسانتیاوو په برابرولو کې مرسته وکړی .

لنډه دا چې د اسلام مدعیان باید خلک په دی ابهام کې پری نږدی ، چې اسلام هم د نورو وضع کړای شوو نظریاتو په څیر یوه له ځانه جوړه شوی نظریه او قانون دی ، چې تر مختلفو نومونو او بیرغونو لاندی موجودی دی ، د دی برعکس اسلام یو ساو او سپیڅلی ، ځانګړی نظام دی ، چې په خپلو پښو ولاړ او په خپل کور پوره دی ، د ژوند په هکله نوی او ځانګړی نظر لری او ځانګړی ژوند دود یې نړیوالو ته وربښلی دي .

اسلام چې انسانیت ته څه وربښی ، هغه د دنیاوی جوړو شوو نظامونو له خیالی جنت نه سل ځله زیات ارزښتمن او ګټور دی ، اسلام په نړۍ کې تر ټولو نظامونو غوره او لوړ نظام دی ، خلک یی د جاهلیت له تروږمی نه روښانه او ځلاندی دنیا ته راو ایستل ، اسلام یو معتدل او متوازن نظام دی ، چې ریښی یی نیغ په نیغه د ستر الله جل جلاله د هدایت له ازلی او ابدی چینی له اوبو نه خړوبیږی .

که مونږ په دی پیمانه اسلامي تصور حاصل کړای شو ، نو دغه اسلامي شعور به په مونږ کې دا فطری صلاحیتونه هم را پیدا کړی چې مونږ اسلام ته د بلنی لپاره په ډاډه زړه او پوره باور بلکه لا په پوره خواخوږی او زړه سوی خلکو سره خبری اتری وکړو .

خپل مخاطب په دی باوری کړو ، چې هغه څوک چې ده ته د اسلام بلنه ورکوی هغه سراُسر په حقه دی ، او نور خلک چې د ده پر خلاف په کومه لار روان دی ، هغه له یوی مخی په باطله لار روان دي .

هغه څوک چې اسلامي شعور لری ، هغه په خپله د دی مسئولیت احساس کوی او له خلکو سره یی خواخوږی ته اړ باسی ، مثلا دی پوهیږی دغه انسان چې د شقاوت او بد مرغی په لومه کې نښتی دی ، په څه ډول له دغی لومی نه خلاصیدای شی او د نیکمرغی په لاره روانیدلای شي .

یا هغه سړی چې د جهالت په تورو تیارو کې تیندکونه خوری او دی په دی پوهیږی ، چې هغه مشال به هغه ته له کومه را پیدا شی چې د حق په لاره پری لاړ شی ، نو دی باید چپوالی غوره نکړی .

اگر بینی که نا بینا و چاه است　　　اگر خاموش بنشینی گناهست

لنډه دا چې د اسلام د ریښتونی شعور له حاصلولو وروسته به مونږ دیته اړ نه یو چې پد پټه او غلا باندی اسلام د خلکو اذهانو ته ور ننه باسو او د هغوی نفسی غوښتنو او بی لاری کوونکو نظریاتو ته له دی لار ماتی ورکړو ، بلکه مونږ کولای شو د غلا او پټو لارو نه په څرگنده توگه د اسلام د دعوت اصول د هغوی مخی ته کیږدو او ورته ووایو چې دغه جاهلیت چې ته پکې تر مری ډوب شوی یی ډیر ناولی او کرغیړن دی ، الله جل جلاله غواړی چې تا د ناولتیا له دغه خوسا ډنډ نه را وباسی .

ځکه په دغه ماحول کې چې ته سا وباسی هوا یی د خبث او فساد له دوړو نه ډکه ده ، او الله جل جلاله ستا لپاره پاکې او سپڅلتیا غواړی ، دغه ژوند دود چې تا غوره کړیدی دا د ډیرو ټیټو او انسانی خویونو نه نا خبره خلکو ژوند دی او الله جل جلاله غواړی چې تا ته د انسانیت لوړه پوړی در

کړي ، ستاسو د ژوند دغه شپې ورځې چې د ذلت شقاوت ، بيرته پاتې والي او مړاوي توب په لوګي دود غړنې شوې دي .

الله جل جلاله غواړي چې تاسو ته په دې برخه کې اسانتيا پيدا کړي ، تاسو د خپل رحمت په غيږ کې ونيسي او د نيکمرغي تاج در په سر کړي ، اسلام به ستاسو افکارو او نظرياتو کې نوي او مثبت بدلون راولي ، ستاسو د ژوند حالات به هم بدل کړي ، تاسو به د ژوند له نويو معيارونو سره اشنا کړي ، تاسو به له يوه داسي خواږه ژوند سره اشنا کړي چې دا اوسنی ژوند به مو په خپله هير شي .

ستاسو د ژوند په ليل و نهار کې به داسي انقلابي بدلون راولي ، چې په خپله به له موجوده نړۍ والي وضعې نه کرکه وکړئ ، تاسو به له داسي تهذيب او تمدن سره اشنا کړي چې دا اوسنی دود شوي تهذيب به په خپله درته خوار او جاهلي ښکاره شي .

که تا چيرې د خپلې بد نصيبۍ او بد مرغی له امله د اسلامي ژوند دود عملی بڼه نه وي ليدلې ، ځکه چې ستا دښمنان په دې خبره پوه دي او د يو والي لاس يې سره ور کړيدی چې دا نظام د عمل جامه وا نه غوندي ، نو راځه چې مونږ دي د دغه نظام له خوږ والي او انساني خصوصياتو سره اشنا کړو .

ځکه چې د الله جل جلاله په توفيق د دغه ډول ژوند انځور مونږ د خپل زړه او ويښ ضمير په آئينه کې ليدلی دی ، مونږ د خپل الله د کتاب قرآن ، او نبوي سنتو او اسلامي تاريخ له زاويو نه د هغه اصلي بڼه ليدلې ده ، د ګاندي د خواږه تخيل په پرده کې مو د هغه ښکلي نوراني بڼه ليدلې ده ، په راتلو کې يې د ذرې هومره شک هم زمونږ په زړونو کې نشته .

مونږ ته پکار دی چې په همدې توګه او همدې دود اسلام نړيوالو ته وراندي کړو ، د اسلام فطرت او طبيعت هم له مونږ نه همدا غوښتنه کوي ، او دا هماغه آره " اصلي " بڼه ده چې اسلام په پيل کې غوره کړې وه ، په جزيره العرب. فارس ، روم او د نړۍ په ګوټ ګوټ کې په همدې دود خلک رابللي وو ، اسلام انسانيت ته له ډيرې لوړې پوړې نه کتلي دي .

او په دې هکله یې د نظر افق ډېر پراخه او اوچت دی ، ځکه چې دا د انسان حق و ، او همدغه یې اصلي پوړی وه ، هغه له انسانانو سره به ، له درد او سوزه ډکه ژبه خبرې ولې وکړې ؟ دا ځکه چې همدا د اسلام فطرت دی ، اسلام انسانیت ته بې له شک او شبهې په ډاګه سپینه خبره ځکه وکړه چې همدا د هغه لار ده ، اسلام هیڅکله هم خلک په دې خوش باوری اخته نه کړل ، چې اسلام به زمونږ د عملي ژوند معیارونه ، افکار ، اخلاق او نظریات نه بدلوی ، او که بدل یې هم کړې نو مازې سرسرې بدلونو نه به وی !!

په همدې توګه اسلام هیڅکله هم د خلکو د خوښې اصول او قوانین په ځان پورې ونه تړل او نه یې ځان له هغوی سره ورته ګاڼه ، لکه څنګه چې اوس ځینې اسلامي پوهان په دې ناروغتیا اخته دي ، کله د اسلامي ډیموکراسي (Islamic Democracy) ، اصطلاح وضع کوی او کله د اسلامي سوسیالیزم ، او کله وایې چې د نړۍ د موجوده سیاسی ، اقتصادي او قانونی نظامونو د اسلامي کیدو لپاره ډیر لږو بدلونونو ته اړتیا ده ، دغه ډول ګډې وډې خبرې د دې لپاره کیږی چې د خلکو غوښتنې تسکین شی .

خو په دې باید پوه شو چې دا اسلام دی ، او د الله جل جلاله له خوا راغلی دی ، د چا د ترور او خواښې کور نه دی چې د خوشحالتیا لپاره یې هر څه پکې وشی ، دا اسلام له هغه اسلام سره رټ توپیر لری چې د اسلام ځینې لنډ اندی ، مفکرین یې وړاندې کوی .

د جاهلیت له دغه طوفان نه چې نن یې د نړۍ ټول مخ احاطه کړی دی ، د بشریت خلاصول او د اسلام پر امنه غیږې ته د هغوی رسول یوه ژور او پراخه بدلون ته اړتیا لری .

د اسلام د ژوند انځور د جاهلیت له هغو ټولو انځورونو سره پخوانی وی که اوسنی ، یو مخیز توپیر لری ، موجوده انسانیت چې د بد مرغی او بد حالی له کومو انبارونو لاندې پروت دی ، هغه په څو سطحی او برسیرنو بدلونونو باندې له مینځه نه ځی .

بشریت که نن له بد مرغی او بد بختی نه د خلاصون لاره لری ، نو هغه یوازی همدغه یوه لاره ده چې یو پراخه ، ژور او جوهری انقلاب مینځ ته راشی ، د مخلوق د جوړو کړو نظامونو د ماهیو ستنی ونړوی او د خالق نازل کړی نظام جاری شی .

انسانی جوړ کړای شوو قوانینو ته د رخصت پاڼه ورکړای شی او د هغی پر ځای الهی قوانین جاری شی ، د انسانانو د حکمرانی زولنی ماتی کړی او د یوه الله جل جلاله بندګی ته غاړه کیږدی ، د اسلام د قیام او پاځون غوره لار همدغه لار ده ، مونږ باید د دغی لاری نبنی خلکو ته څرګندی او واضح کړو ، په دی برخه کې باید د خلکو په اذهانو کې د ذری هومره شک او شبه هم پاتی نشی .

کیدای شی د اسلامي دعوت په لومړنیو پړاوونو کې خلک له دغه ډول اند دود ، ( طرز فکر ) سره مینه ونه ښیی ، له هغی نه لری وتښتی او ترینه ویره ولری ، خو دا یوه خبره هم د اندیښنی وړ نده ، خلک هماغه وخت هم له اسلامي دعوت نه تښتیدل ، په ویره او اندیښنه کې وو ، کله چې لومړی ځل دغه دعوت هغوی ته وړاندی شو ، نو په هغوی ډیره سخته تیریدله چې محمد صلی الله علیه وسلم د هغوی افکار او دودونه بی ګټی او بابیزه شیان بولی د هغوی په بتانو انتقاد کوی او خوشی کانی او ډبری یی بولی .

د هغوی له ژوند دود ، او عادتونو نه بیزاره دی ، د ځان او ځو نورو پلویانو لپاره یی د دوی د ټولو ، قوانینو ، دودونو او رواجونو پر خلاف نوی اصول او قوانین وضع کړی دی ..... خو په آخر کې څه وشول ؟ هماغه خلک چې د حق خبره پری ترخه لګیدله د حق لمن ته یی پناه ور وړه ، او په حق یی ځانونه قربان کړل ، له هغه حق نه چې دوی به ترینه داسی ویریدل ؛ کأنهم حمر مستنفرة فرت من قسورة ( تا به وی هغوی ځنګلی خره ده چې د زمری په لیدلو تیښته کوی ) .

هغه حق چې هغوی خپل ټول قوتونه د هغی پر خلاف جنګ او جګړو کې صرف کړل ، هغه حق چې منونکو ته یې دوی د مکې په بی وسه ژوند کې ډول ډول کړاوونه او عذابونه ورکړل او بیا یې مدینی ته له هجرت کولو نه

وروسته هم له هغوی سره جګړې پیل کړی ، خو په پای کې لکه څنګه چې برې تل د حق په لوری و په هماغه ډول دوی هم د حق منلو ته غاړه کېښودله .

## د اسلامي دعوت د برې راز :

اسلامي نهضت او دعوت چې په پیل کې له کومو شرایطو او حالاتو سره لاس په ګریوان وه هغه له اوسنیو شرایطو نه په زره پوری او امید ښښونکې نه وو ، په هغه وخت کې هم دا دعوت خلکو ته نوی او نا اشنا و ، جاهلیت له هغه سره په مقابله بوخت وو .

د شان او شوکت خاوندانو یې دور کولو لپاره متې رانغاړلې وې ، په خپل وخت کې د ټولو خلکو لپاره یو نوی څیز ښکاریده ، د اسلام شا وخوا داسې جابر او مطلق العنانه بادشاهیو احاطه کړې وه چې دی یې د ټولو بنیادی اصولو دښمن و ، خو له دې ټولو ناوړه حالاتو سره سره ، دغه دعوت له هغو سختو نه ، سختو شرایطو کې هم خپل هوډ له لاسه ورنکړ او د معنوی ځواک ستره پانګه ورسره موجوده وه .

اوس هم د معنوی ځواک هماغه پانګه له اسلام سره موجوده ده ، په آینده کې به هم اسلام دی همدغه ډول بشپړ ځواک او قدرت پانګه ولری ، د اسلام د ځواک او برې راز د اسلام د ګروهې په فطرت کې پټ پروت دی ، همدغه علت دی چې له بدو نه بدو شرایط او اغزنی نه اغزنه لار کې هم د اسلام د قافلې سفر جاری دی ، د اسلام د قدرت او ځواک منبع هغه پاک سپیڅلی او روښانه " حق " دی ، چې د دغه دعوت د ماڼی ستنی پرې ولاړې دی ، د هغه د برې راز له انسانی فطرت سره د هغه جوړ والی او برابری ده .

د هغـه د ځـواک او قـدرت سـرچینه د هغـه پـه اریـانوونکې " اهلیـت او صلاحیت " کې پرته ده ، چې په هره مرحله کې د بشر د قیادت وړتیا لری او هغه د پرمختګ او سوکاله ژوند په لار روانولای شی ، که بشر په اقتصادي ، سیاسـی او فکـری لحـاظ پـه انحطـاط او زوال کـې وی او کـه د تـرقی او پرمختګ په لار روان وی .

د اسلام د برې بل راز هم د هغه پريکنده ( قاطع ) او نه بدليدونکې دريځ دی ، د جاهليت او ټولو مادي قوتونو په مقابله کې په ځان ويسا او باور دی ، چې د جاهليت د ټولو اصولو په مقابل کې د خپل اصل د يوې ذرې هومره تحريف او بدلون هم نه شي زغملای .

هغه د جاهليت له غوښتنو سره هيڅکله هم مصالحه نشي کولای ، او نه په جاهليت کې د نفوذ لپاره له پلمو ، او چل ول نه کار اخلي ، هغه حق په رسا اواز اعلانوي او خلک په دې خبر وي چې دی سراسر حق ، خير او برکت دی ، الله جل جلاله د انسانانو خالق دی ، هغه په دې ښه پوهيږي چې د انسان د فطرت غوښتنې څه ډول دي ، د هغوی د زړونو اسرار ورته ځرګند دي .

هغـه تـه دا معلومـه ده چې کـه حق پـه صراحت او قـوت پـه ښکـاره توګه وړانـدې شـي او د هغـه پـه وړانـدې کولـو کـې ، راز داري ، نقـاب پوشـي او نوري انې بانې نه وي هغه به ضرور د خلکو په زړونو کې ځای ونيسي .

## نيمګړی اسلام ته د خلکو رابلل زيانمن کار دی :

انسانان د يوه ژوند دود په پريښودلو او د نوي ژوند دود په غوره کولو کې پوره وړتيا او استعداد لري ، ډېر څله هغوی ته يو مکمل بدلون تر جزوي بدلونونو ډير اسانه ښکاري ، له بلې خوا د يوه داسې ژوند دود غوره کول چې له مخکينيو نظامونو نه غوره ، لوړ سپيڅلی او په زړه پوري اصول لري ، د انسان له فطرت سره هم برابره او د منلو وړ خبره ده ، خو که د دې برعکس اسلامي نظام د ځينو جزوي او سطحي مسايلو په بدلون اکتفا کوي ، نو بيا به خلک څنګه د يوه بشپړ جاهلي نظام په ځای د يوه بشپړ اسلامي نظام منلو ته زړه ښه کړي ؟

ځرګنده خبره ده ، چې له يوه مانوس نظام سره ژوند تيرول عقل ته نژدې ښکاري ، څکه لږ تر لږه خو بر قرار نظام دی که نه ، اصلاحات او بدلونونه هم پکې راوستل کيدای شي ، نو بيا د داسې يوه نظام د راوستلو لپاره هڅه او سربښندنه کول چې لږو ډير خصوصيات يې له موجوده نظام سره

ورته وي ، د خلکو لپاره به د موجوده برقرار نظام د نسکورولو او د نه بر قرار شوي نظام د راوستلو اړتیا او ضرورت څه وي ؟

## اسلام پر اسلام د لګول شوو ، تورونو پاکولو ته اړ ندی:

اسلام ځینی داسی خواخوږي هم لري ، چې د خلکو په مخکې اسلام په داسی بڼه وړاندی کوي ته به وایې چې اسلام تورن ( متهم ) دی ، او دی غواړي چې د یوه مدافع وکیل په توګه د نړۍ په محکمه کې له هغه نه دفاع وکړي ، د هغوی دفاع له اسلام نه په داسی ډول وی چې اوسنی نظام پلانی او پلانی غوره کار کړیدی ، داسی ویل کیږي چې اسلام داسی کارونه نه دی کړي .

سړی دوی ته ویلای شی ، چې درنو عزیزانو ! اسلام دغه کارونه هغه وخت کړي چې اوسنی تهذیب یی څوارلس سوه کاله وروسته په کولو بري مومی او هغه هم په نیمګړی ډول ده ! !

اسلام هیڅکله هم د جاهلی نظامونو ، تباه کوونکې او ناوړه اعمال د خپلو اعمالو د جواز لپاره د نمونی په توګه نه وړاندی کوي ، دغه د اوسنیو تهذیبونو سترګی بریښوونکې ځلا چې د زیاتو خلکو زړونه او ماغزه یی تسخیر کړیدی دا یو مخیزه د جاهلی نظام ځانګړتیاوی او مشخصات دی او د اسلام په مقابله کې له هر اړخه نیمګړی ، تش مینځی او پوچ دی .

په دی برخه کې مونږ ته دا دلیل د منلو وړ ندی ، چې د اوسنی زمانی د مادی تهذیبونو تر سیوری لاندی چې کوم خلک اوسی هغه ډیر اسوده او سوکاله ژوند لري تر هغه چا چې د تش په نامه اسلامي حکومتونو تر سیوری لاندی ژوند تیروی .

د دغو سیمو اوسیدونکې خپل موجوده بد حالی ، خواري او نیستی ته له دی امله نه دی رسیدلی چې دوی مسلمانان دی ، بلکه له دی امله رسیدلی دی چې دوی اسلام شاته غورځولی دی ، اسلام خو خلکو ته د خپل صداقت په هکله دا دلیل وړاندی کوي چې هغه له جاهلیت نه دومره افضل او برتر دی چې له سره ورسره د پرتله کیدو ، وړ نه دی .

هغه د جاهلیت د استحکام لپاره نه بلکه د هغه د نړولو او نوم و نښان ورکولو لپاره راغلی دی ، اسلام د دی لپاره نه دی راغلی چې نړۍ والو ته د دوی له موجوده ناولتیا سره چې د تهذیب په نامه پری ککړ دی ، شاباسی ووایې ، د دی لپاره راغلی دی ، چې انسان له دغه درک اسفل نه وژغوری او د انسانیت ریښتونی لوړی پوړی ته یی ورسوي .

مونږ باید دومره شکست خوړلی ذهنیت ونه لرو چې د اوسنیو دود شوو نظامونو ، نظریاتو او افکارو په مینځ کې اسلام ته ورته څیزونه ولټوو او ځان پری خوښ کړو ، مونږ باید دغه ټول نظریات او افکار د ختیځ زیږنده وی او که د لویدیځ لری وغورځوو .

ځکه چې دا نظریات او افکار د هغه لوړو اهدافو په پرتله ډیر بی ارزښته ښکاری چې د اسلامي نظریاتو او افکارو د پاملرنی وړ دی او غواړی چې انسانیت ته یی د هغوی د بی شمیره کړکیچونو د حل لپاره د سوغات په توګه وړاندی کړی .

که مونږ خلکو ته د ریښتونی اسلام بلنه ورکړو او هغوی ته د اسلام د جامع او هر اړخیزی ګروهی تصویر وړاندی کړو ، نو په خپله به د دوی د فطری غوښتنو پر اساس د دوی اواز د هغه په پلوی راپورته شی ، له یوه تصور نه بل تصور ته او له یوه حالت نه بل حالت ته به د هغوی د بدلون او انتقال جواز لا څه چې عوامل هم برابر کړی .

خو دغه دلیل به هیڅکله هم په هغوی اغیزه ونکړی چې مونږ ورته ووایو ، موجوده دود شوی نظام پریږده او له یوه نا دود شوی نظام سره مل شه ، دغه نظام به ستاسو په موجوده رایج نظام کې یو څه معمولی شان بدلونونه راولی او ته باید پر هغی هیڅ اعتراض هم ونکړی .

ځکه چې په موجوده نظام کې چې ته کوم کارونه کوی هغه ته په نوی نظام کې هم کولای شی ، یوازی همدومره چې ته به دی په ځینی عادتونو ، غوښتنو او اعمالو کې ډیر خفیف شان بدلون راولی او له دی نه وروسته چې ته په کومو څیزونو عادت یی او یا ورسره مینه لری ، هغه به په خپل

حال وي ، هغې سره به هيڅوک څه کار نلري ، او که ويې لري هم نو ډير سرسري او معمولي به وي .

دغه لاره په ظاهره ډيره ساده او اسانه ښکاري او د هيڅا زړه بد والي هم پکې نه پيدا کيږي ، خو د خپل سرشت او فطرت په لحاظ کوم خوږوالی ، زړه راښکون او جذابيت نلري ، سربيره پردې له حقيقت نه هم ډيره لرې ده ، ځکه حقيقت خو دا ناري وهي چې اسلام يوازې د ژوند اصول او نظريات نه بدلوي ، يوازې د ټولنيز ژوند قوانين او شرايع نه بدلوي ، بلکه د احساساتو او جذباتو دنيا هم دومره بدلوي چې له جاهليت سره يې بالکل اړيکې وشليږي ، په لنډو الفاظو داسې ويلای شو چې اسلام غواړي چې انسان د ژوند له کوچنی نه کوچنی مسئله کې او له ستری نه ستری مسئله کې هم د انسانانو له بندګی نه خلاص او الله جل جلاله د بندګی وياړ ور په برخه شي او له دينه وروسته :

فَمَنْ شَاءَ فَلْيُؤْمِنْ وَمَنْ شَاءَ فَلْيَكْفُرْ - مَنْ كَفَرَ فَإِنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ عَنْ الْعَالَمِينَ

(که څوک غواړي ايمان دې راوړي او که څوک غواړي کفر غوره کولای شي - هغه څوک چې کفر غوره کوي بې له شکه الله جل جلاله له ټول جهان نه بې نيازه دی) .

دغه مسئله په حقيقت کې د کفر او ايمان مسئله ده ، د شرک او توحيد مسئله ده ، د جاهليت او اسلام مسئله ده ، دغه بنيادي حقيقت بايد له لمر نه هم روښانه شي ، د هغو خلکو ژوند چې په جاهلي اصولو ولاړ دی ، که هر څومره هم د اسلام دعوه وکړي مسلمانان نه دي ، په دوی کې که ځينی خلک هسې ځان تير باسي او يا نور خلک تير باسي او په دې خام خيال اخته دي چې اسلام په ځينو مواردو کې د دوی له جاهليت سره همنوا کيدلای شي ، نو دوی به څوک ترينه ايسار کړي .

خو يو شي چې څرګند دی هغه دا ده چې د دوی په دغه عمل حقيقت نشي بدليدای ، نه د دغو خلکو اسلام ريښتونی اسلام دی ، او نه مسلمانان دي ، که چيری اسلامي دعوت پيل کيږي نو لومړی بايد دغه د جاهليت مړ

ژوندا‌ه کړي ، خلک د ريښتوني اسلام په لور راوبلل شي او له سره مسلمانان شي .

مونږ خلک اسلام ته د دې لپاره نه رابلو چې د څه اجر تمه ترې وکړو ، او نه په خپل يا بل هيواد کې د اقتدار څوکې ته د رسيدلو او يا الغا وتلغاو د جوړولو څه مينه راسره شته ، د خپل ځان په هکله مونږ د هيڅ ډول ګټې غوښتونکې نه يو ، زمونږ د اعمالو او کارونو د اجر حساب وکتاب له الله تعالى سره دى ، له خلکو سره نه دي .

هغه څه چې مونږ ديته اړ باسي چې خلک د ريښتوني انقلابي اسلام په لور راوبلو ، هغه له خلکو سره زمونږ ريښتيني او بې لوثه مينه او همدردي ده ، او د خپل الله جل جلاله په نزد د مسئوليت سرته رسول دي ، که په دغه لار کې د مصايبو هر څومره درانه غرونه زمونږ پر اوږو بار شي او هر څومره طوفانونه د حق د دغه مشال د مړه کولو هڅه وکړي ، مونږ په هيڅ قيمت تسليميدو ته حاضر نه يو .

د حق د مدعيانو فطري لار همدغه لار ده ، ناوړه حالات د هغوى لپاره د متروکې حيثيت لري چې د دغې اغزني لار په مزله کې يې لا چټک او ګړندي کړي .

نو له دې امله " خلک بايد .... د حق د داعيانو په ژوند کې د اسلام ريښتوني او سپيڅلي انځور په څرګنده توګه وليداى شي " .

هغوى ته بايد د هغه بار د درنښت پته هم ولګيږي چې اسلام يې د هغوى په اوږو باروي ، او د هغې په مقابل کې ورته بې پايه خير او برکت وربښي ، هغه خير او برکت چې اسلام يې يادونه کړيده په همدې توګه خلکو ته بايد دا هم څرګنده شي چې د هغه جاهليت په هکله چې دوى پکې تر ستوني ډوب دي زمونږ نظر دا دى چې هغه يو سوچه او بوب جاهليت دى ، چې له اسلام سره په هيڅ ډول اړيکې او ورته والى نه لري ، ځکه چې ماخذ يې الهي شريعت نه دى ، د دغه جاهليت ماخذ له يوى مخې د انسان نفسي هوا وهوس دى او څرنګه چې له حق سره نا اشنا دى نو بې له شکه باطل دى .

فما ذا بعد الحق الا الضلال .

د کوم اسلام توغ چې مونږ راپورته کړی دی او په نړیواله سویه یې پلوی کوو په هغې کې داسې کمزوری اړخ نشته چې مونږ پرې د شرم احساس وکړو یا یې مونږ د اثبات او ښه والي لپاره دلایلو ته اړتیا ولرو ، او نه په هغه کې داسې کومه نیمګړتیا موجوده ده چې د هغې له امله مونږ خلکو ته د اسلام په اصولو کې له بوسو لاندې اوبه تیرې کړو ، یا د اسلام د اصلي روح د غوښتنې له مخې په ډاګه اعلانولو پر ځای په ډول ډول نقابونو او خیرو کې ورړاندې شي .

په حقیقت کې دغه ناروغتیا ځینې مسلمانانو ته د لویدیځ او ختیځ له سترو جاهلي نظامونو نه د روحاني او نفسیاتي ماتې له امله پیدا شویده ، او هغوی خواران په دې هڅه کې دي چې د انسانانو په لاس جوړو شوو قوانینو کې د اسلام سره څه داسې ورته والي پیدا کړي ، چې له اسلام سره اړخ ولګوي ، د اسلام د تائید وړ وي ، او یا هم د جاهلیت تاریخ او په اعمالو کې د داسې خبرو لټه وکړي چې د هغې له امله دا دلیل پیدا کړای شي چې اسلام هم دا کار کړیدی .

هغه څوک چې د اسلام د اصولو او تعلیماتو د ریښتینوالي د اثبات ضرورت احساسوي او یا معذرت خواهانه ذهنیت لري ، نو داسې سړي هیڅ کله هم د اسلام ریښتوني نمایندګي نشي کولای ، داسې سړي په حقیقت کې ناپوهه دوست دي ، چې په خپله یې د تش مینځي جاهلیت په مقابل کې ذهنا ماتې خوړلې ده ، او بیا هم له تضادو نه ډک او په نقایصو داغ ، داغ جاهلیت ته د جواز دلایل برابروي .

دغه حضرات ، د اسلام دښمنان دي او اسلام ته د مرستې او ښیګړې پر ځای زیان رسوي ، نور خلک هم دیته اړ کوي چې د دوی یاوه او ګاګیرې خبرو ته غوږ ونیسي او عمل پرې وکړي ، د دغه ډول خبرو او استدلال په اوریدو سړی داسې احساس کوي ، چې اسلام په کومه محکمه کې د مجرم پر ځای ولاړ دی او ځان په خپله دفاع کې مجبور ګڼي .

## د لويديځ ځيلي ذهن نيمګړتياوې

هغه وخت چې زه په امريکا کې اوسيدم ، د اسلام دغه ډول يو نا پوهه دوست به تل له ما سره په همدغه ډول مسايلو کې په جګړه اخته و ، زمونږ د مسلمانانو شمير په دغه ځای کې کم و ، د اسلام د مخالفينو په مقابل کې زمونږ ځيني دوستانو دفاعي حالت غوره کړی و .

خو زه د دې ټولو سرچپه په دې نظريه وم ، چې اسلام له مغربي جاهليت نه چې د اوسني مادي پرمختګ بريښنايي د ځيني خلکو سترګې بريښولي دي ، ځو ګرايه ښه او غوره لا څه چې هيڅ ورسره د پرتلي وړ نه دی ، د لويديځ د نظرياتو او افکارو په مقابل کې ما هيڅکله هم د کموالي احساس نه کاوه .

پردې سربيره به مې د لويديځ جاهلي تهذيب پر نيمګړتياوو او کاواکه مذهبي ګروهو سخت تنقيد هم کاوه ، د لويديځ جاهليت حيا سوزوونکې ټولنيز ، اقتصادي او اخلاقي ناوړه شرايط مې خلکو ته بې پردې کول او ويل به مې چې د مسيحيت دغه درې ګوني اقانيم او د ګناه او کفارې په برخه کې نظريات د سليم عقل ، پاک او ويښ ضمير د خاوندانو لپاره د منلو وړ نه دي .

د دغه کرغيړن پانګوال نظام ، اجاره داري او سود کول او نورې ظالمانه او انسان وژونکې وسلې لکه بې خرته وګړيزې " فردي " ازادي ، چې تر هغه وخته ورسره د انساني همدردي او ټولنيز مسئوليت احساس نه وي ، ځو د قانون اواز وا نه وري ، د ژوند دغه ماده پرستانه سطحي او بې ځايه تصور ، دغه وينځې خرڅونه چې دوې پرې د ښځو د ازادي نوم ايښې دی او په هره کاباره او نايټ کلب کې د يو ځل پر ځای ځو ځو ځلې خرڅيږي .

د طلاق ناوړه ، قانون او نورې بې بند وباره ازادي چې له عملي ژوند سره سم اړخ نه لګوي ، هغه مجنونانه نژادي توپيرونه ، او د ژوند سره نور منافي قوانين ، دا ټول اعمال او معيارونه دي ، چې د سليم عقل خلاف او د انسانيت لپاره دتنګ او عار باعث دي .

له دې سره به ما دوی ته ویل چې اسلام څومره علمي او عقلي دین دی ، څومره انسانیت پالونکې او ګټور نظام دی ، اسلام به انسان د ژوند او انسانیت هغې لوړې پوړې ته ورسوي ، چې نن یې له رسیدو نه عاجز دی ، اسلام د عملي ژوند نظام دی او د ژوند ټولې ستونزې د انسان د سلیم عقل او فطرت د غوښتنو په رڼا کې اواروي .

پورتنی حقایق د لویدیځ د ژوند عملي اړخونه و ، چې هغه خلک او مونږ ورسره مخامخ وو ، کله به چې ما د اسلام په رڼا کې هغوی ته د دغو ستونزو د اوارولو لاره ښودله ، نو د هغوی د پلویانو سر به له شرمه ښکته زړوند شو ، خو له دې سره سره بیا هم له بده مرغه د اسلام ځینې پلویان شته دي چې له همدغه ناولي نظام نه یې چې په جاهلیت کې تر ستونې ډوب دی روحا ماتې خوړلې ده .

هڅه کوي چې د لویدیځ ، د افکارو په خوسا ډنډونو او د ختیځ په شرمناکې او بد رنګه ماده پرستۍ کې هغه څه پیدا کړي ، چې له اسلام سره یې ورته والې ثابت کړي او یا اسلام له هغوی سره ورته او د هغو مماثل وګڼي !!

## د حق داعیانو لپاره سمه کړنلار :

له دینه وروسته ماته د دې وینا ضرورت نه احساسیږي ، چې ووایم له مونږ یعني د اسلامي دعوت پلویانو او مخکښ ټولې سره دا نه ښایي ، چې د جاهلیت له کوم اړخ سره مرسته او ملګرتیا وکړو یا د جاهلیت له کومې نظریې سره ، یا یې له کوم ډول نظام سره ، یا د جاهلیت کوم دود او دستور سره ، کوم ډول سازش او سودا بازي وکړو .

که څه هم د حالاتو بهیر ټول زمونږ پر ضد وي ، د مصیبت غرونه مو پر اوږو بار شوي وي او د ظلم او تیرې نظام زمونږ پر خلاف د ازمیښتونو طوفان راپورته کړي وي .

زمونږ لومړی کار دا دی ، چې د جاهلیت ماڼۍ نسکوره کړو او د هغه پر ځای اسلامي معیارونه او اصول د ځواک او قدرت په کرسۍ کینوو ، دغه

ستر هدف له جاهلیت سره په همدردی او زړه سوی نه ترسره کیږی او نه په دی چې مونږ د سفر په پیل کې له هغه سره مله شو .

زمونږ ځینی دوستان دغه ډول خبری د سملاسی حالاتو او شرایطو سره د مخامخ کیدو له مخی کوی ، خو زمونږ په نظر د دی خبرو مطلب دا دی ، چې مونږ به په لومړی قدم کې ، خپله ماتی په خپله منلی وی ، ځکه چې په حقیقت کې به مونږ حتی لومړی قدم هم په خپله اراده نشو اخیستلی .

په دی کې هیڅ شک نشته ، چې د موجوده نظامونو د ټولنیزو معیارونو او دودونو فشار ډیر سخت او ملا ماتوونکې دې ، په تیره بیا د ښځو په مسئله کې دا فشار زښت زیات دی ، مسلمانی ښځی د جاهلیت په دغه تورتم کې له ډیر سخت او ویروونکې مخالفت سره مخامخ دی ، خو هیڅ چاره نشته چې مونږ په لومړیو قدمونو کې د خپل زړور توب او سر تیری ثبوت ورنکړو ، مونږ باید لومړی دغه ډول ثبوت ورکړو ، نو بیا به پر حالاتو بری ومومو ، په همدی توګه مونږ باید خلکو ته د هغی ژوری کندی ځلور خواوی هم وښیو ، چې جاهلیت پکې سقوط کړیدی ، په مقابل کې باید نړۍ والو ته د اسلامي سوکاله ژوند او پراخه افق ځلا هم وښیو چې مونږ یې ادعا کوو ، دومره ستر کار په دی ډول هم سر ته نه رسیږی چې مونږ څو قدمه له جاهلیت سره څنګ په څنګ لاړ شو ، او نه په دی توګه سر ته رسیږی ، چې مونږ له همدا اوس نه له جاهلیت سره خپلی ټولی اړیکې پری کړو ، او ځانته یوازی په یوه ګوښه ځای کې غلی کینو ، دا دواړه فیصلی غلطی دي .

مونږ به له جاهلیت سره په یوه ټولنه کې ژوند کوو خو خپلی ځانګړتیاوی او مشخصات به هم ساتو ، له جاهلیت سره به راکړه ورکړه او نوری د ورځینی ژوند چاری پر مخ بیایو ، خو خپله لمن به هم پاکه او راټوله ساتو ، د حق اعلان به د سوز او محبت په الفاظو په څرګنده توګه کوو ، د خپل سپیځلی ایمان او ګروهی په برکت به د لوړتیا دعوه کوو خو تواضع او انکسار به راسره مل وی .

په پای کې باید دغه حقیقت زمونږ د زړه او ذهن پر لوحه ثبت شي چې: مونږ په جاهلي فضا او ټولنه کې ژوند کوو ، او د دغه جاهلیت په پرتله زمونږ تګ لاره ډیر سمه او سپیڅلې ده ، زمونږ کړنلاره دا ده چې یو ژور بدلون مینځ ته راولو ، یعنی دا چې بشریت د جاهلیت له تورتم نه راوباسو او د اسلام په نور یې منور کړو ، د جاهلیت او اسلام ترمینځ ډیره پراخه او ژوره ناو موجوده ده ، چې هیڅکله هم پر هغې باندې څوک کوم (پُل) دی لپاره نشي ودانولای چې دغه دوه سره لرې پراته نظریات دي یو ځای شي ، نه د دې لپاره چې جاهلیت له اسلام سره کومې اړیکې پیدا کړي .

بلکه دا پول یوازې او یوازې د دې لپاره جوړیدای شي ، چې په جاهلیت کې را ایسار خلک پرې د اسلام غیږ ته پناه راوړي ، دا مهمه نه ده چې دوی دې یوه داسې هیواد اوسیدونکې وي ، چې هلته د اسلام ناری وهل کیږي او که د کوم بل هیواد .

مهمه دا ده چې هغوی له تیارو نه راوځي او رڼا ته راشي ، له دغه بد حالی او خوارې نه چې له سره تر پښو پکې ډوب دي خلاص شي ، له هغه خیر نه ګټه واخلي چې پر اسلام مین خلک ترینه مستفید شوی دي او د اسلام تر سیوری لاندې د ژوند تیرولو هیله لري .

که د چا دغه دعوت او بلنه خوښه نه وي ، نو مونږ هغه سره هغه ډول چلند کوو ، چې الله جل جلاله خپل رسول الله صلی الله علیه وسلم ته حکم کړی و : لَكُمْ دِينُكُمْ وَلِيَ دِينِ (ستاسو لپاره ستاسو دین دی او زمونږ لپاره زمونږ دین )

## يوولسم فصل

## د ايمان واکمنی

الله جل جلاله فرمايي :

وَلَا تَهِنُوا وَلَا تَحْزَنُوا وَأَنْتُمْ الْأَعْلَوْنَ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ [ال عمران : ۱۳۹]

( سست او زړه ماتی مه اوسی ، غم مه کوی ، که تاسو مؤمنان يی بری به هم ستاسو په برخه شی )

له پورتنی آيت نه چې کوم مفهوم په ظاهره څرګنديږی ، نو د هغی اړيکې يوازی له هغه جهاد سره دی ، چې جګړه او مرګ ژوبله پکې وی ، خو د دغی لارښوونی اصلی روح او د هغی د انفاذ دايره د خپل پراخه پس منظر ، محرکاتو او اسبابو له مخی د جنګ او جګړی له مخصوص حالت نه ډير جامع او پراخه ده ، دغه لارښوونه په حقيقت کې مونږ ته د هغه دايمی کيفيت نقشه راښيی ، چې هر وخت او مهال بايد د مؤمن د احساساتو ، اعصابو ، ذهن او فکر ، د شا وخوا خلکو ، څيزونو ، پيښو معيارونو او نظر په هکله پر لوحه انځور وی .

په بله وينا دغه لارښوونه د هغه روحی او نفسياتی تفوق او لوړتيا څرګندونه کوی ، چې مؤمن بايد هر وخت پری ټينګ ولاړ وی ، که څه هم له ډيرو ناوړه حالاتو او ستر غليم سره مخامخ وی ، دا انديښنه بايد ورسره نه وی چې څه ډول خلک د هغه مخی ته خنډ دی او څه ډول معيارونو او اصولو سره دی په جګړه بوخت دی .

د ايمان دغه لوړتيا او ښيګړه بايد د هغو ټولو معيارونو او ارزښتونو په برخه کې ، چې ريښی يی له ايمان نه پرته له کومی بلی چينی نه څرګنديږی او د نړۍ د هغو سترو قوتونو په هکله هم چې دايمان او عقيدی له سمی لاری نه منحرف دی ، راڅرګنده شی ، همدا رنګه د ايمان دغه لوړتيا او ښيګړه بايد د ورځينی ژوند په هغو ټولو معيارونو کې څرګنده شی ، چې نو دې يی د ايمان له ګوری ولی نه نه دی رابيلی شوي .

همدا رنګه د ایمان دغه اظهارات باید د هغو دنیاوي دودونو او روایاتو په هکله هم وشي ، چې د ایمان په رنګ نه دي رنګیدلي او د نړۍ د هغو قوانینو او اصولو په هکله هم باید وشي ، چې د ایمان په فکر او لاسونو نه دي جوړ شوي ، د ایمان دغه کیفیت باید د ژوند هغو ټولو نظامونو ته هم څرګند شي ، چې د هغوی تومنه د ایماني بصیرت او معرفت په رڼا کې نه ده جوړه شوي .

د ایمان تصویر باید د مادي کمزورۍ ، د شمیر د کموالي او ناداري په حالت کې هم زمونږ تر سترګو شي او د مادي قوت ، د شمیر زیاتوالي او خوښي په حالت کې هم ، د ګروهي او ایمان ځواک به هیڅکله هم ماتې ونه خوري ، که څه هم له ډیر مغزو ، ځواکمن او منحرف قدرت سره مخامخ شي .

اسلام نه د کومو ټولنیزو روایاتو او باطلو قوانینو په مقابل کې به ګونډه وهلو پوهیږي او نه د داسې کوم بل نظام په مقابل کې د اطاعت سر ټیټولای شي ، که څه هم هغه نظام د خلکو په مینځ کې ډیر منلي وي او زیات شمیر مینه وال او پلویان ولري .

خو چې د ایمان په وړانګو وړنګن ( منور ) او د حکومت ستنې یې د الهي او امرو پر اصولو ولاړې نه وي ، اسلام به دغه ډول حکومت حتما نړوي .

د جهاد په دوران کې ثبات ټینګښت او سربښندنه ، د ایمان د قوت له ګڼو خصوصیاتو نه یوازې یو خصوصیت دی ، چې الله جل جلاله په پورتنۍ آیت کې یاد کړیدی .

د ایمان له برکته چې کوم ځواک او قدرت په انسان کې را پیدا کیږي ، هغه محض د یوه وخت د عزم او ارادې عارضي نتیجه نه وي ، نه د کوم احساس د جذبې له امله د غیرت ، حمیت او میړانې کومه څپه وي او نه د کوم ټولنیز حالت د مهالني ( موقتي ) جذبې تاثیر او اغیزه وي ، چې له واره راپورته شي او د انګیزې ، په له مینځه تلو سره له مینځه لاړه شي .

د ایمان قدرت او ځواک د یو ابدي او تلپاتې لوړتیا او ځواک کیفیت دی ، او ستنې یې په هغه غیر متزلزل او دایمي " حق " ولاړې دي ، چې د فطرت او کایناتو په رګ او ریښه کې رانوتلي دي ، دغه قوت او طاقت د

منطق ، تولنيز چاپيريال ، د ټولنې د سمون او دود شوو انساني معيارونو له قوتونو نه ډير كلک او غښتلي دي ، ځکه چې د الهام منبع يې هغه قادر ، مطلق ذات دی چې هيڅ فنا نلري .

**د ايماني ځواک ( قوت ) اغيزې :**

پر ټولنه ډير قوتونه حکومت کوي ، يو د افکارو او نظرياتو حکومت وي او بل هم د دودونو او رواجونو واکمني وي ، چې تر شا يې هم د همدغو حقايقو فشار او د ټولنيز جوړښت کلک ځينځيرونه موجود وي ، دغه ډول حالات د هغه چا لپاره د زغم وړ نه وي ، چې د کومې ځواکمنې هستې ملا تړ يې په برخه نه وي ځکه دی نشي کولای ، چې له يوه پاخه او اصولي ملاتړ نه پرته د ټولنې نا دودو او نا خوالو ته چيلنج ورکړي .

پر ټولنې حاکم او غالب افکار ځينې ځانګړې غوښتنې او اغيزې لري ، چې تر هغه وخته يې څوک له تاثيراتو نه ځان نشي ژغورلای ، تر هغې چې انسان له کوم لوړ او ستر حقيقت سره اشنا نشي ، چې د هغه په مقابله او پرتله کې دغه افکار او نظريات ورته د خس هومره بې ارزښته ښکاره شي .

همدا رنګه ترڅو چې له يوې داسې منبع نه ځواک او ملاتړ ترلاسه نکړي ، چې د ده له افکارو او نظرياتو نه يې نظريات او افکار لوړ پرمختللي او زيات اغيزمن نه وي ، تر هغې نشي کولای د ټولنې ځنځيرونه وشلوي .

هغه څوک چې د ټولنې دود شو معيارونو او اصولو د بهير په مخالف لورې کې دريږي ، د ټولنې حاکم او واکمن منطق ته د مقابلې بلنه ورکوي ، د ټولنې دودونو ، مروجه قوانينو ، معيارونو ، افکارو ، نظرياتو ، او نا خوالو سره مقابله کوي ، تر هغې چې د کومې داسې هستې ملاتړ ورسره نه وي ، چې له انسانانو نه ډير پياوړې ، له غرونو نه ډير دروند ، له کاڼي نه ډير کروړ ( محکم ) او له ژونده ډير خوږ نه وي .

نو نه يوازې دا چې په دې لار کې به د زياتې کمزورۍ احساس کوي ، بلکه په ټوله نړۍ کې به ورته ځان يوازې ښکاري .... له همدې امله د الله شفيق او رحيم ذات خپل بنده په داسې ميدان کې نه غورځوي ، چې يوازې به د ټولنې فشارونه او ستونزې زغمي ، او دروند بار به يې يوازې په اوږو

بار وي ، په درد ، رنځ ، او کړاو دی اخته وي ، په دغـه وخت کې هغه پاک ذات مـوځمن تـه دغــه ډول روح ببنوونکې او پـه زړه پـورې پیغام ور استوي .

" دغه هدایت او لارښوونه د غمونو او دردونو په تورتم کې د موځمن د مات زړه او اندیښنو لپاره د زخم ملهم دی "

دغه دواړه احساسه معمولاً په ناوړه حالاتو او شرایطو کې انسان ته پیدا کیږي ، خو یو مومن دغه ډول احساسات یوازې د صبر او زغم په څپیړه نه ، بلکه د یوه لوړ احساس ، جذبې او لوړ نظر په څواک ټکوي ، هغه د همدغې جذبې له امله د همت په داسې لوړه کرسۍ ناست وي .

چې له هغه ځایه ورته د نړۍ طاغوتي قدرتونه ، د ټولنې واکمن قدرت ، د اوسني عصر پر مختللي افکار ، دنیاوي د سا تیر او قوانین ، رسوم او عادات ، چې خلک پرې راټول وي ، ډیر بې ارزښته ټیټ او کمزوري ښکاري .

موځمن په هر وخت کې د خپل ستر مرستیال او فکري ماخذ له پلوه غالب ، سوبمن او لوړ دی ، د هغه په نظر نه مملکت او سلطنت څه ارزښت لري او نه یې ستر ، ستر شخصیتونه ، هغه معیارونه چې په هیواد کې دود شوي وي او د خلکو هم خوښ وي ، د هغه له نظره هیڅ دي .

په عوامو کې د دود شوو نظریاتو او افکارو ، ځلا د هغه سترګې نشي بریښولی ، له همدې امله موځمن یو لوړ او ستر موجود دی ، هغه تل یوازې او یـوازې د الله جـل جلالـه د لارښوونـې او هدایـت د ابـدي چیـنې پـه اوبـو خړوبیږي ، هغـه پـه هره پیښه کې د الله جل جلاله لوري ته مخ اړوي او هره شیبه د هماغه ذات له خوا ښودل شوې لار باندې قدم ږدي .

## د اسلامي ګروهې برترې او هر اړخیز والی

د کائناتو د حقیقت په درک او معرفت کې هم یو موځمن له نورو خلکو نه پـه لـوړه پوړۍ کې واقـع دی ، ځکه چې ایمـان پـه الله جل جلاله او د توحید نظریه پـه هغـه بڼه ، چې اسلام وړانـدې کړیـده د کائـناتو د ستـ حقیقت د معرفت او پیژندګلوۍ د لاسته راوړلو په برخه کې د ماستر کې Master ey عمومي کیلي حیثیت دی .

۲۸

د کائناتو کوم انځور چې د توحید ګروهه وړاندې کوي ، هغه ډېر ځرګند ، ځلانده او دومره ښکلي او متناسب دي ، چې که مونږ د هغې پرتله له هغو نظرياتو سره چې د کائناتو په هکله پخوا او اوس موجودي دي او يا يې له هغو نظرياتو سره ، چې د مشرکانه مذاهبو او تحريف شوو اسماني اديانو په نتيجه کې را پيدا شوي دي او يا هم له هغو نظرياتو سره ، چې مادي کرغېړنو تحريکونو مينځ ته راوستي دي وکړو ، نو د اسلامي ګروهې عظمت او لوړتيا به راته له ورايه ځرګنده شي .

هغه خلک چې د کائناتو په هکله دغه ډول معرفت او درک لري ، هغوی بايد بې له شکه د کائناتو له ټولو مخلوقاتو نه غوره او لوړ واوسي .[1]

د مؤمن تصورات د ژوند د هغو معيارونو او ارزښتونو په برخه کې هم ، چې د هغې له مخې د انساني ژوند د پيښو ، څيزونو او وګړو ارزښت او دريځ ټاکل کيږي تر نورو لوړ دي ، هغه ځوک چې ګروهـــه يې د الله جل جلاله د پيژندګلوي ( د هغه الهي صفاتو په رڼا کې چې اســلام يې بيانوي ) پر اصولو ولاړه وي او د هغه د ارزښتونو او معيارونو په حقايقو پوره وي .

نو ځرګنده خبره ده ، چې د هغه درک او فهم به د ځمکې په دې کوچنې ساحه کې محدود پاتې نشي ، بلکه ټول کائنات به يې د فهم او درک په لمن کې رانغښتي وي نو داسې ګروهه فطرتا يو مؤمن ته د ژوند د اصولو او معيارونو يو داسې ځانګړې تصور وربښي ، چې له هغو نيمګړو معيارونو او اصولو نه چې د عامو انسانانو په لاس جوړ شوي وي ځو ګرايه ښه او غوره اړخونه ولري .

هغه انسانان چې نيمګړې پوهه لري ځرنګه چې په يوه نسل کې د خپل ژوند د اصولو او معيارونو ډيرې پيمانې بدلوي ، همدا رنګه يې د يوه قوم په مينځ کې يې هم بدلوي ، آن تردې ، چې د ټولنې د يوه فرد په باره کې هم د هغوی د اصولو او ارزښتونو پيمانې سهار يو ډول او ماښام بل ډول دي .

---

[1] د تفصيل لپاره د ليکوال دغه اثر خصايص التصور الاسلامي ومقومـاته وګورې .

مؤمن د احساس ، ضمیر او اخلاقو په معیارونو کې هم تر نورو ، رېښتوني او نهایې لوړتیا ته رسیدلی وی ، ځکه په هغه الله جل جلاله ، چې دی ایمان لری ، هغه په بهرنیو صفاتو متصف دی ، دغه ګروهه فطرتا د مؤمن په زړه کې د لوړتیا عظمت ، سپیڅلتیا ، پاک لمنی ، تقوی او لوړ انسانی احساس را ژوندی کوی ، د نیک عمل او الهی خلافت سم مفهوم هغه په زړه کې انځوروی ، سربیره پردی دا ګروهه مؤمن ته په دغه مسئله کې پوره ډاډ ورکوی ، چې د جزا اصلی ځای آخرت دي .

کوم اجر چې هلته مؤمن ته د هغه د نیکو اعمالو او سپیڅلی اسلامي ګروهی له امله ورکول کیږی د هغی په مقابله کې د دنیا ربړ او کړاو هیڅ دی ، دغه ډول ګروهه د مؤمن په زړه کې د اطمینان او سکون یوه داسی داډه او باوری فضا رامینځ ته کوی ، چې که ټول ژوند هم له دنیاوی نعمتونو نه بی برخی شی بیا به هم ګیله او شکایت ونه کړي .

مؤمن د کائناتو تر نورو مخلوقاتو د خپل ژوند دود " نظام زندګی " له مخی هم له نورو ډیرو لوړ او افضل دي .

انسان چې له پخوا نه تر اوسه پوری د ژوند د سمون لپاره کوم اصول او قوانین جوړ کړی دی ، که چیری مؤمن هغه له اسلامي اصولو او قوانینو سره پرتله کړی ، نو هغه ته به جوته شی ، چې له زرګونو کلونو راهیسی دغه د انسانی نیمګړی فکر هلی ځلی او څیړنی د اسلامي سپیڅلی شریعت او هر اړخیز نظام په مخکې د ماشومانو د لوبو او ړندو له اوتو بوتو نه زیات ارزښت نه لری .

نو له همدی امله کله چې د انسانیت په دغه لوړ او ارفع مقام ودریږی او د سرګردانه او لالهانده بشریت خواری اوزبون حالی ته د زړه سوی او مهربانی په نظر وګوری ، نو هغه ته به بی له دینه چې له دغه ډول بد مرغی او بی لاری نه د انسان د خلاصون لپاره متی راونغاړی بله چاره پاتی نشی .

## جاهلی اند دود ، او اسلامي اند دود :

دا هماغه ډول اند دود ( طرز فکر ) دی ، چې د اسلام د لومړی صدر مسلمانانو د جاهلیت د تش مینځی مظاهرو او قوتونو په مقابل کې غوره

کړی و ، هغوی د جاهلیت په زمانه کې له انسانانو نه خپل غلامان جوړ کړي وو ، جاهلیت د تاریخ د کوم مخصوص پړاو نوم نه دی ، بلکه دا یو خاص حالت دی ، چې په تیره زمانه ( ماضی ) او حال کې ، که اسلامي ټولنه د اسلام له سمی او سپیڅلی لاری نه بی لاری شی ، نو د جاهلیت دغه حالت ته ورګرځی ، او په راتلونکې کې هم که بشریت له سمی لاری نه منحرف شی ، نو دغه حالت مینځ ته راځی .

د قادسیی په جګړه کې حضرت مغیره بن شعبه د ایرانی پوځ د مشر رستم کیږدیو ته ورغی او هلته یې د جاهلیت هغه جاه وجلال ولیده ، نو د هغوی په برخه کې یی چې هغه وخت څه ویلی وو ، هغه ابو عثمان نهدی په لاندی توګه داسی بیان کړیدی .

" کله چې مغیره بن شعبه له سینده په پله پوری وت نو ایرانی پوځ ته ورسیده ، ایرانی پوځیانو هغه له ځان سره کیناوه او له رستم نه یی د هغه د لیدنی لپاره اجازه وغوښته ، هغه د خپلی ماتی د پټولو لپاره په خپل زیب وزینت او جاه وجلال کې هیڅ توپیر نه و راوستی ، مغیره چې مخکې ورغی نو وی لیدل چې ټولو خلکو خپل مخصوص لباسونه اغوستی دی او په سرونو یی تاجونه ایښی دی .

د طلاوو له تارونو نه جوړی شوی جامی یی پری دپاسه اغوستی دی ، او غالی یی تر څلور سوه متره پوری لری غوړولی دی ، سړی به چې څلور سوه قدمه په غالیو لاړ نو بیا به رستم ته ور رسیدلای شو ، مغیره خیمی ته وردننه شو ، له ورننوتو سره سم د رستم په تخت برسیره کیناسته ، نورو درباریانو چې دا ولیدل ، نو مغیره یی له هغه ځایه بیرته راښکته کړ .

مغیره ورته وویل : مونږ ته خو خلکو وویل چې تاسو ډیر هوښیار یې خو زه چې وینم له تاسو نه به ناپوه نور څوک نه وی ، په مونږ عربانو کې خو دا تیټ او پاس نشته ، مونږ یو هم د بل مرئیتوب نه کوو ، مګر دا چې په جګړه کې ونیول شو ، زمونږ دا ګومان و ، چې تاسو به هم د خپل قوم پالنه په همدی توګه کوی ، لکه څنګه یی چې مونږ کوو ، تاسو له ما سره ډیر ناوړه حرکت وکړ .

ښه به دا وه چې ماته مو د مخه ویلي وای ، چې په تاسو کې ځینی خلک د ځینو نورو لپاره د رب مقام لري ، ستاسو د نظام سیستم ډیر کرغیړن دی ، زه خو تاسو ته خپله نه یم راغلی بلکه تاسو راغوښتی یم ، په دلته راتلو ماته څرګنده شوه چې ستاسو نظام به ډیـر ژر له مینځه ولاړ شی او تاسو بـه ماتی وکړی ، بی له شکه په دغه ډول سلوک او ذهنیت څوک حکومت نشی کولای .

ربعی بن عامر هم د قادیسې له جګړی نه مخکې د رستم او د هغه د درباریانو په مقابل کې همدغه ډول د ایمان له جرات نه کار اخیستی و .[1]

حضرت سعد بن ابی وقاص د اسلامي پوځ مشر رستم ته چې د ایرانی لښکرو مشرو ، ربعی بن عامر دخپل استازی په توګه لیږلی و ، ربعی بن عامر چې هلته ورسیده ، په دربار کې په ډیر شان و شوکت رنګا رنګ غالی او نیالی غوړیدلی و ، رستم ډیر سره او سپین ، یاقوت او غمی په ځان راځړولی وو ، قیمتی جامی یی اغوستی وی ، تاج یی پر سر او د سرو زرو په تحت ناست و .

ربعی بن عامر په زړو او ځیری شوو کالیو کې ور ورسیده ، پر یوه معمولی غوندی کوچنی اس باندی سپور وو ، هم داسی پر اس باندی سپور په فرش ورغی ، کله چې رستم ته ورنژدی شو له آس نه راښکته شو نو کومی قیمت بها کرسی پوری یی اس وتاړه او خپله د رستم په لور ور روان شو ، په سر یی جنګی خول او په تن یی زغره وه درباریانو ورته وویل : د جګړی لباس لری کړه بیا رستم ته ورشه .

خو عامر ورته وویل : زه خو په خپله نه یم راغلی تاسو رابللی یم که خوښه مو نه وی همدا اوس به بیرته لاړ شم ،

رستم ورته وویل : پریږدی چې راشی .

عامر په همدغه فرش نیزه د امسا په ځیر لګوله هر ځای به یی فرش سوری کاوه ، رستم ورته وویل : ستاسو راتګ د څه لپاره دی ؟

---

(۱) ابن کثیر په البدایه والنهایه کی دغه موضوع را اخیستی ده .

عامر ورته وویل : مونږ الله تعالی جل جلاله د دې لپاره رالیږلی یو ، چې که د چا خوښه وي ، هغوی د بندګانو له بندګۍ نه خلاص کړو او د الله جل جلاله د بدګۍ ویاړ ور وبښو ، د دنیا له سختیو او تنګیو نه یې خلاص کړو د آخرت وسعت او پراخۍ یې په برخه کړو - د مذاهبو له زیاتی او تیرې نه یې خلاص کړو د اسلام د عدل تر سیورې لاندې یې سوکاله کړو ، له دینه وروسته یو انقلاب راغلی او د مسلمان فکرو نظر د یوه مغلوب او مادي طاقت نه ، لرونکې سړي بڼه غوره کړې ، خو بیا هم د برترۍ له احساس نه بې برخې نه وي ، خو که د ده په زړه کې اوس هم د ایمان د ډیوې تته رڼا بله وي نو غالب او حاکم قومونه به ورته له ځانه ښکته او خوار ښکار ه شي د هغه یقین به په دې پوخ شي ، چې مادي محکومیت یوه عارضي مرحله ده که اوس نه وي سبا به له مینځه لاړه شي .

بالاخره به د سوبې او برې ویاړ د ایمان د لښکرو په برخه شي او که فرضا دغه مرحله ډیره زیانمنه هم ثابته شي نو د کمزورۍ سره سره به بیا هم مؤمن د هغې په مخکې سلامي نه شي ، هغه په دې پوخ ایمان لري چې ، نور انسانان خو په معمولي مرګ مري ، خو د ده به د شهادت مرګ به نصیب وي ، دې که له دې دنیا نه کوچ وکړي نو سم سیده به د خپل الله جل جلاله جنت ته ورشي .

هغه خلک چې په دې نړۍ کې پرده زور ور او تیري کوونکې دي ، هغه به له دې نړۍ نه په شرمندګۍ سترګې پټې کړي ، په هغې دنیا کې به یې بوګنوونکې سزاګانې په برخه شي ، په دې دواړو انجامونو کې د ځمکې او اسمان هومره توپیر موجود دی ، په همدې ډول احساساتو کې به هغه ډوب وي ، چې هغه ته د خپل کریم رب دا فرمان واوروﻻی شي .

لَا يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي الْبِلَادِ()مَتَاعٌ قَلِيلٌ ثُمَّ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمِهَادُ()لَكِنْ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا نُزُلًا مِنْ عِنْدِ اللَّهِ وَمَا عِنْدَ اللَّهِ خَيْرٌ لِلْأَبْرَارِ [ د ال عمران سورت ۱۹۶-۱۹۸ آیت ]

" په څمکه کې د الله جل جلاله د نافرمانه خلکو تله راتله په کبرګه او غرور تاسو تیر نه باسي ، دا به یوازې د تیریدونکې ژوند د یو څو ورځو خوند وي ، بیا به دوی ټول جهنم ته ځي ، چې ډیر بد استوګنځی دی ، خو د دوی برعکس خه خلک چې د الله جل جلاله نه وویریدل د هغوی لپاره داسې باغونه دي ، چې تل به ترې لاندې ویالې بهیږي او هغوی به تل په دغو باغونو کې استوګن وي دا د الله جل جلاله له خوا نه هغوی ته میلمستیا ده او هغه څه چې له الله جل جلاله سره دي هغه د نیکانو لپاره تر ټولو ښه او غوره دي )

**لوړ نظر او خوږه وینا** :

پر ټولنه به د داسې ګروهو ، افکارو ، ارزښتونو او اصولو واکمني وي ، چې د مؤمن د ګروهې او فکر له ارزښتونو او اصولو سره به منافي څه چې کوږتې مخالفت ولري ، خو دا انګیرنه به له مومن نه هیڅکله هم نه بیلیږي ، چې دی د یوه لوړ مقام او دریځ خاوند دی ، دغه ټول دنیا پرست او مزو چړچو پسې لیوني خلک له ده نه ډیر ټیټ دریځ لري ، کله چې دی د خپل لوړ دریځ او انساني نړۍ لید له لوړ افق نه دوی ته راګوري ، نو له یوې خوا نه یې په خپل عزت نفس لوړتیا ، او همت باندې زړه خوږ شي او له بلې خوا نه یې زړه هغوی ته له همدردۍ او مرستې نه ټوپکې وهي .

د هغه دا هیله وي ، لکه څنګه چې د ده زړه د الله جل جلاله او ایمان په نور منور شویدی ، کاشکې د هغه بل انسان نصیب او برخه هم په کې شوې وای ، د افکارو او نظریاتو په کوم لوړ او پراخه څنډ ( افق ) کې چې دی الوت کوي ، هماغه ځای ته یې دی هم راپورته کړی وای ، دا ځکه هغه څه چې ریښتوني مومنان د ځان لپاره غوره او وړ ګڼي هغه د نورو لپاره هم غوره او وړ ګڼي .

باطل شور وزوږ جوړوي ، د تالندې او بریښنا په څیر غړمبهار کوي ، اوړي له مستۍ نه پورته غورځوي ، د میړانې او غیرت بریتونه تاو وي او له څلور خواوو نه یې ( غوړه مالان ) کړتن ، او ځان ښه وایې " .

له دوي خلک راتاول وي ، يوه داسي مصنوعي دايره يې ځنې را چاپيره کړې وي ، د هغې له امله د انسانانو پر بصارت او بصيرت دواړو باندې پرده غوړيدلې وي .

هغوی دا نشي ليدلای چې د دغې ځلندې دايرې تر شا څومره خبيث روح ، کرغيړن انځور ، څومره تور او منحوس ( سهار ) پټ دی !!

مؤمن له خپل مقام او دريځ نه د دوی شور و زوږ او هنګامو ته ګوري او د تيروتلو انساني ګروپونو په ناوړه ، حالت تاسف کوي ، خو دی بايد هيڅکله د باطل په دغه ظاهري برم او پرتم ونه غوليږي ، کمزوري او ماتې پرې برې ونه مومي ، نه يې سر د غم په زنګنو ورتيټ شي او نه يې هم بايد د حق پر لاره په ځغل کې سستي او لټي راشي ، پردې سربيره د بيلاري بشر د لاربښووني او ژوند د سمون لپاره چې د ده په زړه کې کوم احساس او انګيرنه ژوندی او نا کراره وي د هغې په منډو ترړو او هڅو کې هم بايد کمی رانشي .

ټولنه په ناوړه او بې شرمانه غوښتنو کې ډوبه وي ، د ورستو او بو ينو جذباتو سيند په کې بهيږي ، په ناولتيا لړلې وي ، خو له دې سره هم په دغه خام خيالي او لنډ اندې اخته وي ، چې د ژوند په خوږو او لذايذو ماړه دي او د هر ډول دودونو او معيارونو له زولنو نه ازاد دي ، څومره چې په ټولنه کې سالمه او سپيڅلې تفريح او يوه مړې حلاله روزي ورکيږي ، هومره چې ، هره خوا ګوري د فساد ، زنا ، غلا ، شوکې ، لوټ او ډول ډول ټولنيزو ناروغيو ويالې بهيږي .

مومن د ټولنې د فساد په خوسا ډنډونو کې تر مرۍ ډوب انسانان له خپل لوړ مقام نه ويني سره له ده چې په دغه ټول ماحول کې به د خپل فکر يوازينی پلوی وي ، خو د ده حوصله او زغم بايد د ماتې او په شاتګ او احساس ته غاړه کې نږدي ، د ده په زړه کې بايد غم خونه جوړه نکړي .

هيڅکله هم بايد د ده له نفس سره داسي غوښتنه را پيدا نشي چې خپلې پاکې او سپيڅلې جامې وغورځوي او په دغه ناولې حمام کې له نورو لوڅو لپړو سره، دی هم لوڅ شي او په دغه خوسا ډنډ کې ورسره غوپې ووهي ،

مومن د ایمان په نشه او د یقین په خوږو موړ وي او له همدې امله خپل ځان د ډېر لوړ او اوچت دریځ خاوند ګڼي .

په یوه داسې ټولنه کې ، چې له دین نه باغي وي له اخلاقي فضایلو نه بې برخې وي ، له لوړو انساني ارزښتونو نه تشه وي ، له شریفانه او مهذبو معیارونو سره نا اشنا وي .

لنډه دا چې هر هغه صفت پکې د مرغې پې شي ، چې د پاکې ، سپېڅلتیا ، ښکلا او نفاست په تعریف کې راتلای شي ، په داسې ټولنه کې به مومن ته د ایمان د لمنې ټینګول او په لاسونو کې د اور سکروټې نیول یو برابر وي ، خو مومن باید د حوصلې او زغم واګې له لاسه ورنکړي ، نور خلک ښائي د ده جرات ته ګوته پر غاښ شي ، د ده په افکارو به ملنډې وهي ، سپکې سپورې به ورته کوي ، د ده منلې ارزښتونه به تر پښو لاندې کوي ، خو دا به یوازې مومن وي ، چې دا هر څه به اوري ،ویني او زغمي ، خو پر خپل هوډ به له خپل الله جل جلاله سره ټینګ ولاړ وي ، د لوړتیا له عالي احساس سره به دغو تیروتلو او ناپوهو خلکو ته ګوري هغه کلمات به یې پر ژبه وي چې د دغې سپېڅلې ډلې د یوه غوره او نومیالي فرد حضرت نوح علیه السلام پر ژبه جاري شوي وو :

إِنْ تَسْخَرُوا مِنَّا فَإِنَّا نَسْخَرُ مِنْكُمْ كَمَا تَسْخَرُونَ [ د هود سورت ۳۸ آیت ]

( نن که تاسو په مونږ پورې ملنډې او خندا کوئ ، نو بیا بـــه مونږ هم یـــوه ورځ ، پـــه تاســـو پـــورې خندا او ملنډې وکړو لکه څنګه یې چې اوس تاسـو کوئ ) .

مؤمن د دغې نوراني او نیکمرغه کاروان او په مقابل کې یې د بد نصیبه او بد مرغه قافلې د پای انځور د الله جل جلاله په کلام کې په څرګنده توګه لیدای شي .

إِنَّ الَّذِينَ أَجْرَمُوا كَانُوا مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا يَضْحَكُونَ()وَإِذَا مَرُّوا بِهِمْ يَتَغَامَزُونَ()وَإِذَا انقَلَبُوا إِلَى أَهْلِهِمُ انقَلَبُوا فَكِهِينَ()وَإِذَا رَأَوْهُمْ قَالُوا إِنَّ هَؤُلَاءِ لَضَالُّونَ()وَمَا أُرْسِلُوا عَلَيْهِمْ حَافِظِينَ() فَالْيَوْمَ الَّذِينَ آمَنُوا مِنَ الْكُفَّارِ

يَضْحَكُونَ()عَلَى الْأَرَائِكِ يَنظُرُونَ()هَلْ ثُوِّبَ الْكُفَّارُ مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ [ د المطففين سورت ۲۹- ۳۶ آيتونه ]

( بې له شکه مجرمانو ( په دنيا کې ) په مومنانو پورې خندل ، او کله به چې د هغوی له مخې تيريدل ، نو سترګې به يې ورته وهلې ، او کله به چې خپلو مينځو کې شول نو د ( مسلمانانو په يادولو په بدو ) به يې وخت تيراوه ، او کله به يې چې مسلمان وليده نو راپورته به شول او ويل به يې چې بې له شکه دغه خلک ګمراه دي ، په داسې حال کې چې مونږ دوی د مسلمانانو پر سر څارونکې نه و مقرر کړي ، نن به ( په آخرت ) کې مسلمانان په کافرانو پورې خندا کوي و په تختونو به ناست د هغوی ننداره کوي ، ايا کافرانو اوس د خپلو کړو بدل وليده ؟ )

له دې نه مخکې هم ، قرآن د کافرانو دغه وينا مونږ ته رانقل کړيده چې هغوی به مؤمنانو ته وويل :

وَإِذَا تُتْلَى عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ قَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا أَيُّ الْفَرِيقَيْنِ خَيْرٌ مَقَامًا وَأَحْسَنُ نَدِيًّا [ د سورت مريم۷۲ آيت ]

( هغو خلکو ته چې زمونږ څرګند او ښکاره آيتونه لوستل کيږي ، نو کافران ، مؤمنانو ته وای ، ووائی چې له مونږ او تاسو څيني کومه ډله او ټولې ښه حالت او دريځ لرې او د چا مجلسونه پرتمين ( شاندار ) دي ) .

يعنې له دواړو ډلو نه کومه يوه ښه ده ؟ هغه شته من او بډايان ، چې په حضرت محمد صلی الله عليه وسلم ايمان نه راوړی او که هغه نيستمن ، خوار او بې کسه خلک ، چې له هغه حضرت محمد صلی الله عليه وسلم نه راټول دي ؟

د نصر بن حارث ، عمرو بن هشام ، وليد بن مغيره او ابو سفيان بن حرب په څير د قوم مشران که د بلال ، عمار ، صهيب او خباب په څير بې وسې او بې اسرې خلک ؟ که د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم دعوت کومه ښيګړه لرلای نو پلويان به يې داسې خوار و زار وای چې په قريشو کې د هيڅ برم او پرتم خاوندان نه دي ؟ په خپلو مينځونو کې د ليدنو کتنو لپاره له يوه معمولي غوندې استوګنځي ( دار ارقم ) نه پرته بل ځای هم نلري .

په داسې حال کې ، چې د هغه مخالفین د سترو ماڼیو خاوندان دي ، چاه وجلال ، شان و شوکت د هغوی قدمونه ښکلوي ، د قوم مشرتوب یې په برخه دي ، دا و د ظاهر بینو خلکو اند دود ، چې په هر وخت او مهال یې په سترګو د ناپوهۍ پردې پرتې وي ، معنوي برم او لوړ والی نشي لیدلای .

دا د الهي حکمت پریکړه ده ، چې ګروهه او ایمان به له دنیاوي ډول و سینګار او ظاهري ښکلا نه بې برخې وي ، د تحریص او ترغیب له ناوړه احساس نه به پاک وي ، د دین د قبلولو محرک به کوم حاکم ته د نژدې والي ، د ځوکې او اقتدار حرص ، کومه په زړه پورې هیله او د کومې غوښتنې تسکین نه وي ، د دین د منلو محرک به جدوجهد ربړ او کړاو ګالل ، په سر لوبې کول وي .

نو هر هغه څوک ، چې دغې ډلې ته راځي په دې خبره به ئې پوره باور او یقین وي ، چې دغه نظریه یې یوازې د ګروهې په بنه منلې ده ، نه د بل د چا د خوښې لپاره ، بلکه خالصا د الله تعالی د رضا او خوښې لپاره ، له هغو ټولو نفسي غوښتنو او خواهشاتو نه به بیزاره وي ،چې عام خلک پرې لکه مچان په خوږو راټول وي ، دا د دې لپاره چې هیڅ څوک هم د دې ګروهه د هغو خلکو په څیر په بیه وانخلي ، چې په دنیاوي ګټو پسې سر ګردانه او لا لهانده دي ، د حرص برم ، پرتم ، او سرو سپینو مریان دي ، او د انسان افکار او تصورات ورته د الله تعالی له رضا او خوښې نه ډیر لوړ ښکاري ، که څه هم هغه د الله تعالی په نظر ډیر ټیټ او بې ارزښته وي .

## د مؤمن دریځ

مومن د خپل ژوند ارزښتونه ، نظریات او افکار د خپلې ټولنې له خلکو نه زده کوي ، نو له دې امله د نورو په پلونو پل کیښودو او په هغوی پسې تلو ته هم اړ نه دی ، د مومن د افکارو ارزښتونو او معیارونو ماخذ د ټولو انسانانو الله جل جلاله دی ، همغه ماخذ او منبع د ژوند په هر اړخ کې د هغه لپاره کافي ده ، د مومن د ژوند معیارونه او ارزښتونه د انسانانو له غوښتنو او خواهشاتو نه ټاکل کیږي .

نو ځکه خو ورته په هغوی پسې تګ او یا د نژدیوالی ضرورت هم نه احساسیږي ، د هغه د ټول کائني او تله د حق له خوا رالیږل شوی معیارونه او ارزښتونه دي ، چې هیڅ ډول بدلون پکې نشي راتلای ، او هیڅ کله هم د چا د خوښې او غوښتنې پر اساس یوه خوا او بله خوا کیدای نشي ، مؤمن دغه ټول ارزښتونه د دغې محدودې او فاني دنیا له دودونو نه نه اخلي بلکه برعکس د هغه ضمیر او وجدان د هغې ابدي او لا زواله نور په وړانګو منور کیږي ، چې د ټول کائنات تورتم یې روڼ کړیدي ، په داسې صورت کې به څنګه یو مومن یوازې او بې ځواکه احساس کړي چې اړیکې یې د ټولو کائناتو له خالق سره وي ؟

هغه پر حقه دي ، او د حق له پرېښودلو نه وروسته له ګمراهې او بې لارې نه پرته نور څه لاس ته ورتلای شي ؟

که له ګمراهانو سره جاه و جلال ، اقتدار او برم وي ، د هغوی د ډول او سورنا مخې ته د خلکو ګڼه ګوڼه وي ، نو وي دې ، له دغه ډول د خندا وړ شان و شوکت نه د ( حق ) په کمیت او کیفیت کې د ذرې هومره کمې او بدلون هم نه راځي ، مومن په حقه دي او د ( حق ) لارې له پرېښودلو نه وروسته بې لارې او ګمراهې نه پرته بل هیڅ شي هم لاس ته نشي راوړلای .

نو ولې به د حق په بیه د ضلالت سودا کوي ، که د حالاتو بهیر هر څومره د هغه پر ضد وي بیا هم له ریښتوني مومن نه دغه تمه کول ، چې د ( حق ) پر ځای به ( باطل ) غوره کړي بالکل عبث خبره ده :

رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا مِنْ لَدُنْكَ رَحْمَةً إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ() رَبَّنَا إِنَّكَ جَامِعُ النَّاسِ لِيَوْمٍ لَا رَيْبَ فِيهِ إِنَّ اللَّهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ [ د ال عمران سورت ۸ - ۹ آیت ]

( تا چې مونږ پر سمه لاره روان کړي یو ، نو بیا هیڅکله هم زمونږ زړونه په کږو لارو مه بیایه ، مونږ ته د خپل فیض له خزانې نه رحمت راوبښه ، ځکه چې ته حقیقي فیاض یې - پروردګاره ! ته به یقینا یوه ورځ دا ټول خلک راټولوې ، چې په راتلو کې یې هیڅ شک او شبه نشته ، بې له شکه الله جل جلاله هیڅکله هم له خپلې وعدې نه اووښتونکې ندی ـ) .

## دولسم فصل

### اغزنه بیدیا

وَالسَّـــمَاءِ ذَاتِ الْبُرُوجِ()وَالْيَوْمِ الْمَوْعُودِ()وَشَاهِدٍ وَمَشْهُودٍ()قُتِلَ أَصْحَابُ الْـــأُخْدُودِ()الـــنَّارِ ذَاتِ الْوَقُــــودِ()إِذْ هُمْ عَلَيْهَا قُعُودٌ()وَهُمْ عَلَى مَا يَفْعَلُونَ بِالْمُؤْمِنِينَ شُهُودٌ() وَمَا نَقَمُوا مِنْهُمْ إِلَّا أَنْ يُؤْمِنُوا بِاللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ()الَّذِي لَهُ مُلْـــكُ السَّـــمَاوَاتِ وَالْــأَرْضِ وَاللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ() إِنَّ الَّذِينَ فَتَنُوا الْمُؤْمِـــنِينَ وَالْمُؤْمِـــنَاتِ ثُـــمَّ لَـــمْ يَتُوبُوا فَلَهُمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ وَلَهُمْ عَذَابُ الْحَـــرِيقِ()إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ذَلِكَ الْفَوْزُ الْكَبِيرُ()إِنَّ بَطْشَ رَبِّكَ لَشَدِيدٌ()إِنَّهُ هُوَ يُبْدِئُ وَيُعِيدُ()وَهُوَ الْغَفُـــورُ الْوَدُودُ()ذُو الْعَرْشِ الْمَجِيدُ() فَعَّالٌ لِمَا يُرِيدُ [ د البروج سورت ۱ - ۱۶ آیتونه ]

( سوګند دی په برجو د اسمان ، سوګند دی په هغی ورځی چې د راتلو ژمنه ( وعده ) یی شویده ، سوګند په هغی ورځی چې حاضر یی ( جمعه ) او سوګند په هغی ورځی چې د هغی لپاره حاضریږی ( عرفه ) چې مړه شول د خندقونو څښتنان په داسی اور کې چې ډیر لرګی ( لګوونی ) پکې دی ، کله چې هغوی د خندقونو پر سر ناست وو او له مؤمنانو سره یی چې کوم ظلم او تیری کاوه د هغی ننداره یی کوله او هغوی د مؤمنانو له دی خبری نه پرته " چې پر الله جل جلاله یی ایمان راوړی و چې تر ټولو څواکمن او د ستاینی وړ دی " په بل څه انتظام وانه خیسته ، هغه چې د ځمکې او اسمانونو بادشاه دی او الله جل جلاله له هر څه نه خبر دی ، بی له شکه هغو خلکو چې مومنانی ښځی او نارینه د ایمان له امله ځورولی دي او بیا یی توبه نه ده کړی ، د هغوی لپاره د جهنم عذاب دی ، او د هغوی لپاره سوځوونکې عذاب دی البته هغه چا چې ایمان راوړی او نیک عمل یې کړیدی د هغوی لپاره باغونه دی چې اوبه تری لاندی بهیږی او دا ډیر ستر بری دی ، بی له شکه ستا د الله جل جلاله مواخذه ډیره سخته ده هماغه دی چې

لومړی هر څه پیدا کوی او هماغه دی چې د قیامت په ورځ یې بیا را پیدا کوی ، او هغه ښښوونکې او مهربان دی ، د عرش څښتن دی او د لوی برم او شوکت لرونکې دی ، هغه څه چې وغواړی کوی یې ) .

## د اصحاب الاخدود ( خندق ) کیسه

د اصحاب الاخدود کیسه چې د البروج په سوره کې راغلې ده د دې وړ ده چې ټول هغه مؤمنان پرې غواړو خیرڼه وکړی چې د تاریخ په هر پړاو ، او د دنیا په هر ګوټ کې چې وی چې د اسلامی نهضت مخکښان وی .

قرآنکریم چې په کوم دود ، د دغې کیسې څرګندونه او بنسټ ایښودنه کړیده او بیا یې چې پرې د تبصرې ترڅنګ کوم تعلیمی اصول ښوولی دی ، له دې ټولو نه په حقیقت کې د قرآن کریم هغه بنیادی کرښې راڅرګندیږی ، چې د الهی دعوت د فطرت او له دغه دعوت سره د انسانانو د رویې او د هغه احتمالی سختو کړکیچنو حالاتو ښودنه کوی ، چې د دې دعوت په ارته لمن کې چې تر ټولی نړۍ هم ویړه او عمر یې د دنیا تر عمره هم زیات دی ، مینځ ته راتلای شی .

قرآن په دغه کیسه کې مؤمنانو ته د هغوی د لارې څرګندی نښې هم ښوولی دی او هغوی یې دی ته چمتو کړیدی چې په لاره کې د راتلونکې هر ډول مصیبت او کړاو ( چې د الله جل جلاله د حکمت او ارادی تر سیوری لاندې د غیب په پرده کې پټ د تقدیر له خوا نه صادریږی ) هر کلی په ورین تندی وکړی .

## د مومنانو سوبه ( فتح )

دا د یوی داسې ډلی کیسه ده ، چې پر خپل الله جل جلاله یې ایمان راوړی و او غوښتل ئی چې خپله ریښتینولی په واضحه توګه ثابته کړی ، خو د جابرو او سړی خورو دښمنانو له لاسه یې بوګنوونکې ربړونه او کړاوونه وزغمل .

څکه هغوی د انسان هغه بنیادی حقوق او ازادی له دوی نه تروړ له چې پر حق باندې د ګروهیدنې او د الله جل جلاله پر واحدانیت باندې یې د ایمان

راوړلو په برخه کې لرله ، د انسان په هغه کرامت او شرافت پوري یې خندل ، چې الله تعالی هغه په خاصه توګه انسان ته وربښلی دی .

ددې لپاره چې هغوی د چا لاس پوڅې نشي ، او ظالم او تيري کوونکې واکمنان د ډول ، ډول کړاوونو په ورکولو ، او د هغوی په سوو ، او بوګنوونکو ساندو د خپلې خوښۍ او تفریح زمینه برابره نکړي ، د ایمان دغه توتی د داسې ریښتوني عقیدې په وسله سنبال وي ، چې حتی په دغه ډول ازمېښت کې يې هم بري ترلاسه کړ ، د ازموینې په هغه سره بټۍ کې هم بالاخره فاني ژوند د عقیدې او ایمان له لاسه ماتې خوړلې وه او څنګه ماتې !

دغه او څاره ډله د میرځمنو په هیڅ ډول د پکو او دړکو ونه ویریدله ، د اور اسمان څکو لمبو ته وغورځول شول ، توری ایری شول ... خو .... له خپلې ګروهې نه یې د سر ویښته هومره سرغړونه ونکړه ، ځانونه یې د پتنګ په څیر ستی کړل ، خو جفا کارو تيري کوونکو ته یې غاړه کینښودله .

په حقیقت کې دغه سپيڅلې ارواګانې د دنيا له دروغجنې ( فریبي ) مینې او ستاینې نه خلاصې شوې وې .

له همدې امله یې دغه ډول وحشیانه مرګ چې په سترګو ئې لیده ومانه ، خو د ذلت ژوند ، د عقیدې او ایمان پریښودلو ته اړ نکړای شول ، د الله جل جلاله د ایمان په اغزنه لار او د ازمېښت په سره بټۍ کې یوازې د کلک ایمان او پاخه هوډ خاوندان بري ترلاسه کولای شي .

د هغوی روح له عالم سفلی نه د عالم علیا په لور په ډیر ویاړ والوت ، دغه پیښه پر فاني ژوند د عقیدې د بري یو ستر مثال دی .

تر ځناورو بده ډله د پاخه هوډ او کلک ایمان د خاوندانو ( اصحاب الاخدود ) په وړاندې یوه بله ډله هم وه چې له خدایه باغي او د ټیټ فطرت خاوندان وو ، کله چې هغه د ایمان توتی په اور کې سوزیدلې ، نو دوی ورته د کندې پر غاړه ناست وو ، د هغوی د وریتیدلو ننداره ، کوله .

هغه د وحشت مجسمو له دینه هم خوند اخیسته چې د ایمان خاوندان څنګه سوزي او دغه نه سهیدونکې کړاو څنګه زغمي ، او څنګه به د اور

لمبې دغه ژوندي انسانان په خپله لمن کې راونغاړي ؟ د سترګو په رپ کې به يې د ايرو ډيرې کړي .

کله چې کوم ځوان هلک يا پيغله نجلۍ ، ماشوم يا بوډا مومن هغوی د اور دغې کندې ته ور وغورځاوه ، نو د دغو ځيرووټکو ليوانو مستی او شور و زوږ به نور هم د هغوی د وينو دارو او د سرو غوښو د بوی او تيوتو په ليدلو زيات شو ، او د ليوانو په څير به يې ورته اتڼ اچولی و .

له دغې بوګنوونکې پيښې نه داسې څرګنديږي چې د هغو بد مرغه ظالمانو فطرت داسې خيرن او مسخ شوی و ، چې د هغوی لپاره دغه ډول وحشيانه او بوګنونکې عمل هم ساعت تيري او تفريح وه ، دا د ټيټوالي او رذالت هغه وروستی ځنګل دی ، چې تر اوسه به حتی يو ځناور هم نه وی ور رسيدلی .

ځکه ځيرونکې ځناور خو ښکار د دې لپاره کوي چې خپله روزی ترلاسه کړي ، نه دا چې د خپل نيم ژوندي ښکار له ترپيدو او ځوريدو نه خوند واخلي .

له دغې پيښې نه مونږ ته يوه بله مسئله هم څرګنديږي او هغه دا چې د الله جل جلاله موحدو بندګانو په دغه ازميښت کې د سرښندنې ، ټينګار او هوډ يو داسې لوړ مثال وښوده او داسې له وياړه ډکه او لوړه مانۍ يې ودانه کړله ، چې په هره زمانه کې به د لوړتيا او معراج سمبول وي .

په دغه جګړه کې بری د چا په برخه شو ؟

که مونږ دغه جګړه د دنياوي معيارونو او ارزښتونو په تله وتلو ، نو داسې به راته څرګنده شي چې ګنی ظلم او تيری پر ګروهې بری موندلی دی ، د صالحو او الله د لارې د لارويو د ايمان ځواک ، چې بې له شکه د لوړتيا او کمال نقطې ته رسيدلی و د ايمان او ظلم په دغه جګړه کې يې ميدان بايللی دی ، نه قرآن دغه خبره کوي او نه روايات مونږ ته په دې برخه کې څه وائي ، چې الله تعالی دغو تيري کوونکو ته هم داسې سزا ورکړه ، لکه څنګه يې چې د نوح عليه السلام ، هود عليه السلام ، صالح عليه السلام ، شعيب عليه السلام او لوط عليه السلام ټبرونو ته ورکړې وه .

یا یې لکه څنګه چې فرعون او د هغه پوځیان په بشپړ ځواک او قاهرانه برم او پرتم غرق کړی وو .... نو له دې امله د ظاهر بینو او لنډ اندو خلکو له نظره د دغې پیښې پای ډیر غم لړلی او زړه دردوونکې دی .

خو ایا دا خبره یوازې په همدې ځای پای ته رسیږي ؟ ایا د ایمان د لوړ والي وروستی پړاو ته رسیدلی الله پرست بندګان د هغو بوګنوونکو دردونو په نتیجه کې د اور په خندقونو کې برباد او توری ایرې شول ؟ او هغه تیری کوونکې ډله چې د رذالت او پستۍ وروستي منزل ته رسیدلې وه ، په دنیا کې له سزا نه بیخي بې غمه پاتې شوه ؟

تر کومه چې په دنیاوي حساب و کتاب پورې اړه لري ، د دغې غمجنې پیښې د پای په هکله د انسان په زړه کې یو درد او سوز را پورته کیږي ، خو ( قرآن ) د مومنانو یو بل ډول روز نه کوي او د هغوی په مخکې د یوه بل ستر حقیقت له مخې پرده پورته کوي .

قرآن هغوی ته یوه بله پیمانه ورکوي ، چې په هغې سره د هر څیز په پوره وزن پوه شي او د حق او باطل له کومو جګړو او پیښو سره چې مخامخ کیږي ، د هغوی په اصلي حقیقت او اصل ارزښت هم پوه شي .

## بري ريښتوني معيار

د دنیا ژوند او د هغې ښې او بدې ، سوبې او ماتې د انسان لپاره پریکنده ( فیصله کن ) حیثیت نه لري ، دا هغه مال ومتاع نه ده ، چې ګټې او زیان وروستی حساب وښیي ، سوبه یوازې ظاهري برلاسی نده ، بلکه دا د بري د بې شمیره ډولونو یو ډول دی .

د الله جل جلاله د پریکړې په تله کې اصل درنښت او وزن د عقیدې دی ، د هغه بې ساری ذات لپاره یوازې د ایمان متاع ارزښت لري ، د سوبې او بري لوړ معیار دا دی ، چې روح پر ماده بري ومومي او عقیده پر رنځ او محنت بري ومومي او د ازمیښت په وخت کې سوبه او بري د ایمان په برخه شي .

لکه څنګه چې د اصحاب الاخدود په پیښه کې د مومنانو روح پر ( ویرې ، ربړ او کړاو ، د دنیا په عیش ونوش ، د ژونـد په مینه ، او سخت

ازمیښت ) داسې ستر برې ومونده چې د نړۍ تر پایه به د انسان لپاره د ویاړ ، وړ وي ..... اصلي سوبه او برې همدغه دي .

## د مومن مړینه عزت دی

ټول انسانان مري ، خو د مړینې اسباب او عوامل یې سره توپیر لري ، لیکن ټولو انسانانو ته دا برې نه ور په برخه کیږي او نه ټول د ایمان دومره لوړ معیار ښودلی شي ، نه دومره بشپړه آزادي تر لاسه کولای شي او نه په دومره لوړ افق کې الوت کولی شي ، دا د الله جل جلاله فضل او کرم دی چې په خپلو بندګانو کې یوازې یوه ډله غوره کوي ، چې په مړینه کې خوله ټولو سره شریک دي .

ولې تر مړینې وروسته یې داسې شرف او پت په برخه کیږي ، چې نور خلک ترینه بې برخې وي ، دغه شرافت او عزت نه یوازې په ملا اعلی کې د هغوی په برخه کیږي ، بلکه د پرله پسې راتلونکو انساني نسلونو په نظر کې هم تر نورو خلکو هغوی لوړ اعزازي پوړي او دریځ حاصلولای شي .

## هغو مومنانو بشریت ته د ایمان درس ورکړی دی

دغو مومنانو د ایمان په بایللو خپل ځانونه ساتلای شول ، خو په دې کې به دوی خپله څومره زیان کړی وای او ټول بشریت ته به یې څومره زیان رسیدلای وای ! دا به زښت زیات زیان وای چې که هغوی دغه روښانه حقیقت تر پښو لاندې کړی وای ، چې "بې ایمانه ژوند په یوه کنجکه که هم نه ارزي .

د ازادۍ نعمت چې په ژوند کې نه وي هغه ژوند د کرکې او نفرین وړ دی ، که چیرې تیرې کوونکې او ظالمان دومره جرات پیدا کړي ، چې د خلکو پر جسم تر حکمرانۍ او تسلط وروسته د هغوی پر زړونو او روح هم حکومت وکړي ، نو دا د ژوند هغه نهائي پستي او ټیټوالی دی !

دا هغه لوړ او سپیڅلی حقیقت دی چې مؤمنانو پرې په ژوند کې عمل کاوه ، کله چې هغوی د اور لمبو په خپله لمن کې راونغښتل ، نو بیا هم د دغه لوړ او سپیڅلي حقیقت په اصولو ټینګ ولاړ وو ، له یوې خوا د دوی فاني جسمونه په اور سوزیدل او له بلې خوا نه د دغه ستر او سپیڅلي

حقیقت اصولو د خپلې کامیابۍ ویاړلی حماسه ، په خلکو منله او د اور لمبو د هغې زرینې کرښې نور یې هم ځلولې .

## د حق او باطل ډلې او د جګړې میدان

د حق او باطل د جګړو میدان یوازې د همدې نړۍ ستېج نه دی او ژوند هم یوازې د همدې دنیاوي ژوند نوم نه دی ، دښمني ( متخاصمې ) ډلې هم یوازې همدا خلک نه دي ، چې له همدې نسل سره اړیکې لري ، چې جګړه یې ترمینځ روانه ده .

د دنیا په ټولو پېښو کې هغه ستر او لوړ ذات او مقام ګډون لري ، چې د هغوی ننداره کوي ، او پرې شاهد دی ، هغوی په هغه تله تلي ، چې د دنیاوي میزان په کوم خاص وخت او زمان او نسل پورې اړه نه لري ، هغه تله او کاڼي د ټول بشریت له تلو او کاڼو سره توپیر لري ، په یوه وخت کې چې په دنیا کې څومره انسانان ژوند کوي په هغه ستر او لوړ مقام کې تر هغې څهو ګرایه زیات پاک او سپېڅلي روحونه موجود وي .

نو بې له شکه د حق او عدالت پوځ ته چې کومه ستاینه ، عزت او تکریم له هغه ستر او لوړ مقام نه ور په برخه دي ، هغه د نړۍ والو د پریکړو ، ستاینو او عزت نه څو چنده زیات ستر او دروند دی ، تر دغو ټولو پړاوونو وروسته د اخرت ورځ هم شته ده او د وروستي فیصلې او پریکړې میدان هم همدغه دی .

د دنیا نندارتون هم د واقعیت له مخې او هم د مومن د احساس او شعور له مخې له دغه میدان نه بیل ندی ، بلکه ګډ دی ، نو له دې امله د حق او باطل جګړه یوازې د دنیا پر ستېج پای ته نه رسیږي ، ځکه چې د ریښتوني پریکړې او پای پړاو یې لا مینځ ته ندی راغلی ، د دنیا پر ستېج چې د دغې جګړې کومه برخه پای ته رسیدلې ده ، یوازې پر هماغې برخې باندې حکم کول او یا د سم او نا سم مهر لګول له انصاف نه لرې ده ، ځکه چې د دغه حکم اطلاق به یوازې د جګړې پر یوه معمولي برخه او پړاو وي ، نه پر ټولو برخو او پړاوونو .

### د مومنانو انعامونه :

**د مومنانو انعامونه :**

هغه څوک چې لومړی ډول نظر لري ، یعنی دا چې د دنیا ستیج د دنیاوی مسایلو او پیښو لپاره یوازینی او فیصله کوونکې ځای ګڼی ، هغه ډیر لنډ اندی او ، تلوار ګندی ، ( عجلت پسند ) انسانان دی ، د دویم ډول نظر لرونکې چې د حساب و کتاب په وروستی ورځ ګروهه لري ، د ژور فکر او پراخه نظر خاوندان دی ، قرآن غواړی چې د مومنانو په زړونو کې دغه وروستی ډول نظر پیدا کړی .

همدغه نظر د هغه حقیقت سمه ترجمانی کولای شی ، چې پر هغه د سم او پاخه ایمان د تصور مانۍ ودانه ده ، له همدی امله الله تعالی چې مومنانو ته په ایمان او اطاعت کې د اثبات او ټینګار په ازمیښتونو کې د بری او د ژوند په غورزو پرزو کې د سوبې او ایمان کومه وعده ورکړې ده ، هغه د موسنانو لپاره د زړه ډاډ ده .

الله جل جلاله فرمائی :

الَّذِيــنَ آمَنُوا وَتَطْمَئِنُّ قُلُوبُهُمْ بِذِكْرِ اللَّهِ أَلَا بِذِكْرِ اللَّهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ [ د الرعد سورت ۲۸ آیت ]

( هغه خلک چې ایمان راوړی ، د هغوی زړونو ته د الله جل جلاله په یاد ډاډ ، ور په برخه کیږی ، خبر اوسی ، د الله جل جلاله یاد هغه شی دی چې زړونو ته ډاډ او اطمینان وربښی )

د الله جل جلاله د بخشش او محبت وعده پکې شویده :

إِنَّ الَّذِيــنَ آمَــنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمَانُ وُدًّا [ د مریم سورت ۹۶ آیت ]

( هغو خلکو چې ایمان راوړی دی او نیک کارونه یی کړی دی ، نژدی ده چې الله جل جلاله به د هغوی لپاره په زړونو کې مینه پیدا کړی ) .

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی :

کله چې د الله تعالی د کوم بنده ( ماشوم ) مړ شی او الله جل جلاله له خپلو ملایکو نه پوښتنه کوی چې : تاسو زما : فلانی بنده د ماشوم روح

قبض کړی دی ؟ هغوی ورته عرض وکړی چې هو الله تعالی فرمایی : تاسو زما د بنده د زړه د قطری روح قبض کړیدی ؟

ملایکې عرض کوی " هو پروردگار !

په دی خبره الله جل جلاله له هغوی نه پوښتنه کوی چې : په دغه مرگ زما بنده څه وویل ؟

فرښتی ورته وایی هغه ستاسو حمد وایه او " انا لله وانا الیه راجعون " یی وویل .

د دی په اوریدو الله جل جلاله حکم کوی چې زما دی بنده ته په جنت کې یو کور ودان کړی او نوم یی " بیت الحمد " کیږدی [ترمذی] لاندینی وعده د هغې خبری ده چې د ملاء اعلی موجودات د مومنانو لپاره دعا کوی او له دوی سره ژوره مینه او همدردی لری .

همدا رنگه له هغه حضرت صلی الله علیه وسلم نه روایت شویدی چې الله تعالی فرمایی : زه خپل بنده لره هغه څه یم چې د ده راباندی گومان دی ، کله چې هغه زما ذکر کوی نو زه له هغه سره یو ځای یم ، که په زړه کې می یادوی زه یی هم په زړه کې یادوم ، که د خلکو په مینځ کې می یادوی ، نو زه یی هم د غوره خلکو په ډله کې یادوم که هغه یوه لویشت ماته رانژدی کیږی نو زه یو لاس ( ذراع ) هغه ته ورنژدی کیږم ، که هغه یو لاس رانژدی کیږی ، نو زه یو قدم د هغه په لور ورنژدی کیږم ، که هغه زما په لوری را روان شی ، نو زه به د هغه په لور په منډه ورشم [بخاری ، مسلم]

الَّذِيـــنَ يَحْمِلُـــونَ الْعَـــرْشَ وَمَـــنْ حَوْلَهُ يُسَبِّحُونَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَيُؤْمِنُونَ بِهِ وَيَسْـــتَغْفِرُونَ لِلَّذِينَ آمَنُوا رَبَّنَا وَسِعْتَ كُلَّ شَيْءٍ رَحْمَةً وَعِلْمًا فَاغْفِرْ لِلَّذِينَ تَابُوا وَاتَّبَعُوا سَبِيلَكَ وَقِهِمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ [ د المومن سورت ۷ آیت ]

( د الهی عرش حاملی ملایکې او هغه چې د عرش شا وخواته ولاړی وی ټولی د الله جل جلاله له حمد سره د هغه تسبیح هم وائی ، هغوی پر الله جل جلاله ایمان لری او ایمان راوړونکو ته د ښښنی دعا کوی ، هغوی وائی : ای زمونږ خدایه ، ستا علم او رحمت په هر څه محیط دی ، نو هغه خلک وبښه چې توبه یی ایستلی ده ، هغه خلک چې ستا لار یی غوره کړیده له دوزخ نه وژغوره )

په لاندینیو ایتونو کې هغه وعده بیان شویده چې د شهیدانو لپاره له الله جل جلاله سره همیشنی ژوند دی :

وَلَـا تَحْسَـبَنَّ الَّذِيـنَ قُـتِلُوا فِـي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ()فَرِحِينَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ وَيَسْتَبْشِرُونَ بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا بِهِمْ مِـنْ خَلْفِهِـمْ أَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ() يَسْتَبْشِرُونَ بِنِعْمَةٍ مِنَ اللَّهِ وَفَضْـلٍ وَأَنَّ اللَّـهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُؤْمِنِينَ[ د ال عمران سورت ۱۶۹-۱۷۱ آیتونه ]

( هغه خلک چې د الله جل جلاله په لار کې مړه شویدی مړه یی مه ګڼی ، هغوی په حقیقت کې ژوندی دی له خپل رب سره رزق خوری ، هغه څه چې الله تعالی په خپل فضل هغوی ته ورکړی دی ، پر هغی خوښ او خوشحاله دی ، او په دی ډاډه دی چې هغه مومنان چې د هغوی تر شا په دنیا کې پاتی دی او تر اوسه هغه ځای ته نه دی رسیدلی ، د هغوی لپاره هم د ویری او غم اندیښنه نشته ، هغوی د الله تعالی په انعام او فضل خوشحاله دی ، او دا ورته څرګنده شوی ده چې الله تعالی د مومنانو اجر نه ضایع کوی ) .

## د سر غړوونکو ( باغیانو ) انجام

په دی توګه الله تعالی په پرله پسی توګه ژمنی ( وعدی ) کړیدی چې هغه به دروغجن ، ظالمان ، سرغړوونکې او مجرمان په آخرت کې په سزا ورسوی ، په دنیا کې یی تر یوه تا لـی وخت پوری د هغوی واګی سست پریښی دی او مهلت یی ورکړیدی چې څه کوی ، سره له دی چې د دغه ډول خلکو نه یی ځینی کله ، کله په دنیا هم شرمولی دی ، خو د اصلی سزا لپاره یی د اخرت ورځ ټاکلی ده :

لَـا يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي الْبِلَادِ()مَتَاعٌ قَلِيلٌ ثُمَّ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمِهَادُ [ د ال عمران سورت ۱۹۶-۱۹۷ آیتونه ]

( د الله تعالی د نافرمانه خلکو د څو ورځو تله راتله په ښارونو کې تاسو تیر نه باسی ، ځکه چې دغه لطف د څو ټاکلو ورځو لپاره دی ، بیا د هغوی ځای جهنم دی ، چې دیر بد استوګن ځای دي ) .

وَلَـا تَحْسَبَنَّ اللَّهَ غَافِلًا عَمَّا يَعْمَلُ الظَّالِمُونَ إِنَّمَا يُؤَخِّرُهُمْ لِيَوْمٍ تَشْخَصُ فِيهِ الْأَبْصَـارُ() مُهْطِعِينَ مُقْنِعِي رُءُوسِهِمْ لَا يَرْتَدُّ إِلَيْهِمْ طَرْفُهُمْ وَأَفْئِدَتُهُمْ هَوَاءٌ [ د ابراهیم سورت ۴۲- ۴۳ آیتونه ]

( تیری کوونکې چې هر څه کوی ته الله تعالی له هغو نه غافل مه ګڼه ، الله جل جلاله هغی ورځی له هغوی ساتلی دی چې داسی حال پری راولی چې سترګی یی وازی پاتی شی ، سرونه به راپورته کړی او په منډه به روان وی ، د دوی په لور بیرته نه راګرځی د دوی سترګی ، زړونه به یی درزیږی او له امیده به تش وی )

فَذَرْهُـمْ يَخُوضُوا وَيَلْعَبُوا حَتَّى يُلَاقُوا يَوْمَهُمُ الَّذِي يُوعَدُونَ() يَوْمَ يَخْرُجُونَ مِنَ الْأَجْدَاثِ سِرَاعًا كَأَنَّهُمْ إِلَى نُصُبٍ يُوفِضُونَ()خَاشِعَةً أَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ذَلِكَ الْيَوْمُ الَّذِي كَانُوا يُوعَدُونَ [ د معارج سورت ۴۲- ۴۴ آیتونه ]

( نو پریږده ای محمده ! دوی عبث او بیهوده کارونو ته چې لوبی وکړی ، تر هغی چې له هغی ورځی سره مخامخ شی ، چې وعده ورکړ شویده ، هغه ورځ چې له قبرونو نه په بیړه او منډه راوځی ته به وائی چې د کومی نښی په لور منډی وهی ، سترګی به یی ښکته وی او په ځیرو به یی د خوارۍ او ذلت دوړی پرتی وی ، دا ده هغه ورځ چې له دوی سره یی ژمنه یی شوی وه )

په همدی توګه د انسان ژوند د ملاء اعلی د ژوند سره اړیکې لری او د دنیا ژوند له آخرت سره ، نو له همدی امله د خیر او شر ، حق وباطل ، ایمان او بغاوت ، د جګړو او شخړو دار مدار ټول په همدی دنیا کې سر ته نه رسیږی او نه دنیا د دی ځای دی چې د دغو پیښو وروستی پریکړه پکې واورولای شی .

دنیاوی ژوند او په هغه پوری تولی مربوطی هوساینی ، کړاوونه ، خوندونه ، او محرومیتونه د الله جل جلاله د پریکړی لپاره اصلی معیارونه

نه دی ، د همدغه روښانه حقیقت له مخې د خیر و شر د جګړې میدان هم ډیر پراخه دی او موده یې هم زښته زیاته ده .

د کامیابۍ او ناکامۍ پیمانې ، او تول ، معیارونه او ارزښتونه یې هم ډیر لوړ او اوچت دي ، له همدې امله د مومن د فکر او نظر په ساحه کې یوه غیر معمولي بدلون او پراختیا هم مینځ ته راځي او د هغه د پاملرنې وړ معیارونه د لوړې پوړې او درجې ښکارونډي وي .

د دې دنیا ، ظاهري ښکلا او د ژوند لوازم د هغه په نظر بې ارزښته کیږي ، څومره چې د هغه د فکر او نظر زاوئې لوړیږي ، هومره د هغه پوړې هم لوړیږي ، د یوه داسې بې مثله هر اړخیز او سپیڅلي ایماني انځور د پیدا کولو لپاره د اصحاب الاخدود کیسه یو بې سارې مثال دی .

## د مکذبینو مختلف انجامونه

د اصحاب الاخدود له کیسې او د سوره بروج له مضمون نه د اسلامي دعوت د مزاج او څرنګوالي او همدا رنګه د وخت او زمان په هر ډول مکاني حالاتو کې د داعي د دریځ بل اړخ هم روښانه کیږي ، د الهي دعوت تاریخ د نړۍ د نورو ډول ډول دعوتونو په څیر مختلف انجامونه لیدلي دي ، د دغه تاریخ پاڼې د نوح علیه السلام ، هود علیه السلام ، شعیب علیه السلام ، او لوط علیه السلام د قومونو د بربادۍ له افسانو نه ډکې دي ، خو محدودې پاڼې یې د مومنانو د خلاصون او نجات په زیرې هم ښکلې شویدي .

خو قرآن دا نه دي ویلي چې نجات موندونکو قومونو بیا وروسته په دنیا او دنیاوي ژوند کې څه کړیدي ؟ د پورتنیو قومونو د تباهۍ مثالونه څرګندوي چې کله کله الله جل جلاله مکذبین او ظالمان په دې دنیا کې هم د خپلو ناوړه اعمالو په خوند پوه کړیدي ، خو د بشپړې او پوره سزا ئې لپاره یې د اخرت ورځ ټاکلې ده ، د دغه دعوت تاریخ په نیل کې د فرعون او هغه د لښکریانو د ډوبیدو ننداره هم کړیده او په دې هم شاهد دی چې څه ډول الله جل جلاله حضرت موسی علیه السلام او د هغه قوم ته نجات ورکړ او بیا یې هغوی په هماغه هیواد کې د واک او ځواک خاوندان کړل ،

دا هغه وخت و چې دغه قوم په خپل ټول تاریخ کې تر نورو نسبتا صالح او نیک عمله قوم و ، سره له دې چې هغوی هیڅکله هم د پوره ثبات او مقاومت تر پوړې پرمختګ ونه کړ ، ځکه هغوی هیڅکله هم په نړۍ کې د الله جل جلاله د دین توغ د یوه جامع او هر اړخیز نظام په توګه ونه رپاوه .

د دعوت د تاریخ پاڼې د هغو مشرکینو د بې شمیره مړو د انبارونو په افسانو هم ډکې دي ، چې د حضرت محمد ضلی الله علیه وسلم له لارښوونو نه یې سر غړونه کړې وه او ایمان یې پرې نه و راوړی ، او دا یې هم لیدلي دي ، هغه وخت چې د مومنانو پر زړونو د عقیدې د بې ساری حکومت توغ رپیدلای ، سولې او برې د هغوی قدمونه ښکل کړېدي .

د بشریت تاریخ د لومړي ځل لپاره دا هم ولیدل چې په څه ډول خدائی نظام د انسانی ژوند د اصلي حاکم په توګه عملا مینځ ته راغی ، دا یوه داسې مرحله وه چې د بشر د څو زره کلن زاړه تاریخ پاڼې یې نه په مخکې ساری لرې او نه را وروسته .

لکه څنګه چې مونږ د مخه ووېل د اسلامی دعوت تاریخ د اصحاب الاخدود د پیښې نمونه هم لیدلې ده ، پر دې برسیره د تاریخ پاڼو په پخوانی او اوسنی دواړو زمانو کې ډېرې سترې پیښې لیدلې دي ، چې د ایمان په تاریخ کې دومره لوړه پوړی نلري ، او تر اوسه لا د تاریخ دغه وچې او سپینې سترګې ډول ډول پیښې ګورې چې له تیرو شوو انجامونو نه په یوه نه یوه انجام پای ته رسیږي او له پیړیو پیړیو راهیسې د تاریخ د قارونی خزانې په څیر سینه کې خوندي پرتې دي .

### د اصحاب الاخدود د پیښې ځانګړې انجام او د مومنانو لپاره د عبرت درس

د اسلامی تاریخ د نورو نمونو یادول هم ضروري ښکاري ، خود هغې پیښې یادول چې په اصحاب الاخدود پورې اړه لري ، ډېر ضرور ده ، دا د ایمان هغه ویاړلې حماسه او د عزم او ثبات هغه یوازینۍ نمونه ده ، چې مؤمنانو پکې خلاصون نه دی موندلی او کافرانو هم په دنیا کې د الله جل جلاله د عذاب خوند ، ندی څکلی ، دا د دې لپاره چې د حق لارې د

مدعیانو او پلویانو په ذهن کې دا خبره په پوره توګه انځور شي ، چې ښائي د حق په لاره کې ځوک له داسې بوګنوونکې انجام سره هم مخامخ شي .

په دې برخه کې دوی هیڅ واک او اختیار نلري ، د دوی او د دوی د ایمان مسئله په الله جل جلاله پورې اړه لري ، د دوی مسئولیت یوازې همدومره دی چې خپله دنده سر ته ورسوي او نور رخصت شي ، د دوی وظیفه دا ده چې یوازې د الله جل جلاله رضا د ځان لپاره غوره وګڼي ، ګروهه تر ژوند غوره وګڼي او د ازمیښتونو په ستونزو د ایمان په زور برې ومومي .

په ژبه او زړه هم د الله جل جلاله د صداقت او ریښتینولۍ ګواهي وکړي او په عمل و کردار کې هم ، له دې وروسته چې الله جل جلاله له دوی او د دوی له دښمنانو سره څه ډول سلوک خوښوي هغه به ورسره وکړي ، د خپل دین او دعوت لپاره هم چې کوم دریځ غوره کوي غوره به یې کړي ، که الله جل جلاله وغواړي دوی ته به هغه ډول انجامونه ور په برخه کړي چې په تاریخ کې د نورو مومنانو په برخه شویدي او یا به هم د هغوی لپاره داسې انجام خوښ کړي چې په خپله پرې پوهیږي او وینې یې .

## مؤمنان د الله جل جلاله کار کوونکې دي

مومنان د الله جل جلاله اجیران او کار کوونکې دي ، هغه چې هر ډول کار ورځینې غواړي ، چیرته ، ځنګه او څه ډول یې غواړي دوی مجبور دي ، چې د پخوانۍ تاکل شوي معاوضې په مقابل کې یې بې له ځنډه سر ته ورسوي ، دا چې د دعوت او کار انجام به څه وي د دوی د مسئولیت او وظیفه کې شامل ندی او نه د هغوی د وسې خبره ده ، دا مسئولیت د لوی څښتن په مزدور او کار کوونکې پورې هیڅ اړه نلري .

مومنان د خپلې مزدورۍ لومړی قسط په دنیا کې ترلاسه کوي ، په دغه قسط کې د مومنانو لپاره په ټول ژوند کې د زړه ډاډ ، د احساس او شعور لوړ والی ، د نیکو افکارو او تصوراتو ښه والی او سپیڅلتیا ، له ادنی او حیواني غوښتنو نه لرې والی ، او له ویرې او تذبذب نه خلاصون شامل دي ، د خپلې باړې ( مزد ) دویمه برخه هم په همدې دنیا کې حاصلوي ، په

ملاء اعلی کې ورته د ملایکو له خوا د خیر ذکر هم د ستاینی او تکریم په توګه ورکول کیږی .

د اجر تر ټولو ستره برخه په آخرت کې ورکول کیږی ، چې د ډیر معمولی او اسانه حساب و کتاب په مقابل کې ستر ، ستر او لوی نعمتونه ورکول کیږی ، پر دی ټولو برسیره هغه ارزښتناک شیز چې له هری برخی سره ور په برخه کیږی ، هغه د الله جل جلاله د خوښی او رضا حاصلول دی ، او د الله تعالی هغه فضل وکرم دی ، چې دوی یی د دی ستر کار لپاره غوره ګڼلی دی ، چې د قضا په لاس کې دی د توری په حیث وی او د الله تعالی د قدرت او حکمت زغری دی شی ، چې په نړۍ کې الله تعالی څه وغواړی ، د همدی په واسطه یی سر ته ورسوی .

## د اسلام د لومړی صدر مومنان

قرآن چې د لومړی صدر غوره او ځار مومنان په کوم ډول روزلی وو ، نو هغوی د هغی له امله د لوړتیا او کمال هغی ذوړی پوړی ته رسیدلی وو چې انفرادیت یی یو مخیزه له مینځه وړی و ، او د الهی دعوت په کار کې یی د " زه " کلمی ته د تل لپاره رخصت ورکړی و ، هغوی یوازی او یوازی د دعوت د ښښتن لپاره کار کاوه ، هغه هم د مزدور په حیث په هر وخت او زمان کې به د الله جل جلاله په پریکړه او انتخاب خوښ او راضی وو .

دغی روزنی د هغوی زړونه او سترګی د جنت په لور ګرځولی وی او هغوی ته یی دا تلقین کاوه چې هغه کار چې د دوی لپاره غوره ګڼل شوی دی ، هغه باید په ثبات او ټینګار سر ته ورسوی ، تر هغه چې الله جل جلاله خپله هغه پریکړه نه وی نازل کړی چې په دنیا او اخرت کې یی غوره ګڼی .

حضرت محمد صلی الله علیه وسلم به په مکه کې د حضرت عمار او د هغه د کورنی غړی ( مور او پلار ) په خپلو سترګو لیدل ، چې د حق په لاره کې له سختو ستونزو سره مخامخ دی ، خو له دینه به یی زیات څه نه فرمایل : صبرا ال یاسر ! موعدکم الجنه ( ای د یاسر کهوله ! د صبر او زغم لمن پری نږدی ، له تاسو سره د جنت وعده شویده ) .

حضرت خباب بن ارت وایي چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د کعبې د دیوال تر سیورې لاندې استراحت کاوه ، چې مونږ ورته د شکایت په توګه عرض وکړ تاسو ولې له الله جل جلاله نه مونږ ته سوبه نه غواړې او دعا نه کوې ؟

رسول اکرم وفرمایل : " له تاسو نه د مخه امتونو داسې حال و چې یو سړی به یې راونیوه په ځمکه کې به یې ورته کنده وایستله او په هغې کې به یې وغورځاوه ، بیا به یې اره راوړله ، له سره به یې تر پښو دوه ځیرې کړ ، د هغوی په غوښو او هډوکو کې به یې د اوسپنې سیخونه ټومبل ، خو دې دومره کړاوونو هم هغوی له دین نه وانه ړول ، په الله جل جلاله سوګند چې الله جل جلاله به دا دین مکمل کړي او هغه وخت به راشي چې یو سپور به له صنعا نه تر حضر موت پورې یوازې سفر وکړي ، خو هیڅ ویره به ورسره د الله جل جلاله له ویرې پرته نه وي ، یا به دا ویره ورسره وي چې په وزو یې لیوه حمله ونکړي خو تاسو خلک ډیر تلوار کوی [ بخاری ]

مومن او د الله جل جلاله بې پایه حکمت

د دنیا په هر کار او هر وخت و زمان کې د الله جل جلاله حکمت موجود وي ، الله جل جلاله په خپل کامل حکمت د دې ټولو کائناتو د پیل او پای له مسئلې نه خبر دی او اداره کوي یې ، په نړۍ کې چې څه پیښیږي او د غیب د پردې تر شا چې د پنځ ( طبیعت ) کوم حکمت او اسرار پټ دي ، یوازې همدغه ستر ذات پرې خبر دی او په هغه کې چې د بشریت د ښیګړې لپاره څه پټ دي پر هغې هم یوازې همدغه ذات ښه پوهیږي .

دغه حکمت او مصلحت د تاریخ د اوږده سفر په موده کې د الله جل جلاله د مشیت پر مبنا را روان دی ، ځینې وخت الله جل جلاله څو پیړۍ وروسته د یوې پیښې د پټ حکمت نه پرده پورته کوي ، چې د هغه وخت خلک پرې نه وي پوه شوي ، ښائي هغوی به هغه وخت په دې لټه کې شوي وي چې دا پیښه څنګه مینځ ته راغلې وه ، او له خپل الله جل جلاله نه به ئې پوښتنې هم کړې وي چې خدایه داسې ولې وشول ؟

دغه پوښتنه پـه خپله یو ډول جهالت دی چې مومن بایـد تری ځـان وژغوري ، ځکه مومن له پخوا نـه پـه دی ایمان لری ، چې د الله جل جلاله په هره پریکړه کې یـو حکمت موجود وی ، د مؤمن د نظر پـراخوالی او د الله جل جلاله د بی پایه قدرت په هکله د هغه ګروهه ، د زمان او مکان ، معیارونو او ارزښتونو په هکله د هغه ژور نظر ، هغه ته دا اجازه نه ورکوی ، چې د دی پوښتنی په هکله جاج ( فکر ) وکړی ، ځکه مومن باید په پوره رضا او تسلیم د قضا او قدر له کاروان سره په نړۍ کې هم سفره واوسی .

## د قرآن روزنه

قرآن د داسی زړونو په لټه کې و چې د امانت [۱] دغه درونـد بار اوچت کړلای شی او یا د امانت د ساتلو وړ وی ، د دی لپاره تر هر څه د مخه دا ضرور وه چې دغه زړونه دومره ، کلک سپیڅلی او پاکیزه وي ، چې د الله جل جلاله په لار کې خپل هر څه وښندلی شی ، د هر ډول سخت ازمیښت میدان ته په ورین تندی ور ودانګی او له بل خوا نه د دنیا د مال او متاع پر ځای خپله ټوله پاملرنه آخرت ته وکړی ، او موخه یی یوازی د الله جل جلاله د رضا حاصلول وی .

ځکه همدغه ډول پاک سپیڅلی او کلک زړونه کولی شی چې دغه له ستونزو ډک سفر چې له رنځ ، درد ، محرومی ، بد مرغی ، ستونزو ، سرښندنو او ایثار نه پرته نور هیڅ هم په لاس نه ورځی سر ته ورسوی ، د دغو کړاوونو په مقابل کې د ونج او بدل تمه هم ونه لری .

که څه هم دغه پاداش او بدل د دعوت د پرمختګ او د اسلام او مسلمانانو د بری ، او پټ د غوښتنی په بڼه وی ، او یا هم د هغو کسانو د بربادی او هلاکت، او عبرت ناک انجام غوښتنه وی چې د دعوت د پرمختګ په لار کې مرکونډی شیندی ، لکه څنګه چې د تیرو ظالمانو او مکذبینو سره الله تعالی همدغه ډول سلوک کړی .

دنیاوی بری د مومنانو لپاره حتمی سوال نه دی

---

(۱) د الهی خلافت پاڅون ته اشاره ده .

کله چې په دغو صفاتو متصف زړونه مینځ ته راشي او په دې ګروهه وي ، چې د دنیا له ستونزو ډک سفر به بې له کوم مادي اجر او معاوضې له هر ډول کړاوونو او سربښندنو سره سر ته رسوم او پر دې ایمان ولرم چې د حق او باطل ریښتونی اجر او معاوضې یوازینی ځای اخرت دی او وروستی پریکړه به هم هماغلته کیږي ، کله چې دغه ډول سوچه زړونه د الله جل جلاله په مینه سست وروزل شي او الله جل جلاله ته دا څرګنده شي چې دغو خلکو چې کومه سودا کړیده په هغه کې ریښتوني او مخلص دي .

نو بیا به الله جل جلاله د ځمکې پر مخ هغوی ته برې ورکړي او د ځمکې امانت به هغوی ته ور وسپاري ، خو بیا به هم دا امانت د دې لپاره هغوی ته نه وي ورکړ شوی ، چې د خپلو ځانګړو ګټو او نفسي غوښتنو لپاره ترې کار واخلي ، بلکه د دې لپاره به ورسپارل شوی وي چې په هغه کې د حق او عدالت د نظام توغ اوچت کړي .

دوی له هغې ورځې نه د دغه ډول دروند بار د اوچتولو او امانت ساتلو جوګه شوي وو ، چې په دنیا کې ورسره د هیڅ ډول برې او ګټې ژمنه ونشوه ، خو سره له دې هم دوی د دغې اغزنې لارې له ستونزو نه ډک سفر پیل کړ ، د سفر په دوران کې یې نه خپل ځانګړې ګټې خوندي کړې ، لکه څنګه چې د هر انسان غوښتنه وي او نه یې د دنیاوي سرو سپینو او غنایمو څلا د ایمان سترګې وبریښولې .

بلکه په پوره ایمان داری ، متانت ، او سپیڅلتیا یې دغه سفر ته چې پای یې ورته څرګند او روښانه نه و ادامه ورکړله ، هغوی له هغې ورځې نه خاص د الله جل جلاله لپاره وقف شوي وو ، چې د هغوی په سترګو کې د الله جل جلاله د رضا له ، لټون او تلاش نه پرته د بل اجر د ګټلو او مزد هڅه نه لیدل کیده .

د قرآن په هغو ایتونو کې چې د سوبې او برې ژمنه شویده ، یا د ولجې او غنیمت ذکر شویدی یا دا مخکې وینه ( پیشګویي ) شویده چې په دنیا کې به هم کفار او مشرکین د مومنانو په واسطه د خپلو اعمالو په سزا ورسیږي ، ټول په مدینه کې نازل شویدي .

هغه وخت دغه ټول څيزونه د مومنانو د پروګرام په جمله کې شامل نه وو ، او نه يې ورته انتظار درلوده ، هغه وخت چې دوی په سفر پيل کاوه نو دغه يوه وعده او هيله هم ورسره نه وه ، يوازې او يوازې د الله تعالی رضا وه او بس .

.وروسته بيا فتح او نصرت په خپله د دوی په برخه شو او دا د دې لپاره چې د الهی مشيت غوښتنه هم داسې وه ، چې د حق او عدالت نظام به د انسانانو په ژوند کې په عملی توګه مينځ ته راځی ، داسې ژوندی نمونه او انځور به خلکو ته ښيی ، چې انسانان يې په خپلو سترګو وګوری ، دغه سوبه او بری په دنيا کې د مومنانو د سربښندنو او دردونو زغملو انعام او بخشش نه وو ، بلکه دا د الله تعالی ازلی پريکړه وه چې په بطن کې يې د الله تعالی جل جلاله هغه حکمتونه او مصلحتونه پټ پراته وو ، چې نن يې هم مونږ د ليدلو او پوهيدلو په لټه او هڅه کې يو .

سوبه او بری د الهی مشيت پر اساس مينځ ته راځی نه د انعام په توګه .

پورتنی مسئله د اسلامی دعوت هغه اړخ دی ، چې د هر هيواد ، ټبر او توکم خلک چې د حق لارې تلونکې او پلويان وی بايد غور او څيړنه پرې وکړی ، يوازې د همدغه يوه اړخ روښانتيا هغوی ته د حق لارې ټولی نښې او کرښی په څرګنده توګه ، بی له کومی ستونزی او کړکيچ ښيی او د دغی لارې هغو ريښتونو تلونکو او سپيڅلو بندګانو ته هم د ارادی ثبات او ټينګار وربښی چې په دغه لار به تر پايه ځو ، که څه هم پای يې هر ډول وی ا الله جل جلاله چې د خپل دعوت او دوی لپاره کوم برخليک ( سرنوشت ) غوره کړی هماغه سم دی .

د دغی له ستونزو ډکې ، پرا شوبه او وينی څښونکې لارې په مزله کې چې د انسانانو په کپريو فرش شوی ده ، هيڅکله هم د سوبې او بری انتظار ونلری ، او نه د حق او باطل ترمينځ د وروستی پريکړی لپاره ناکراره شی ، که په خپله د الله تعالی جل جلاله ذات د خپل دعوت او دين د مصلحت لپاره له دوی نه داسې کوم کار اخلی نو هغه به سر ته ورسوی .

خو دوی دی هیڅکله هم دا فکر نه کوی چې دا ګڼی زمونږ د ربړ ګاللو ، او سربښندنو صله ده ، دا ځکه چې دا دنیا دار الجزا نه ده ، بلکه دار الامتحان ده ، دا به د الله جل جلاله د مشیت او پریکړی انفاذ وی چې د خپل دعوت او انتظام لپاره یې ټاکلی وی او د هغی د عملی کولو لپاره یې یو څو بندګان غــوره کړی وی ، چې د هغوی پــه واسطه خپل مشیت سـر ته ورسوی .

د دوی لپاره همدومره ویاړ ، او برم کافی دی چې د انتخاب په وخت کې قرعه د دوی په نامه راوتلی ده ، همدومره ویاړ ئی بس دی چې الله تعالی د خپل مشیت د سر ته رسولو لپاره دوی غوره او مامور کړل او د دغه ستر امانت د سپارلو جوګه یی وګڼل ، د دغه ویاړ او شرف سره په ټول کې د دنیا ژوند او د هغی هوساینی نعمتونه او مزی چړچې .... ټول سپک خیژی او د قیمت د پرتلی له مخی ډیر بی ارزښته او ناڅیزه دی ، د دغه ویاړ او شرف د لاسته راوړلو لپاره په ژوند او د ژوند په ټولو لذتونو سودا کول په توره شپه کې هم ګټور او سود من کار دی .

## د مؤمنانو جګړه د ګروهی ده سیاسی جګړه نه ده

دلته یو بل حقیقت هم چې قرآن ورته د اصحاب الاخدود په پیښه کې د لاندینی آیت په ترڅ کې اشاره کړیده د غور او څیړنی وړ دی :

وَمَا نَقَمُوا مِنْهُمْ إِلَّا أَنْ يُؤْمِنُوا بِاللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ

( او له هغوی نه یی په بل څه غچ او کسات نه دی اخیستی مګر په دی علت ، چې پر ستر الله جل جلاله یی ایمان راوړی و) .

دا یو داسی حقیقت دی چې په دی ارزی د حق لاری تلونکې او پلویان چې د نړی په هر ګوټ کې وی پری غور وکړی .

د مومنانو او د هغوی د مقابل لوری خلکو ترمینځ چې کومه جګړه روانه ده ، هغه په حقیقت کې د فکر او ګروهی جنګ دی ، له دی نه پرته بل هیڅ نوم دغه جنګ ته نشو ورکولای ، دغه مخالفین یوازی د مومنانو له ایمان سره دښمنی لری ، او د دوی د ټولو دښمنیو او غصی یوازینی لامل ( علت )

هم هغه ګروهه ده ، چې مومنان يې په نور منور دي او د هماغې له امله يې ترې کسات واخيسته .

دا جګړه هيڅکله هم سياسي جګړه کيدای نشي او نه کومه اقتصادي او يا نژادي جګړه ده ، او که فرضا داسې وای نو ستونزې ئې په اسانۍ سره اواريدلای شوې ، خو دا جګړه د خپل روح او جوهر له مخې يوه سوچه فکري جګړه ده ، دلته متنازع فيه مسئله دا ده ، چې يا به د کفر توغ لوړ او رپانده وي او يا به دې ايمان ، يا به جاهليت وي يا اسلام ! ...

ځکه د مشرکينو مشرانو د اسلام ستر پيغمبر حضرت محمد صلی الله عليه وسلم ته د سرو سپينو او حکومت پيشنهاد وکړ ، او ورته وې ويل چې د دنيا له سرو او سپينو نه چې هر څه ستا پکار وي ، مونږ به يې درته پيدا کړو ، خو د دې هر څه په بدل کې تاسو زمونږ يوه غوښتنه ومنئ او هغه دا چې تاسو له مونږ سره د عقيدې له جګړې نه لاس واخلئ او په دغه برخه کې له مونږ سره سودا وکړئ .

او زمونږ په ګټه يو څه پکې ځای کړئ !! که چيرې د دوی دغو ښتنيو يو توک هم پوره شوی وای ، نا ممکنه وه ، نو د دوی ترمينځ به هيڅ جګړه نه وای پيښه شوې ، له دينه څرګنده شوه چې دا د کفر او ايمان مسئله ده او د دغې مسئلې اساس او بنسټ هم ګروهه ده ، نو له دې امله مومنان چې د نړۍ په هر ګوټ کې له دښمنانو سره مخامخ کيږي .

د دغه بنيادي حقيقت انځور ئې بايد د ذهن پر صفحه نقش وي ، ځکه چې د دښمنانو د ټولې دښمنۍ او خفګان لامل ( سبب ) هم يوازې همدا عقيده ده ، چې " پر هغه الله جل جلاله ايمان لرل دي ، چې غالب او حميد دی " او يوازې د هماغه عبادت او بندګي کوي .

## د اسلام دښمنان دغې جګړې ته بله جامه ور اغوندي

د اسلام دښمنان هڅه کوي چې دغې جګړې ته له فکري او عقيدوي نوم نه پرته کوم بل نوم ورکړي ، غواړي دا ثابته کړي چې دا جګړه اقتصادي ، سياسي او يا نژادي اړخونه لري او د همدغو ګټو د خوندي ساتلو لپاره سر ته رسيږي ، د دې لپاره چې د جګړې حقيقت او واقعيت د مسلمانانو له

نظره پټ پاتې شي او د عقيدې د اور ، سرې سکروټې د دوی په زړونو کې په ايرو بدلې شي .

مومنان بايد په دې پوه شي چې دا يوه زير کانه حيله او نيرنګ دی چې د يوه مخکينۍ جوړ شوي پلان له مخې پرې عمل کيږي ، هغه څوک چې دغو جګړو ته بل نوم ورکوي ، هغه په حقيقت کې غواړي چې مومنان له هغې سيکالوجيکې وسلې نه بې برخې کړي ، چې د دوی د برې او سوبې اصلي راز پکې پټ دی .

که څه هم دا کاميابي په هره بڼه وي ، د روحاني لوړتيا او ازادۍ په بڼه وي چې د اصحاب الاخدود په پيښه کې د مومنانو په برخه شوه ، يا د همدغې روحاني لوړتيا په برکت مادي سوبه او بري وي ، چې د لومړي صدر مسلمانان پرې سر لوړي شول .

د جګړې د موخې او شعار د مسخ کولو لپاره د نړۍ وال صهيونيزم له خوا پراخه هلې ځلې رواني دي ، هغوی غواړي چې د دغو جګړو د اهدافو په هکله خلک شکمن کړي ، هغوی د تاريخي حقايقو د مسخ کولو لپاره هلې ځلې کوي او وائي چې صليبي جګړې په حقيقت کې يو مذهبي نقاب و ، چې د صليب متجاوزينو د خپلو شومو ښکيلا کې ( استعماري ) اهدافو پر مخ غوړولی و .

خو نه داسې هيڅکله هم نده ، حقيقت دا دی چې استعمار له صليبي جګړو نه وروسته پيدا شويدی ، او غواړي چې صليبي روحيه د خپلو مقاصدو لپاره پکار واچوي ، څکه دغه استعمار چې په دې وروسيتو کلونو کې يې د خاپسې په څير د ختيځې نړۍ په چنغرک کې منګولې لګولې دي .

يوه پرده ده چې د صليبي تيرې کوونکو د مقاصدو او اهدافو پر مخ غوړيدلې ده ، څکه لکه څنګه چې صليبي روح په منځنيو پيړيو کې په څرګنده توګه کار کاوه ، هغه اوس په دې توګه بې نقابه ميدان ته نشي راوتلای په بله وينا دا په حقيقت کې صليبي جګړې نه وې چې تر شا يې استعمار پټ و .

بلکه دا هغه جګړې وې او اوسنی استعمار هم هغه استعمار دی چې تر شا یې صلیبی اهداف پټ دي ، یعنی د اسلام له مینځه وړل ، د دغې ګروهې حقیقت د اسلام په هغو جګړو کې ښه ترا څرګند شویدی چې د ګڼو اسلامي رهبرانو تر بولۍ ( قوماندې ) لاندې سر ته رسیدلی دی .

سره له دې چې هغوی په مختلفو ملیتونو پورې اړه لرله ، خو هغوی د جګړې په میدان کې خپل ملیتونه ، قومونه او ژبې هیرې کړې وې ، یوازې یې د ګروهې او فکر د یو والي پر اساس جګړه کوله ، چې په هغوی کې د یادونې وړ او نومیالي اشخاص سلطان صلاح الدین ایوبی رحمه الله و د ممالیک د کورنۍ ، تورانشاه کردی دی .

چې ټول قومي ، نژادي ژبني او سیمه ایز اختلافات یې شاته غورځولي وو او یوازې یې د ګروهې تر بیرغ لاندې جګړه کوله ، د همدغې ګروهې او ایمان په زور بری ته هم ورسیدل .

وَمَا نَقَمُوا مِنْهُمْ إِلَّا أَنْ يُؤْمِنُوا بِاللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ [دبروج سورت ۸ آیت ]

بې له شکه د ستر الله جل جلاله فرمان حق او ریښتونی دی او دغه د رانده فکر او پمنې ګروهې خاوندان مکار، دروغجن ( فریبکار) او درواغجن دي .

سبحانک اللهم وبحمدک اشهدان لا اله الا انت استغفرک و اتوب الیک